۷۸۶

په اجازت اعلیٰ حضرت جناب بادشاه صاحب بانی ریاست سوات
دامت برکاتهم

# فتاویٰ ودودیه

## جلد دوئم

مؤلفه

مولوی محمد ابراهیم صاحب مرحوم

ناشران

اسلامی کتب خانه قصه خوانی پشاور

(سید الرحمٰن عفی عنه خدر خیلی)

قیمت ۴/-/۱۸ روپے

٧٨٦

په اجازت د جناب بادشاصاحب بانی سوات دامت برکاتهٔ

په آسانه پښتو کښې

د شاهدانو د دعوه والې او د شرعي فيصلو

بوه مجموعه

# فتاویٰ ودودیه

: جلد دویم :

مرتبه

فقير محمد ابراهيم بونيري بازارکوی عفی عنه

ناشران

حاجی عبدالمنان محمد اجمل تاجران کتب

مالکان

اسلامی کتب خانه قصه خوانی پشاور

(مطبوعه: حمید یه پریس پشاور شهر)

# اعلیحضرت والی صاحب محمد عبدالحق جهان زیب حکمران ریاست سوات

## زنده باد

والی صاحب خوشحال او سلامت الله لره — محفوظ ئے له خزانه حکومت الله لره

سوات دے ننګیالی نن د علمونو کړو مرکز — خوشحال ئے همیشه تول رعیت الله لره

د علم په دولت ئے نن مور کړے د خپل قام — د دغے فیض رسان جاه وحشمت الله لره

هر کلی د وطن کښ مدرسه او هائی سکول — هم اسے ددے قام ئے ویخ قسمت الله لره

په نوم د جهان زیب ډګری کالج ښکلے شاندار — ډیر قام ته په وطن کښ سهولت الله لره

سیدو اؤ په چار باغ کښ دینی لوئے مدرسے — تل قام کښ د دین هم ډیر محبت الله لره

سوات له دِ دے نه مخکښ په تیرو کښ وه پټ پروت — تل تل د حکمران ئے لوړ همت الله لره

الله اهل سوات ته او بخلو جهان زیب — د ملک د پاره دا زیب وزینت الله لره

والله دِ دے ننګیالی جوړ د سوات نه کړو جنت — دُ نیا ورته حیرانه هر ساعت الله لره

خپل قام ئے اودروے مخکښ صف کښ د سیلئے — نور هم له دے نه زیات ئے برکت الله لره

سوات ته نن حیران دے د ملکونو بادشاهان — هم داسے تل آباد دا ریاست الله لره

نصیب د عبدالحق جهان زیب خان شه تخت د تاج — روښان ئے د بخت ستورے هر ساعت الله لره

والله چه ئے په قام بانڼ ډیر کړے دے احسان — بد خواه ئے مختورن او ملامت الله لره

لری نیک صفتونه خاص په شان د فرشتے — هم داسے په دنیا ئے نیک شهرت الله لره

عادل دے، رحمدل، اؤ قام پرور، غریب نواز — په ملک کښ ئے قانون د شریعت الله لره

لوئے نوم ئے اوګټلو یاد نیک نام شو په جهان — د دغے نیک سیرته نوم اوچت الله لره

دا حُکه چه نیکه ئے دے لوئے غوث د زمانے — دا ګُل تروتازه تل خوبصورت الله لره

فدا مطهر کړی ورته هم شپه ورځ دُعا

سرخروئے په دنیا اؤ آخرت الله لره

---

فدا مطهر سکنه پشتی خیره پایان تحصیل پشاور۔

(رشید)

## دَ "فتاوی ودودیّه" دَ مضامینو

# فهرست

**یادګیرنه** :- دَ هر کتاب په اول کښې دَ هغه دَ مضامینو فهرست درج کول ضروری وی. او دَ دے دوه فائدے وی. یوه دا چه دَ کتاب لوستونکی بغیر دَ ټول کتاب دَ کتلو نه صرف دَ فهرست نه دَ کتاب دَ منډرجاتو او دَ مضامینو اندازه اولګولے شی. او دَ کتاب اهمیت او ضرورت دَ فهرست نه معلوم کړی. او بله دا چه دَ فهرست په وجه سړی دَ خپل ضرورت مطابق دَ کتاب نه مسائل را ویستل او کتل آسان وی. له دے وجے نه ما دَ "فتاوی ودودیّه" دَ مضامینو فهرست مرتب که. او دَ کتاب په اول کښې هم شامل که. او دَ تصرف دا فخر ما ته صرف دَ والا حضرت ولیعهد صاحب شهزاده جهانزیب خان دام اقباله دَ مهربانئ په وجه حاصل شه. چه هغوئ دَ دے عظیم القدر علمی مذهبی کتاب دَ طباعت ټول انتظام او اهتمام ما ته او سپارلو. ما دَ کتابت په تصحیح او دَ طباعت په بهترئ کښې خپله پوره پوره سعئ صرف کړیده.

فتاوی ودودیّه په یو تمهید. دوه کتابونو یعنے "ملجأ القضاة". طریقهٔ واضحه". "بیّنة من له الرجحان" او په یوه رساله مشتمله ده. په تمهید کښې حضرت مترجم صاحب (چه مخلص علماء دَ هغه دَ دے لوئے علمی خدمت په قدر پوهیږی) دَ "فتاوی ودودیّه" دَ لیکلو سبب او دَ اعلیحضرت جناب بادشاه صاحب والئ سوات او دَ والا حضرت ولیعهد صاحب ذکر خیر کړے دے. او حقه خبره داده چه اعلیحضرت بادشاه صاحب او ولیعهد صاحب دَ مسلمانانو او بالخصوص دَ پختون قوم دَ ډیرے ډیرے شکرئے مستحق وی. چه هغوئ دَ "فتاوی ودودیّه" غوندے دَ یو عظیم الشان علمی او مذهبی کتاب (چه په پښتو ژبه کښې دے) سرپرستی قبوله کړه. او دَ قوم یو لوئ ضرورت ئے پوره که. او دا رنګے دَ خپلے علم پروری او دَ اسلامی محبّت یو نه فانی کیدونکے مثال ئے دنیا کښې قایم که.

هرگز نمیرد آنکه دلش زنده شد بعشق — ثبت است بر جریدهٔ عالم دوام ما

فهرست دَ مضامینو لاندے درج دے:-

(مولوی) محمد اللّٰه محمد دادعفی عنه - مدیر جریده «نوائے ملت» مردان
مورخه ۱۰ اکتوبر سنه ۱۹۴۹ء

# مجموعۀ فتاوی ودودیّه

مونږ ملاحظه کړه - په واقع کښې اصل عربي کتاب دا سے مجمل او مختصرو - چه د هغې نه فایده آخستل (عوام خو د کنار) د خواصو د پاره هم ډیر صعب او گران وو - نو د دے وجے نه جناب مولنا مولوی محمّد ابراهیم صاحب دامت فیوضهم په حکم د اعلحضرت بادشاه صاحب وحضور ولیعهد صاحب بهادر خلد الله ملکهما په آسانه پښتو کښې د هغې دا سے کامله، واضحه او با محاوره صحیحه ترجمه وکړه چه اوس د خدای پاک په فضل سره خواص وعوام ترے نه تول فایده پوره پوره په ډیرے آسانئے آخستے شي - جناب مولوی صاحب دامت برکاتهم د ترجمے نه علاوه په ډیرو ځایونو کښې د معتبرو کتابونو په حوالے سره حاشیه هم لکولے ده - او ځای په ځای ئے نورے ضروری خبرے هم لیکلے دی - حقه خبره دا ده چه مولوی صاحب موصوف په دا سے عدیم الفرصتئ او تنګئ وخت کښې د ډیر کوشش او د تحقیق او د همت نه کار اخستے دے - او د اسلام دا دومره عظیم خدمت ئے په یوه بے نظیره طریقه سرانجام کړے دے - جزاهم الله تعالیٰ فی الدّارین خیر الجزاء - خدای پاک د موجوده حکومت سوات ترقیامت پورے قایم لری - (آمین) چه مونږ د عامو مسلمانانو فایدے او آسانئے ته ئے پوره پوره توجّه مبذوله کړے ده -

(۱) فقیر - خانبهادر عفی عنه کان الله له مارتونګی صدر المدرّسین مدرسۀ دار العلوم حقانیّه (ریاست سوات) سیدو شریف

(۲) محمّد عبد المجید بازارکوی کان الله له مدرّس دار العلوم حقانیه (ریاست سوات)

(۳) عبد الحلیم هودیګرامی عفی عنه - مدرّس مدرسۀ عالیه عربیّه دار العلوم حقانیه واقع سیدو شریف

(۴) محمد نظیر چکیسری عفی عنه - مدرس دار العلوم حقانیّه واقع سیدو شریف (ریاست سوات)

(۵) عزیز الرحمن تنبری عفی عنه - استاد شاهزاده جوان بخت جوان سال عالیجناب اورنګزیب صاحب دام اقبالهٗ

محکمۀ قضاء بریکوټ (ریاست سوات)

(۶) عبد الخالق عفی عنه - قاضی القضاة - متوطن کوټکی غوربند (ریاست سوات)

(۷) محب الله عفی عنه - قاضی محکمۀ عالیۀ حضوری - متوطن قمبر (ریاست سوات)

بسم الله الرحمن الرحیم

چا چه د تاریخ مطالعه کړې وي - هغه ته دا خبره د نور په شان ښکاره ده - چه د روئے زمین په هره علاقه او هره خطه باندې د ترقئ او تنزلئ مختلف دورونه تیر شوي دي - یوه هغه زمانه وه چه خصوصًا په دې (سوات مضافات) وطن د جهالت یوه لویه تیاره خوره وه - د علم نوم او نشان وُرک وو - د پښتنو او د کورنی جنګونو چرچه وه - او د فتنو او د فسادونو دودوره وه د عرب د زمانهٔ جاهلیت په شان کلی په کلی او ځائ په ځائ د ظلم او دربل او د خونریزئ بازار ګرم وو - اکثر خلق د دې خبرې نه بے خبره وُو - چه رورولی او همدردی څه ته وائی؟ اسلامی محبت څه شئے دے؟ د انسانیت تقاضا څه ده؟ او د شریعت احکام څه څه دي؟ غرض دا چه سوا د خاصو کسانو اکثر مخلوق د جهالت په دے سیلاب کښې د هلاکت کندی ته غورزیدلی وُو -

هر کله چه دا ابتر حالت انتها ته وُرسیده - نو د حقتعالی رحمت په جوش کښې راغے - او په دے وطن ئے د هدایت او د فضل او د کمال یو نور راښکاره که - یعنے ماهر د علوم د شریعت - واقف د لارے د طریقت - سرچشمه د کراماتو - دریا د کمالاتو - صدر د اولیاؤ - سردار د اتقیاؤ - سلطان د عارفانو - رئیس د سالکانو - شیخ المشائخ مرشدنا ومولنا محمد عبد الغفور صاحب چه مشهور وو په " صاحب سوات " سره علیه الرحمة والبرکات -

د دے نور پلوشے نه صرف د سوات و متعلقات په حدودو ځلیدے - بلکه کل سرحدی علاقے ئے د هدایت په روښنئ سره روښانه کړے - د دین اشاعت - د شریعت اجراء - د فتنو او فسادونو انسداد - د خلق الله خدمت - د مظلوم اعانت - د قوم اصلاح د هغوی ژوندون یو لوی مقصد وو - او شپه ورځے هم دا مشغله وه - د بابا صاحب د وعظ و تبلیغ او د پند نصیحت او د مسلسل کوششونو دا نتیجه شوه - چه د وطن د یو سر نه د بل سره پورے د رُشد وهدایت او د اصلاح وفلاح یو د تروتازه باد را والوت - چه په هغے سره کل سرحدی علاقے سرسبزے شوے - او په حالاتو کښې یو عظیم الشان انقلاب راغے - د اسلامی ژوندون روح په خلقو کښې پیدا شه - د علم ترقی شوه - په شریعت عمل درآمد شروع شه - خلق ناقرار وو - لیکن اوس هر سړے خپل کاروبار ته او د عبادت د خپل پروردګار ته وُزګار شه -

د بابا صاحب دربار ته به شرعی او سیاسی کل احکام او تعزیرات جاری کیدل - د مریدانو تعداد ئے لکونو ته رسیدلے وو - عقیدتمندان ئے بے شماره وُو - او نوم ئے په دنیا کښې خور وو -

هر کله چه په یعنی ۱۲۹۵ھ سره هجری کښې بابا صاحب د دے دنیا فانی نه رحلت وفرمایه - نو د هغهٔ نه پس د هغوی خلف ارشد خزانه د کمالاتو - مصدر د تقوی او د کراماتو - عالم ربانی - فاضل

یزدانی - عابد صادق - حضرت مولنا شیخ عبدالخالق قدس الله سره چه مشهور وو په "کشر میاں گل صاحبؒ" سره دَ هغوی جانشین شو۔

## مختصر ذکر دَ حضرت قبله کشر میاں گل صاحبؒ

دَ کشر میاں گل صاحبؒ په طبیعت کښ دَ وړوکوالی نه دَ علمِ دین شوق وو۔ په سینه کښ ئے دَ عبادت - ریاضت - رِلّٰهیّت یوه لویه جذبه وه۔ دَ بابا صاحبؒ دَ وفات نه پس ئے په خپلِ شغل کښ ډیره ترقی وکړه - خپل مقدس ژوندون ئے دَ خدمتِ خلق - اِشاعتِ دین - قیامِ اَمن - او اِصلاحِ خلق دَ پاره وقف کړے وو۔ ربّ العزّت ورله دا سے مقبولیّت او شهرت ورکړ۔ چه کُل سرحدی علاقے ورته راماتے شوے - او دَ سیدوؒ شریف دربار بیا دَ رشدؒ هدایت او دَ ذکر وفکر او دَ علم و عرفان یو مرکز وګرځیدلو۔ نه ئے قلاګانے وو - نه ئے فوځونه - نه ئے توپے وے - نه ئے مشین ګنونه - نه لوازماتِ حکومت وُو - نه سازوسامان - لیکن دَ وطن په امن او دَ جرائمو په بندولو او دَ حدود او دَ قصاص په جاری کولو کښ ورته داسے مکمله کامیابی حاصله وه - چه یو منظّم حکومت ته هم داسے کامیابی حاصلیدل آسان نه دی - لیکن افسوس! عُمر ئے وفا وُنکړه - او په سنه ۱۳۱۱ هجری کښ ئے ددے دنیایٔ فانی نه جوارِ رحمت ته انتقال وُکړ۔

## مختصر ذکر دَ اعلیٰحضرت بادشاه صاحب خلّد الله ملکهٗ و حکومته

دَ کشر میاں گُل صاحبؒ دَ وفات نه پس په وطن کښ بیا بے اَمنی شروع شوه - پښتنو او کورنی جنګونه سر اوچت که - او په دے ګلزار باندے یو ځل بیا دَ خزان تیزے او تُندے حملے شروع شوے - جهالت تردے حده پورے اورسیدو۔ چه ځائے په ځائے لوے لوے فتنے فسادونه - قتل وقتال او جنګ وجدال شروع شه - ظلم وستم - جبر وتشدّد - ډاکه زنی - شوکه ماری - غلا کانے - تالاونه غاصبانه قبضه - مړه جوبله - شړل تړل - سوانه وغیره وغیره دا معمولی خبرے وے۔
اکثر خلق دَ خدائ پاک او دَ رسُول دَ احکامونه او دَ شریعت دَ طریقے او دَ انسانیّت دَ لارے نه ډیر لرے پریوتی وُو۔
چه دَ وطن حالت دَ تنزّلئ انتهائی درجے ته ورسیده - نو حقتعالیٰ په خپل فضل سره بادشاه دَ اِسلام خیرخواه دَ اهلِ اسلام - سرچشمه دَ هدایت - دُرک کوُنکے دَ ګمراهئے او دَ بدعت - تلونکے دَ راهِ مستقیم مددګار دَ دین قویم اعنی سلطان حاجی الحرمین الشریفین اعلیٰحضرت محمد عبدالودودخان بانئ حکومتِ سوات و متعلقات په دے وطن باندِ مسلّط که۔

بادشاه صاحبؒ دَ رعیّت په اِصلاح اودَ امن په قیام کښې بےمثاله کامیابي حاصله شوه - او په عالم کښې ئے بے نظیره انقلابات رونما کړه - دَ حق تلفئ او دَ ظلم وستم اودَ قتل وغارت یکسر خاتمه وشوه - اوس عدل دے انصاف دے - حق شناسی ده - دَ علم ترقی ده - په شریعت عمل درامد دے - هر سړے دَ اطمینان ژوند تیروی - او په مکمّله طریقه سره دَ کل حقوقو تحفّظ کیږی - دَ آرام وراحت هر قسم سازوسامان او دَ اسایش هر قسم اسباب دَ حکومت په برکت سره مهیّا دی - کوم وطن چه په جهالت او په بے امنئ کښې مشهوروو - اوس هغه وطن په ترقئ او په کمالِ امن وامان کښې ضرب المثل وګرځیدو - اَللّٰهُمَّ زِدْ فَزِدْ -

لوئ فضل په مخلوقو دَ خالق غنی سبحان دے
چه ورکړے ئے بیمثله قدردانه حکمران دے

په ترقئ دَ رعایا کښې شب وروز وی مفکّر
عمارت دَ ترقئ ئے اوچت کړے تر آسمان دے

سهولت دَ رعایا ئے همیشه دے نصب العین
دَ دین په حمایت کښې ملا تړلے هرزمان دے

منوّر ئے سرزمین کړ په روښنئ دَ هدایت
جهالت ئے دَ مخلقو بدل کړے په عرفان دے

دَ ګمراهئ په منګرا توکوم وطن چه وو خراب
دا وطن هغه وطن دے چه اوس رشک ګلستان دے

صفت دَ شجاعت ئے زبان زد دَ خاص وعام
او صفت ئے هم دَ عدل مشهور شوے په جهان دے

ملا تړین دَ زمانے ئے معترف په جلالت دی
په آسمان دَ سیاست کښې لکه مهر درخشان دے

دَ ذړونو په تسخیر کښې دے صاحب دَ کرامت
په یو جُنبش آبروئے دا عالم همه قربان دے

دریا به شه سیالے کړی لږ دِ پریږدی دا شوړ
دَ دریانه په سل چنده بالا تر دَ ده فیضان دے

دَ فیوضو نه یو قبض ئے دا کتاب دے دَ دستور
کوم چه تالیف کړے ما په حکم دَ سلطان دے

اے دَ سوات یو نیر سلطانه اے بیمثله قدردانه
الله دِ په هر آن کښې مؤیّد او نګهبان دے

تر ابد لاد روښانه ستا دی ستورے دَ اقبال
ترڅو چه په وجود کښې دَ دنیا دور دوران دے

ستا دَ وصف په چمن کښې بلبلان دی صد هزار
لکه څنګ چه ابراهیم دِ په مدحت کښې ثنا خوان دے

## مختصر ذکر دَ سُلطان بن سُلطان عالیحضرت محمّد عبد الحق جهان زیب خان ولیعهد صاحب بهادر ریاست سوات ومتعلقات دامَ اقبالهُم

داخبره دَ مبالغے نه بالکل خالی ده - چه دَ ولیعهد صاحب بهادر په حُسن انتظام سره دَ وطن په عروج کښې په څو څو چنده اضافه شوے - او نوم وُرځ په وُرځ دَ ترقئ لوری ته روان دے دَ ولیعهد صاحب بیدار مغزی - دینداری - سیاستدانی غریب نوازی - حق شناسی جود وسخا - عدل وانصاف خو مشهور ومعروف اوصاف دی - لیکن دا صفت ئے ډیر ممتاز دے چه

هروخت دَ رعایا دَ مشکلاتو په لرے کولوکښې اودَ هغوئ دَ ترقئ دَ اسبابو په جوړولوکښې مستغرق وی۔ دغه وجه ده چه دَ ریاست هر باشندهٔ په کامل امن وامان سره خپل ژوند ورن تیروی او هر سړے دَ صاحب موصوف په صفت کښې گویا دے۔

دَ دریو کالو په عرصه کښې ئے د ننه دَ وطن ظاهری او باطنی حالت داسے ترقئ ته اورساوو۔ چه دَ هغے حاصلیدل په ډیرو مودو او زمانو کښې هم دَ کمال خبره ده۔ کوم سیّاح چه یو ځل دا حالت ملاحظه کړے بے اختیاره ئے دَ خولے نه دَ تحسین او دَ آفرین نعرے ختلے دی۔ په مختلفو علاقو کښې ډاکخانے او اسکولونه پرانستل۔ او په هر اسکول کښې دَ دینی شعبے دَ پاره عربی سند یافته عالمان مقرر کول۔ دَ ضرورت په مقاماتو کښې هسپتالونه قایمول ځائ په ځائ حسب ضرورت ډیر سنګین او مضبوط پلونه تړل۔ نوی نوی مناسب سړکونه ویستل۔ دَ موجوده سړکونو تنګی او کجی لرے کول۔ دَ سړکونو دواړو ډډو ته په ترتیب سره دَ سرکاری ملازمانو په ذریعه خوشنما بوټی لګول۔ په اکثرو کلو کښې دَ بچو دَ ابتدائی تعلیم او دَ عوامو دَ هدایت دَ پاره دَ فارغ التحصیل عالمانو تقرّر۔ دور دراز مقاماتو ته دَ روزانه ډاک سلسلے انتظام۔ دَ مستحقینو وظایف۔ دَ غریبانو او یتیمانو امداد۔ دَ عوامو دَ سهولت دَ پارهٔ دَ مفید قوانینو اجراء۔ حُکّامُ ته وقتًا فوقتًا دَ متابعت حق تاکید۔ دَ رشوت ستانے بیخ و بنیاد لرے کول دَ مقدموچُستے فیصلے او مکمّل تحقیقات۔ دَ مدرسهٔ عالیه عربیّه دارالعلوم حقانیه اِفتتاح دَ قومی مفادو دَ پاره نوی نوی عمارتونه تعمیرکول۔ قحط زده علاقوله دَ غلّه رسانئے مکمّل بندوبست۔ دَ پاکستان په قیام کښې جدوجهد۔ دَ بیرونی ممالکو په اسلامی مهمّاتو کښې مالی اعانت۔ ځمونږ دَ سلارزو خشکے علاقے له دَ نلونو په ذریعه آب رسانی۔ دَ هندوستان دَ مهاجرینو په امداد کښې غیرمعمولی حصه اخستل۔ دَ جهاد کشمیر په سلسله کښې مسلسل فوځی او مالی امداد وغیره وغیره۔ دا دَ نمونے په طور یو څو مثالونه ذکر شو۔ ورنه کوم کارونه دَ خیر چه صاحبِ موصوف کړی دی او کوی۔ دَ هغے دَ تفصیل دَ پاره یو لوئ دفتر پکار دے۔ مُونږ دُعا کوو چه ربُّ العزت دِ دا حکومت دَ مسلمانانو دَ فائدے دَ پاره تا ابدالآباد قایم او دایم اولری۔ آمین یا مجیب السائلین ط

خالق دِ همیشه په تا نظر دَ عنایت لری
اونل دِ په دنیا کښې ستا قایم شان وشوکت لری

بام دَ ترقئ ته دِ تول تام کړلو اوچت
اوس تام دِ په اقوامو دَ عالم کښې سر اوچت لری

په جذبے دَ همدردئ کښې مستغرق ئے شب وروز
دعا یا هم په سینو کښې ستا جذبے دَ محبت لری

ستا دَ فیضِ عامه به محروم نه وی یو کس
مګر هغه ناکس چه بے اندازه بد قسمت لری

دا عدل دا انصاف او دا امن دا امان
بیشکه بلا ریبَ چه دا شانَ کرامت لری

دَدے دور دَ خوبئ نه په منکر نه وی هیڅوک — مګر هغه نادان چه لوئ علّت دَ ضلالت لری
اوصاف دِ په اطرافو دَ زمین کښ دی معروف — او نوم دِ په آسمان دَ سیاست کښ لوئ شهرت لری
خدائ پاک دِ همیشه وی ستا په نسل مهربان — او هم دِ سرېلنده تا قیام قیامت لری
جهانزیب دَ جهان زیب دے او دے سوړے دَ رحمت — الله تعالیٰ دِ تل څمونږ په سر دا سوړے دَ رحمت لری

دا دُعا دَ ابراهیم ده روز و شب لیل و نهار
مولیٰ دِ دَ هر رنج و هر ګزند نه سلامت لری

# سبب تالیفِ کتاب

ډیره دَ شکریئ خبره ده - چه اعلیٰحضرت بادشاه صاحب صرف څمونږ معاشرتی او دُنیوی اړخ له ترقی نه ده ورکړے - بلکه څمونږ دَ اخروی او دینی ترقیٔ اسباب ئے هم مهیّا کړی او پایه تکمیل ته رسولی دی - او دَ بادشاه صاحب اِراده ده چه کوم کتابونه ډیر مفید او ضروری دی - دَ هغې ترجمه دِ دَ عوامو دَ فائدے دَ پاره په پښتو کښ وکړے شی - په دے سلسله کښ ئے زهٔ دَ حضور ولیعهد صاحب بهادر په اشارے سره دَ عربیٔ ترجیح البیّنات په ترجمه کولو مامور کړم - او دَ عوامو دَ آسانیٔ په لحاظ ئے ماته هدایت وفرمایه چه پښتو ترجمه دِ بالکل ساده - عام فهمه او آسانه وی - دَ دے حکم تعمیل په واقع کښ ډیر مشکل وو - ځکه چه په عربی ترجیح البیّنات کښ دَ شهادتونو او دَ مقدمو مسئلے دَ نورو معتبرو کتابونو او دَ مستندو فتاوُو په حوالے سره نقل دی خو په ډیره مختصره او مجمله طریقه - نو ترکومے پورے چه دَ دِے مقابله دَ اصل کتابونو سره وُنکړے شی - په بعض بعض مسئلو کښ دَ هغے نه خواص هم په آسانئے فائده حاصلولے نه شی - بلکه دا چه دَ عربیٔ ژبے میدان ډیر اوګد او پلن دے او پښتو یوه محدوده او تنګه ژبه ده - نو دَ عربیٔ نه آسانے پښتو ته را نقل کول دریاب په کوزه کښ بندول دی - دَا کار دَ دے ناچیز دَ شان نه ډیر اوچت او لوئ وو - لیکن صِرف دَ خدائ پاک په فضل او په توفیق او په مهربانیٔ سره ما دَ خپل کوشش مطابق سرته ورساوه -

اکثر کتابونه څما سره خپل موجود وُو - او څه رنګ دَ مختلفو ځایونو نه را جمع کړه

په دے سلسله کښې کومو صاحبانو چه ماله دَ پاره کتابونه راکړی دی۔ زهٔ دَ هغو ټولو شکریه ادا کوم۔ او خصوصًا دَ خپل ترهٔ مولانا حاجی عبدالرحیم صاحب ډیر شکر گذار یم۔ چه کوم نایاب کتابونه ئے دَ حجاز نه راوړی وُو هغه ئے ماله دَ دے موقعے دَ پارهٔ ډیر په خوشحالئ سره راکړه۔ فجزاهم الله خیرالجزاء۔

زهٔ دا دعا کوم۔ چه رب العزت دِ دا کتاب په خپل بارگاه کښې مقبول کړی۔ او ځما دَ اُخروی نجات دَ پارهٔ دِ یوه ذریعه وُګرزوی۔

(آمین)

## دَ کتاب متعلق یو څو ضروری خبرے:۔

(۱)۔ مجموعه دَ ترجیح آلتبیانات په عربئ ژبه کښې دَ مقدمو یو معتبر کتاب دے۔ او په اصل کښې درے کتابونه دی۔ دَ هر کتاب مصنف ځان ځان له دے۔ او نومونه ئے هم جُدا جُدا دی۔ دَ یو کتاب نوم "ملجأ القضات" دے دَ بل "طریقهٔ واضحه" او دَ بل "بینة من له الرجحان" او په آخر کښې ورسره یوه رساله هم لګیدلے دهٔ۔ دَ پښتنو دا کتابونه چه سناسو په مخکښې موجود دی۔ دا دَ هغے مجموعے ترجمه دهٔ۔

(۲) په اصل عربی کتاب (مجموعه) کښې درے کتابونه لاندِ بانِ دَ یو کتاب په شکل کښې لیکلے شوی دی۔ یعنے هره یوه پانړه ئے درے حصے دهٔ۔ په برهٔ حصه کښې طریقه واضحه او په مینځنئ حصه کښې ملجأ القضات او لاندِ بیّنة۔ په دے طریقه دَ درے واړو کتابونو سلسله دَ آخره پورے تلے دهٔ۔ لیکن ما دَ پښتو په ترجمه کښې دَ بعضے مشرانو په رائ سره دَ دے ترتیب خیال وُنه ساتهٔ۔ ځکه چه په داسے صورت به عوامو ته دَ مطلب حاصلول گران وو۔ او دَ تکلیف نه به خالی نه وهٔ۔ نو ما دَ آسانئ دَ پارهٔ دَ دریواړو کتابونو ترجمه ځان ځان له وکړه۔ او هر یو کتاب مِ څنګه چه په واقع کښې مستقل کتاب دے۔ جُدا جُدا ولیکهٔ۔ او ملجأ القضات مِ دَ طریقے واضحے نه مخکښې راوړ۔ ځکه چه دَ طریقے واضحے په

بعض بعض مسئلو کښې په ملجأ القضات باندې حواله ورکړې شوې وه۔

(۳) :- دَ مطالعه کونکو دَ آسانتیا دَ پاره ما اکثره ترجمه بالکل ساده اودَ محاورې سره مطابقه کړې ده۔ او صرف لفظي ترجمه مې نه ده کړې۔ اوکوم ځائ چه ما دَ اصل کتاب دَ ترجمې نه علاوه دَ ضرورت سره مناسب دَ خپل طرف نه عبارت زیات کړے دے۔ هغه په توس کښې دننه لیکلې۔ یعنې دَ هغې په شروع او په آخرکښې مې دوه کرښې کوڅې په دې طریقه راښکودلے دی۔(۰۰۰۰۰)

(۴) :- دَ دې کتابونو مسئلے چه دَکومو فتاوو او کتابونو نه راخستې شوې دی دَ هغې حواله دَ مسئلے په آخرکښې ورکړې شوې ده۔ خو دَ مختلفو کتاب اودَ رسالے په کومو کومو مسئلو کښې چه حواله نشته دَ هغې حواله په وُرستو راتلونکې مسئله کښې موجوده دی۔ مثلاً په دریو مسئلو کښې حواله نه ده ورکړې او په څلورمه مسئله کښې ئې په قاضیخان حواله ورکړې ده نو اولے درې مسئلے به هم په قاضیخان کښې موجودې وی۔ دَ حوالے په شروع او په آخرکښې دوه دوه شوشې په دې طور مثلاً " هدایه" لګولے شوې دی۔ دَ پاره دَ دې چه معلومه شي چه دا دَکتاب نوم وغیره دے۔ دَ دې سره دَ عوامو هیڅ تعلق نشته۔

(۵) :- په اصل عربي ترجیح البیّنات کښې حاشیه نشته۔ حاشیه ما دَ خپله طرفه دَ ضرورت سره مطابق اودَ مقام سره مناسب دَ معتبرو کتابونو په حواله لیکلې ده۔ خو دَ دریم کتاب په یو نیم ځائ کښې اصل حاشیه شته دے۔ دَ هغې دَ ترجمې نه وروستو مې دَ فرق دَ پاره۔ح۔ لیکلے اودَ خپلې حاشیې په آخرکښې مې مترجم لفظ زیات کړے دے۔

(۶) :- دَ بعضې ځنې بابونو سرخئ تفصیل طلب وے۔ لکه۔ سلم۔ شرکت۔ مضاربت وغیره۔ دا رنګ نور دَ فقهے خاص خاص لفظونه یا ضروری خبرے۔ نو دَ هغې تفصیل ما دَ اول کتاب په حاشیه کښې یو ځل پوره پوره کړے دے۔ بیا که په دغه کتاب کښې دوباره یا په راتلونکو کتابونو کښې دَ هغې تفصیل ضرورت پیښ شوے۔ نو هلته مې دَ اول کتاب په تیره شوے حاشیه حواله ورکړې۔ او دوباره مې هغه کردان نه دے راوړے۔ او په بعضو بعضو مقامانو کښې مې دَ وړومبی مضمون حواله دَ راتلونکې کتاب په حاشیه هم ورکړې ده۔ مثلاً دَ اول کتاب په باب دَ مزارعت

م ليکلي دي چه دَ مضارعت دَ تفصيل دَ پاره اوګوره حاشيه دَ دويم کتاب باب دَ مزارعت - نو ښائيږي چه دَدے سره مطابق عمل درآمد وکړے شي -

(۷) :- دَ دريم کتاب په بعضو مسئلو کښ چه په ترجيح البينات کتاب حواله ورکړے شوے - دَدے ترجيح البينات نه مراد دا مخکينے کتاب يعنے کتاب ۱۰ دے - او په کومو کومو مسئلو کښ نے چه په نورو کتابونو حواله ورکړے - هغه اکثرے مسئلے هم په کتاب ۱۰ کښ په دغه حوالے سره په خپل خپل باب کښ مذکور دي - دَ دے وجه نه ما دَ دريم کتاب په اکثرو مسئلو کښ صرف د ترجيح نه کار اخستے دے - او ځائ په ځائ م دَ مسئلے په آخر کښ ونيلي دي - چه (اوګوره! ترجيح)

(۸) په دريم کتاب کښ ځنے ځنے مسئلے چه په يو باب کښ مکرر رالوړے شوي دي هغه ما په خپل حال پريښودلے - ځکه چه حوالے ئے غير غير دي او دارنګ حال دَ رسالے دے -

(۹) :- کوم ځائ چه په اصل عربي کتاب کښ دَ کاتب په غلطئ سره په عبارت کښ کم بېرے راغلے - ما دَ هغے ترجمه هم په دغه طريقه کړے - ليکن بيا م ورته په حاشيه کښ اشاره کړے - او دَ هغے م پوره پوره اصلاح کړے ده -

(۱۰) :- په دے کتاب کښ چه زيد - عمر - بکر - خالد - غانم - هند۵ زينبه وغيره نومونه راوړي شوي دي - دا دَ مثال په طور فرضي نومونه دي -

(۱۱) دَ امام اعظمؒ صاحب نه مراد حضرت امام ابو حنيفهؒ دے - او دَ صاحبين نه مراد امام ابو يوسف صاحبؒ او امام محمدؒ صاحبؒ دي او دَ شيخين نه مراد امام ابو حنيفهؒ او امام ابو يوسفؒ دي - او دَ طرفين نه مراد امام ابو حنيفهؒ او امام محمدؒ دي -

(۱۲) :- په کوم شي چه دعوه شوے - هغه چه دَ چا په قبضه کښ وي هغه ته خاوند دَ قبضے ونيلے کيږي - او چا چه پرے دعوه کړے - او هغه شے ئے په قبضه کښ نه وي - نو هغه مدعي بے قبضے دے - او خاوند دَ قبضے

او هغه څوک چه وی شے دَ دعوے په لاس دَ هغه کښې - دَ دے دواړو لفظونو مطلب یو دے - دارنګ مدعی بے قبضه مدعی بهرانی - او هغه مدعی چه نه وی دغه شے په لاس دَ هغه کښې - دَ دے دریؤ واړو لفظونو مطلب یو دے - باقی دَ دے نور بیان به دَ دویم کتاب په مقدمه کښې راشی -

الـعـبـــــــــــد

فقیر محمد ابراهیم بونیری

بازارکوی عفی عنه

ابن مولنا مولوی قاضی محمد عبد المجید صاحب مدرس مدرسه عالیه

عربیه دار العلوم حقانیه واقع سیدو شریف ریاست سوات ومتعلقات

۱۵ رمضان المبارک سنه ۱۳۶۷ھ

تمهید
تمام
عبد المطلب
تعلیم خورد
عبد الرحمن ۱۹۶۲
قوم قاضیان
ساکنه مانیار
ریاست
سوات
قیدی ۱۰ ساله
حال سنٹرل جیل پشاور

کتاب عا

د پښتو

# ملجأ القضات

یعنې

(د قاضیانو د پاره ځائے د پناه)

مترجمه

فقیر محمد ابراهیم بونیري بازارکوی
عفی عنه


د ملاویدو پته

اسلامی کتبخانه قصه خوانی پشاور

(باہتمام حمید دیا الیکٹرک پریس پشاور شہر)

بسم الله الرحمن الرحيم

پاک دے هغه ذات چه دَ هغه دَ کلام نه زیات قوی بل حجّت نشته۔ (یعنے داسے دلیل نشته چه دَ هغه دَ مبارک کلام نه زوردار وی) اودَ هغه په احکامو کښ دَ هغه څوک معارض نشته۔ (او هغه خدائ پاک دے) او درود دِ وی! او سلام! په هغه چا باندے چه خدائ پاک ئے په لویو لویو نښانو سره (په معجزو سره) تائید او مدد کړے دے۔ (یعنے په حضرت محمّد صلے الله علیه وسلم او دَ هغه په آل او په اصحابو کرامو باندے۔

دَدے نه ورستو دا عاجز بنده " چه خپل غني خدائ ته محتاج دے۔ یعنے ابو محمّد غانم بن محمّد بغدادی" وائی۔ چه دا رساله ما دَ بعض قاضیانو دونړو دَ پاره مېنه جمع کړے او جوړه کړے وه۔ ځکه چه هغوئ ځما نه په اشارو کښ طلب دَدے کړے وو۔ او هره خبره که دَ نقل وی او که دَ عقل په هغے کښ دَ خطا یئے نه بچاؤتکے خدائ پاک دے۔ خو ما بیا په دغه رساله کښ سوچ او فکر وکړلو۔ نو ما ته معلومه شوه چه ځما نه دَ هغے ډیرے مسئلے پاتے شوے دی۔ ځکه چه په هغے وخت کښ چه دَ کومو کتابونو مطالعه پکار وه۔ دَ ناوزګاری په سبب ما دَ هغے مطالعه وونکړے شوه۔ نو دَ خپلے اِرادے واکے م دَ کتابونو لټولو جانب ته بیا داوا ړولے۔ نو کومے مسئلے چه را ته مېنه پاتے شوے وے هغه م او موندلے او دَدے سره م تړل کړے۔ اوس دَ خدائے پاک په فضل سره دا رساله دَ دے قسم مسئلو دَ پاره کامله او مکمّله شوه۔ او دَ نورو رسالو نه بے پروائی راومتوکے شوه۔ او ما دَدے رسالے نوم کیخودلو" **ملجأ القضاة عند تعارض البيّنات**" (یعنے دَ شهادتونو دَ ټکراؤ په وخت کښ دَ قاضیانو دَ پاره ځائے دَ پناه) او خاص خدائ پاک هدایت کوُنکے دے۔ او په ابتداء او په انتها کښ (یعنے هر وخت) مدد کوُنکے دے۔

# دَ نِکاح مسئلے

**مسئله** :- که دوؤ خویندو دعوه وکړه دَ یو سړی دَ نکاح (یعنے یوے نیځے وَیل

چه دے سړی ځما سره نِکاح کړے دے - او دَ دے خور وئیل چه ځما سره ئے نکاح کړے دے - او هر یو دَ خپل نکاح په وړومبیوالی شاهدان وړاندې کول او خاوند ته ئے معلومه نه وه (چه نِکاح دَ کومے وړومبے شوے دے - او دَ کومے وروستے) نو قاضی به جدائی راولی دَ دے دواړو او دَ خاوند په مینځکښ ځکه چه په دے دواړو کښ دَ یوے نِکاح خو په یقینی طور سره باطل او ناروا دے - (په سبب د دے چه دَ دوؤ خویندو جمع کیدَل دَ یو سړی په نِکاح کښ جائز نه دی نو چه دَ کومے نِکاح وروستے شوے دے هغه ناجائز او باطل دے -) او معلومه نه ده چه کومه یوه ده - (نو له دے وجې نه به تر دواړه جدا کړے شی) او وی به دواړو لره نیم مهر - په دے باندے اتفاق ذے ځمونږ دَ اماما نو په روایت دَ مبسوط کتاب کښ - ځکه چه دا نیم مهر خو په اصل کښ یوازے دَ هغې یوے حق دے چه دَ کومے نکاح وړومبے شوے دے لکن هغه معلومه نه ده دَ دے وجې نه به دا نیم مهر نیم نیم ورکړے شی دواړو ته - او دَ نیم مهر دَ لازمیدو وجه دا ده چه دلته جدائی راغلے ده مخوا دَ کوروالی نه - نه دَ ښځے دَ جهت نه - او دا قاعده ده چه په داسے صورت کښ لازمیږی نیم مهر - لکن دَ مهر دَ نیموالی دا حکم هله دے - که درے[۳] خبرے وی - یوه دا چه مهر دَ دواړو برابر وی - دویمه[۲] دا چه دَ نکاح په وخت کښ مهر مقرر شوے وی - دریمه[۳] دا چه خاوند ورسره لا کور والے نه وی کړے - او جدائی ئے راغلے وی - او که مهر دَ دواړو مختلف وو - نو بیا به قاضی حکم کوی چه هر یوے ته دِ دَ هغې دَ مهر څلورمه حصه ورکړے شی - او که مهر په نکاح کښ نه وو مقرر شوے - نو دَ نیم مهر په ځائ به دواړو له یوه متعه لازمیږی - (یعنے یو کمیس[۵] - او یو پرتوګ او یو څپو ټیکے او یو لوئ څادر چه دَ سر نه پکښ دَ څپو پورے پټیږی) او که جدائی پس دَ کور والی نه راغلے وه - نو دَ هر یوے دَ پاره به خپل پوره پوره مهر لازم شی - ځکه چه دَ خاوند دَ صحبت کولو او دَ یو ځائے کیدلو په وجه دَ هرے یوے مهر ثابت شوے دے - نوادس به ئے دَ مهر نه څه نه شی کمولے - او مونږ چه مخکښې وئیلی وو چه خاوند ته ئے معلومه نه وه چه نکاح دَ کومے یوے وړومبے شوے دے - نو دا ځکه چه خاوند که یوه خاصه

---

سله که دَ سړی ښځه مړه شوه - او یا ئے طلاقه کړه - او عدت ئے تیر شه - بیائے دَ دغې ښځے خور سره نکاح کاوو - نو دا نکاح جائز دے - مترجم

سله دارنلیا داوړی دی شامی کتاب ۱۲ مترجم

کړه (چه ډدے نکاح مینه شوے دے.) نو قاضی به حکم کوی چه دا ئے ښځه ده. ځکه چه ښځے او خاوند ډ یو بل تصدیق اوکړلو. او ډدغه بلے ښځے او خاوند په مینځکښ به جُدائی راولی. دا مسئله مونږ ډ درد البحار کتاب په شرح کښ په تفصیل سره ذکر کړے ده. سره ډ هغه اختلاف نه چه په د ے کښ دے.

**مسئله** :- زید په یوه ښځه ډ نکاح دعوه وکړه او هغے انکار اوکړلو. نو زید شاهدان وُدرول په دے خبره چه ډدے سره ما نکاح دے. او هغے دعوه وکړه چه زید ځما ډ نکاح چه کوم تاریخ خولے دے ډدغے تاریخ نه ئے وړومبیه ځما خور یا مور یا لُور په نکاح اخستے وه. او اوس ئے ښځه ده. او په دے خبره ئے شاهدان ودرول. حال داوو چه زید منکر وو ډدغے بل نکاح نه. نو ځمونږ ډ امامانو اتفاق دے په دے خبره چه کومه غائبه ده. (یعنے ډدغے حاضرے ښځے هغه خور یا مور یا لور چه دا وائی. زید په نکاح اخستے ده.) ډ هغے په نکاح سره به قاضی حکم نه کوی. لیکن ډدے حاضرے ښځے په بابت کښ اختلاف دے. ډامام صاحب رح په نزد به حکم کیږی ډدے په نکاح سره. او صاحبین وائی چه قاضی به ډدے په نکاح سره هم حکم نه کوی. بلکه ډ هغے غائبے ښځے ډ حاضریدو پورے به صبر کوی. پس که چرے هغه راغله او شاهدان ئے په هغه دعوه وُدرول کومه ورلره چه ډدے حاضرے کړے وه. نو قاضی به حکم کوی چه هغه (غائبه کومه چه اوس حاضره شویده) ډ زید ښځه ده. او دا حاضره ښځه به حیلا کانډی ډ خاوند نه. او که هغے (یعنے هغه غائبے چه اوس حاضره شوے ده) ډ نکاح نه انکار وکړ. (چه ډ زید سره ځما نکاح نه دے شوے) نو قاضی به حکم کوی په نکاح ډ حاضرے سره. او ډدے شاهدانو ته به نه کوری په "حقایق" او دا ئے حکم دے. که دے حاضرے ښځے په ډے خبره شاهدان ودرول چه زید ډ هغے غائبے ښځے په نکاح سره اقرار کړے دے. (یعنے زید ویلی دی چه هغه ما په نکاح اخستے ده.) نو حکم به نه کیږی په نکاح ډ هغے غائبے سره او حکم به کیږی ډدے حاضرے په نکاح سره. او که حاضرے ښځے په دے خبره شاهدان وُدرول چه" زید ځما ډ مور سره نکاح کړے دے. او ورسره یو ځائ شوے دے. یا ئے بښکل کړے ده. یا لاس ئے پرے لګولے دے په شهوت سره. نو قاضی به ډدے حاضرے ښځے او ډ زید په مینځکښ جدائی راولی. او دا حکم به نه کوی چه ډ حاضرے ښځے مور ډ زید منکوحه ده." "خزانه"

**مسئله** :- که ښځه خاوند سره مختلف شو په اندازه دَ هغې مهر کښې چه مقرر کړے شوے وو۔ نو خاوند دعوه کوله چه ما ورسره نکاح کړے دے په عوض دَ زرو روپو مهر کښې۔ او ښځې دعوه کوله چه په عوض دَ دوه زره۔ او دواړو په خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ نو حکم به کیږی دَ ښځې په شاهدانو سره۔ ځکه چه دا شاهدان زیاتوالے ثابتوی۔ (او شاهدان وی دَ پاره دَ اثبات) او که دَ دواړو شاهدان نه وُو نو امام اعظم صاحب رح او امام محمّد صاحب رح وائی چه هر یو له به دَ هغې بل په دعوه قسم ورکیږی۔ (خاوند به قسم کوی چه په دوه زره نه دے۔ او ښځه به قسم کوی چه صرف په زرو نه دے) خو نکاح[1] به نه وُرانیږی۔ پس که دواړو قسم وکړلو۔ نو په دواړو مقدارونو کښې به یو هم ثابت نه شی۔ نو واجب به شی مهر[2] مثل۔ او امام ابویوسف صاحب رح وائی۔ خبره دَ خاوند معتبره ده سره دَ قسم نه۔ لکن که داسے خبره ئے کوله چه په شریعت کښې بده وکا۔ یعنے دعوه ئے کوله کم دَ لسو شرعی روپو نه چه مونږ دا مهر مقرر کړے وو۔ یا ئے وئیل چه ما ورله په مهر کښې شراب یا خنزیر مقرر کړے وو۔ نو بیا معتبره نه ده۔ "حقائق"

**مسئله** :- که یوے ښځې په یو سړی باندے شاهدان تیر کړل چه دَ دهٔ پلار کوم چه مړ دے هغه دَ لوئ اختر په وُرځ په مکه شریفه کښې ځما سره نکاح کړیدے (او زهٔ ئے ښځه وُم۔ خپله حصه میراث غواړم۔) او قاضی ورله حکم وکړه۔ (په میراث سره) پس دَ دے نه یوے بلے ښځې شاهدان وُدرول چه هغهٔ په دغه وُرځ ما سره په خراسان کښې نکاح کړے وو۔ نو دا شاهدان قبول نه دی۔ "قاضیخان په فصل دَ تکذیب دَ شهودو کښې"

**مسئله** :- که دوؤ تنو دَ یوے ښځې دَ نکاح دعوه وکړه۔ او هر یو په دے خبره شاهدان وُدرول۔ "چه دا ځما ښځه ده" حال داوی چه دغه ښځه دَ یو په لاس یعنے په قبضه کښې هم نه وی۔ نو دَ یو جانب په شاهدانو سره به هم حکم نه کیږی ځکه چه په دواړو عمل کیدے نه شی۔ په سبب دَ دے چه یوه ښځه دَ دوؤ تنو ښځه کیدے

---

[1] یعنے په نورو ځایونو کښې دَ دواړو خصمو نو دَ قسمونو خوړلو دا نتیجه وی چه هغه معامله ئے وراته شی۔ چه کومه ئے کړے وی۔ لکن دلته کښې دا حکم نه دے۔ ۱۲۔ مترجم [2] دَ دے ښځې دَ پلار په قبیله کښې دَ دے برابر چه کومه ښځه دی۔ دَ هغې مهر مهر مثل دے۔ نو مطلب دا دے۔ چه ښځه او خاوند دواړه قسمونه وکړی۔ نو مونږ به بیا په مهر مثل فیصله کوؤ۔ که مهر مثل زر روپئ وو۔ یا دَ زرو نه کم نو زر روپئ به لازمے شی۔ او که مهر مثل دوه زره وو۔ یا دَ دوه زرو نه زیات۔ نو دوه زره به لازمے شی۔ او که دَ زرو نه زیات وو۔ او دَ دوه زرو نه کم وو۔ نو چه څه مهر مثل ئے وی۔ هغه به لازم شی۔ باقی دَ مهر دا مسئله به په تفصیل سره کا ذکر شی۔ ۱۲۔ مترجم

نه شي په شريکه - نو دَ ښځې تصديق ته به ګورو- دَ کوم يو چه ښځې تصديق اوکړو- دَ هغه ښځه به شي -خو دا حکم هله دے چه دَ دواړو مدعيانو شاهدانو تاريخ دَ نکاح نه وي ذکر کړے - او که شاهدانو تاريخ ذکر کړے وي - نو خاوند وړومبي تاريخ غوره دے - او که دَ شاهدانو دَ ودرولو نه مخکښ دَ يو دَ پاره ښځه اقرار وکړي - نو دا به دَ هغه ښځه شي ځکه چه دے او مدعي دَ يو بل تصديق وکړ- بيا که هغه بل مدعي شاهدان ودرول نو دَ هغه دَ پاره به حکم کيږي - ځکه چه شهادت قوي دے دَ اقرار نه- (او وجه دا ده چه شهادت اثر په بل پريوزي - او دَ اقرار په اقرار کونکي) او که وړومبے صرف يو تن دعوه وکړه او ښځه منکره وه - نو ده شاهدان ودرول- او قاضي ورله په دے شهادت سره حکم وکړ- (چه ستا ښځه شوه) دَ دے نه وروستو بل مدعي راغے - او دا رنګ شاهدان ئے ودرول - نو قاضي به دَ دے دوئيم مدعي په شاهدانو سره حکم نه کوي - ځکه چه دَ قاضي وړومبے حکم صحيح شوے دے - نو نه به ماتيږي په هغه شهادت سره چه هغه په مثل دَ وړومبي شهادت دے - بلکه ادنٰی دے - (ځکه چه وړومبي شهادت سره قاضي حکم کړے دے-) ليکن که دَ دوئيم مدعي شاهدانو تاريخ دَ نکاح دا سے اوخود- چه وړومبے وو دَ هغه تاريخ نه کوم چه دَ اول مدعي شاهدانو خودلے وو- نو بيا به دَ دوئيم مدعي شاهدان قبليږي - ځکه چه ظاهره به شي چه دَ قاضي وړومبے حکم خطا وو-

او دا رنګ حکم دے - که ښځه دَ خاوند په قبضه کښ وه - او نکاح ئے خلقو ته ښکاره وو - او بهرانی مدعي پرِ دعوه کوله چه دا زما ښځه ده - او شاهدان ئے ودرول - نو دا شاهدان نه قبليږي - ليکن که دوئ په دے خبره شاهدي وکړه چه دَ دے مدعي نکاح ورسره وړومبے شوے دے دَ خاوند دَ قبضے نه - نو بيا دا شاهدان قبول دي "هدايه"

**مسئله**:- دَ جامع الفصولين کتاب په اتم فصل کښ راوړي دي - چه دوو تنو که په يوه ښځه دَ نکاح دعوه وکړه - او دواړو شاهدان ودرول په نکاح باندے بے دَ ذکره دَ تاريخه دَ نکاح نه - او يو خاوند دَ قبضے وو - او بل بے قبضے (يعنے دغه ښځه دَ يو په قبضه کښ وه - او دَ بل نه وه-) نو حکم به کيږي سپه شاهدانو دَ خاوند دَ قبضے سره - او که مينه دَ مدعي بے قبضے دَ پاره دَ هغه دَ شهادت په سبب حکم وکړے شي - (پس) دَ هغے نه خاوند دَ قبضے په خپله دعوه شاهدان ودرول - نو

اسے : دا شهادت قبول دے اوکه نه ؟ په دے کښ عالمان مختلف شوی دی - اوکه دا نئے واقعه دَ نکاح نه سوا په مطلق ملکیت کښ وه (یعنے مُدعی بے قبضے چه شاهدان وُدروی په ملکیت باندے چه دا شے خما دے - او قاضی ورلره حکم وکړی - دَدے نه ورستوکه خاوند دَ قبضے شاهدان وددرول) نو شاهدان دَ خاوند دَ قبضے په ملکیت باندے قبول نه دی - پس دَ هغے نه چه دَ دهٔ په خلاف حکم کړے شوے وی - او دا حکم اتفاقی دے - ختم شه مضمون دَ جامع الفصولین

**مسئله** :- که دوؤ تنو دَ یوے ښځے دَ نکاح دعوه وکړه - او یوتن دَدے دواړو نه دعوه دَ نکاح اودَ دخول دواړو کوله - (یعنے دا ئے وئیل چه دے ښځے سره ما نکاح کړے دے - او کوروالے م ورسره هم کړے دے -) اودَدهٔ شاهدانو په نکاح او په دخول دواړو باندے شاهدی وکړه - نو قاضی به ددهٔ دَ پاره حکم کوی - اوکه په دے دواړو من عیانو کښ هر یو شاهدان وُدرول په نکاح او په دخول دواړو باندے - نو قاضی به دَ یوۀ پاره هم حکم نه کوی -

**مسئله** :- که دوؤ تنو دَ یوے ښځے دَ نکاح دعوه وکړه - او په دے کښ یوتن تاریخ دَ نکاح ذکر کړے وو - او شاهدانو ئے په نکاح او په تاریخ دواړو شاهدی کوله - نو دے غوره دے - اوکه یو تاریخ دَ نکاح ذکر کړے وو - او هغه بل نه وو ذکر کړے - لیکن ښځه دَ هغه یو په قبضه کښ وی چه تاریخ ئے نه دے ذکر کړے - نو حکم به کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے - او دارنګ حکم دے که یو تاریخ دَ نکاح ذکر کړے وو - او بل نه وو ذکر کړے - لیکن کوم یو چه تاریخ نه وو ذکر کړے - هغه شاهدان وددرول په دے خبره چه دَدے ښځے سره ما نکاح کړے دے - اوکوروالے - نو دے غوره دے - (یعنے حکم به کیږی دَ پاره دَ هغه مُدعی چه شاهدانئے په نکاح او په دخول دواړو تیر کړی دی -

**مسئله** :- که دوه تنه دَ یوے ښځے دَ نکاح دعویٰ اروو - او ښځه په دَے دواړو کښ دَ یو په قبضه کښ وه - اودَدهٔ شاهدانو په دے خبره شاهدی کوله - چه دا ښځه دَدهٔ ښځه ده - یا په دے خبره چه دا ښځه دَدهٔ منکوحه ده - او ورله حلاله ده - او دَ مُدعی بے قبضے شاهدانو په دے خبره شاهدی کوله چه دَدے ښځے سره دے مدعی

---

له که هغه یو په نکاح او په دخول شاهدان وددرول - او ښځے دَ یو په دَ دویمی دخول سره اقرار وکه - نو دَ هغه بنی په شه... اقرار ... کره - نو قاضی به دَ دوی په مینځکښ جدائی وادوی - دارنګ ... [illegible] دعوه دَ ملک بسبب ...

نکاح کړے دے۔ نو دَدے مسئلے په حکم کښې عالمان صاحبان مختلف شوی دی۔ بعض
والیٰ چه شاهدان دَ خاوند دَ قبضے معتبر نه دی۔ ځکه چه دَ خاوند دَ قبضے شاهدان
دَ مدعی بے قبضے په شاهدانو هاله غوره کیږی۔ چه شاهدان دَ خاوند دَ قبضے
شاهدی وکړی په سبب باندے۔ ( مثلاً دَ زید په قبضه کښې یو شے دے۔ بکر
پرے دعوه کوی۔ او شاهدان وړدروی۔" چه دا شے ما دَ خالد نه په بیعه اخستے دے
او زید شاهدان وړدروی چه دا ما دَ خالد نه په بیعه آخستے دے۔ نو شاهدان
دَ زید غوره دی۔ ځکه چه په سبب دَ ملکیت یعنے په بیعه شاهدی کوی۔ دا رنګ
نکاح کول) او څونړ په دے مسئله کښې دَ خاوند دَ قبضے شاهدان چه کومه شاهدی
کوی۔ دا خو داسے شاهدی ده۔ لکه په مطلق چه وی۔ ( مطلق ملکیت هغه دے
چه سبب دَ ملکیت پکښې نه وی ذکر کړے شوے۔ مثلاً دَ زید په قبضه کښې څه
شے دے۔ بکر پرے دعوه کوی۔ او شاهدان وُدروی" چه دا ځما دے" او زید
شاهدان وُدروی" چه دا ځما دے۔ نو شاهدان دَ بکر غوره دی) نو قبول نه دی شاهدان
دَ خاوند دَ قبضے۔ او بعضے عالمان والیٰ چه قبول دی۔ ځکه چه دَ شاهدانو دا شاهدی
کول چه دا ښځه دده ښځه ده۔ یا دا چه منکوحه ئے ده۔ او ورله حلاله ده۔ دا جوړ
شاهدی ده په سبب باندے۔ ځکه چه ښځه چه دَ چا ښځه کیږی۔ او منکوحه
او حلاله ورله ګرزی۔ نو په یو خاص سبب سره۔ او هغه سبب نکاح دے۔ او کوم
ځائ چه دَ حکم دَ پاره یو سبب وی۔ هلته ذکر کول دَ حکم داسے دی۔ لکه ذکر دَ
سبب۔ په خلاف دَ ملکیت نه۔ ځکه چه دَ ملکیت دَ پاره ګنړ سببونه دی۔ ( بیعه
او صدقه او میراث وغیره۔ او دا سببونه بعض دَ بعضونه غوره نه دی۔ تر کومے
پورے چه یو خاص سبب ذکر نه کړے شی۔ تو یو سبب نه شی معین کیدے۔ ) او
څونړ په دے مسئله کښې دَ ښځوالئ دَ پاره خاص یو سبب دے۔ چه نکاح دے
نو ځکه شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره شول۔ )" قاضیخان"

**مسئله**:- که چا دعوه دَ نکاح وکړه په باکره جینئ باندے۔ ( یعنے داسے جینئ چه
پرده دَ رحم ئے دَ جماع په سبب نه وی لرے شوے) تو جینئ ورته وئیل چه ځما
واکدار وَلی کوم وخت زه تاله دَ رکولم په نکاح۔ په هغه وخت کښې ما رد کړے وو۔ ( ما
وئیلی وُو چه زه دے نکاح ته غاړه نه کدم۔ راضی پرے نه یم) او خاوند وئیل چه داسے
نه ده۔ بلکه ته په هغه وخت کښې چپ شوے وے۔ نو په دے مسئله کښې څونړ په

نزدَ چینئے خبرہ معتبرہ دہ ۔ ځکه چه دا دَ نکاح دَ لازم کیدلو نه انکار کوی ۔ او امام زفر صاحبؒ وائی ۔ چه دَ خاوند خبرہ معتبرہ دہ ۔ ځکه چه هغهٔ یو داسے شے پیش کړے دے چه هغه اصل دے ۔ ( یعنے چپوالے ) او که دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول نو دَ ښځے شاهدان غوره دی ۔ ځکه چه ښځه دَ رد ثبوت کوی ۔ او خاوند ئے دَ رد نشتوالے راولی ۔ او هغه چپوالے دے ۔ ( او شاهدان وی دَ پاره دَ ثبوت نه دَ پاره دَ نشت ) او که خاوند په دے خبره شاهدان وُدرول چه دے ته کوم وخت دَ دے نکاح خبر "علم" وُشهٔ ۔ نو دے اجازه اوکړه ۔ یا راضی شوه ۔ او هغے شاهدان "ودرول" په دے خبره چه کوم وخت ما ته دَ دے نکاح علم وُشهٔ ۔ نو ما رد وکړلو ۔ نو په دے صورت کښ دَ خاوند شاهدان غوره دی ۔ ځکه چه دا شهادت دَ نکاح لازموالے ثابته وی ۔ "عنایه شرح هدایه"

**مسئله** :۔ که یوے ښځے ووئیل چه دا سړے ما پرون په نکاح اخستے ۔ بیائے او وئیل چه دا بل سړے ما دَ یو کال نه په نکاح آخستے ۔ نو دا ښځه به دَ هغه سړی ښځه شی چه دَ کوم په پرونی نکاح سره ئے اقرار کړے دے ۔ او که دوؤ تنو دَ یو ښځے دَ نکاح دعوه اوکړه ۔ او دَ هر یو شاهدانو په دے خبره شاهدی کوله "چه دے ښځے دَ دهٔ په نکاح سره اقرار کړے دے ۔ او حال دا وو چه ښځے انکار کا وو ۔ نو امام ابو یوسف صاحبؒ وائی ۔ چه دَ قاضی خوښه ده دَ کوم یو شاهدان ئے چه ورو بے واخستل دَ هغهٔ په حق کښ دے حکم وکړی ۔

**مسئله** :۔ یوه ښځه مړه ده ۔ دوؤ تنو ئے دَ نکاح دعوه وکړه ۔ هر یو شاهدان وُدرول په دے خبره چه دَ هغے سره ما نکاح کړے وه ۔ نو قاضی به دَ دے دواړو مدعیانو دَ پاره حکم کوی په هغه حصه دَ میراث ئے سره چه ورکیدے شی یو خاوند وَ ته ( یعنے دا دواړه به په شان دَ یو خاوند شی ) ځکه چه حکم دَ نکاح پس دَ مرلو نه میراث وړل دی ۔ او په میراث کښ شراکت کیدے شی ۔

**مسئله** :۔ که یو سړی په یوه ښځه باندے دعوه وکړه ۔ " چه دا ځما ښځه ده " او ښځے دعوه وکړه چه زهٔ دَ دے بل سړی ښځه یم ۔ او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول او حال دا وو چه دغه بل سړی دَ دے دَ ښځوالئ نه انکار کا وو ۔ نو امام محمّد صاحبؒ وائی چه دَ مُدعی خاوند شاهدان غوره دی ۔ او کوم وخت چه ښځے شاهدان ودرول ۔ چه زهٔ دَ دے بل سړی ښځه یم ۔ که په دغه وخت کښ دغه بل سړی هم دعوه کوله ۔ چه

هودا حما ښځه ده - نو بیا شاهدان د ښځې غوره دی :" قاضیخان "

**مسئله** :- مسلمان او فیرنګي دواړو د یوې فیرنګنړې ښځې د نکاح دعوه وکړه - او هر یو په خپله دعوه باندې فیرنګیان شاهدان وړاندې کړل - نو د امام صاحب رح او د امام محمد صاحب رح په نزد به د مسلمان د پاره حکم کیږي - او د امام ابویوسف صاحب رح په نزد به د پاره د فیرنګي -" دخیره کتاب په باب د شهادت د ذمي کښې "

**مسئله** :- که چا د یوې داسې ښځې د نکاح دعوه وکړه چې هغه د بل په قبضه کښې وه او ښځې اقرار وکړو د دې مدعي بې قبضې د پاره - بیا خاوند د قبضې او مدعي بې قبضې دواړو د دغې ښځې په نکاح باندې شاهدان وړاندې کړل بې د ذکره د تاریخ د نکاح نه - نو حکم به کیږي د پاره د مدعي بې قبضې - ځکه چې ښځې ئې په حق کښې اقرار کړې دې - او که مدعي بې قبض شاهدان وړاندې کړل په نکاح باندې - او شاهدانو ئې تاریخ د نکاح وښوو او د ده وړاندې کړل وی شاهدان په دې خبره چې خاوند د قبضې خو داسې اقرار کړې وو - وئیلي ئې وو " چې ما دا ښځه په فلانۍ تاریخ په نکاح آخستې ده - او تاریخ ئې داسې وښوو - چې د ده ( یعنې د مدعي بې قبضې ) د شاهدانو د تاریخ نه وروستو وو - نو شاهدان د مدعي بې قبضې غوره دی - او په دې سره به د خاوند د قبضې شاهدان دفعه شي - لکن که خاوند د قبضې خبره برابره کړه - او دې وئیل چې ما دا ښځه د دې مدعي بې قبضې د نکاح نه مخکښې آخستې وه په نکاح سره - خو وروستو م دوسره بیا نکاح تازه کړې دې نو بیا شاهدان د خاوند د قبضې نه دفعه کیږي -

**مسئله** :- که دوه تنه د یوې ښځې د نکاح په بابت کښې په جګړه شو - او په دې دواړو کښې هر یو دعوه کوله چې دا ښځه ما مخکښې په نکاح آخستې ده - حال دا وو - چې ښځه د یو په کور کښې وه - نو هغه غوره دې - دا داسې ده - لکه چې په قبضه کښې ئې وی او دا ئې حکم دې - که یو دوسره کور واله کړې وی - ( نو هغه غوره دې ) ځکه چې دغه ښځه ئې چې په قبضه کښې ده - پس که هغه بل مدعي په دې خبره شاهدان وړاندې کړل چې دا ښځه ما د ده د نکاح نه مخکښې په نکاح آخستې ده - نو کوم یو چې شاهدان وړاندې کړل دی - په دوو مبیوالی باندې - قاضي به د هغه د پاره حکم کوی - ځکه چې معلومه شي - چې دغه بل ترې دغه ښځه په زور آخستې ده -" خزانه "

**مسئله** :- که دوه تنه د یوې ښځې په بابت کښې په جګړه شو - په دې دواړو کښې هر یو دعوه کوله - چې دا حما ښځه ده - او دواړو په خپله دعوه شاهدان وړاندې کړل - نو په دې

کښې دېر صورتونه دی۔ یا به دواړو د نکاح تاریخ خولے وی۔ او تاریخ به د دواړو یو وی (او ښځه به د یو په قبضه کښې هم نه وی) یا به دواړو تاریخ خولے وی۔ او ښځه به د دواړو په قبضه کښې وی۔ یا به په دے دواړو کښې یو هم تاریخ نه وی خولے۔ (برابره دا۔ که دواړه بے قبضے وی۔ او که دواړه خاوندان د قبضے وی۔ نو په دے درے واړو صورتونو کښې به قاضی د یو د پاره هم به د غه ښځه سره حکم نه کوی۔ ځکه چه د دواړو مدعیانو حجتونه برابر دی۔ نو په مستحق والی کښې هم دواړه برابر شو۔ (او یوه ښځه د دواړو په شریکه کیدے نشی۔ نو د دے وجې نه به د یو د پاره حکم هم نه کوی۔ لکن که ښځے په دواړو کښې د یو تن تصدیق وکه۔ یا د یو په کور کښې اوسیدله۔ نو بیا به د هغه د پاره حکم کیږی۔) او که دواړو تاریخ خو یو خولے وو۔ لیکن ښځه د یو په قبضه کښې وه۔ نو حکم به کیږی د پاره د خاوند د قبضے۔ ځکه چه د ده حجت (شهادت د قبضے په وجه قوی شو بیځے۔ او که یو تاریخ خولے وو۔ او هغه بل نه وو خولے نو تاریخ والا غوره دے۔ او که د یو قبضه وه او بل تاریخ خولے وو۔ نو قبضے والا غوره دے۔ په سبب د قبضے۔ ځکه چه دواړه مدعیان د ملکیت حاصلو دعوه کوی د یو جهت نه۔ (یعنے هر یو وائی چه دے ځان ماله په نکاح راکړے دے) نو د یو دا موجوده قبضه دا ښائی۔ چه د ده ملکیت (یعنے خاوند والے) وړومبے دے) نو د دے وجه نه خاوند د قبضے غوره شه۔ او که د یو د پاره ښځے اقرار وکړو۔ "چه دا م خاوند دے" او هغه بل تاریخ د نکاح خولے وو۔ نو د کوم یو د پاره چه ښځے اقرار کړے دے د هغه د پاره به حکم کیږی ځکه چه د ښځے اقرار د هغه په حق کښې داسے دے۔ لکه د هغه قبضه۔ (لیکن که ښځه د یو په قبضه کښې وه۔ او اقرار د نکاح ئے د هغه بل د پاره کا وو۔ نو دا اقرار بے کاره دے)

**مسئله**:۔ که ښځه مړه شوے وه۔ پس د هغے د مرګ نه دوو تنو د هغے د نکاح دعوه کوله۔ نو په دے کښې هم ډیر صورتونه دی۔ خو دلته اقرار او قبضے له اعتبار نشته۔ پس که د یو تاریخ مخکښې وو د هغے بل نه۔ نو د وړومبی تاریخ واله د پاره به حکم کیږی چه دے د د غه ښځے په میراث کښې حقدار دے۔ په خزانه کتاب کښې ئے دا هم وئیلی دی چه په ده د غه مړے ښځے پوره مهر هم لازم وی۔ او که دواړو مدعیانو تاریخ د نکاح نه وو خولے۔ یا دواړو یو تاریخ خولے وو۔ نو حکم به کیږی د دواړو د پاره په شریکه۔ (نو داسے به شی لکه چه دوئ دواړه ئے خاوندان وی۔ د یو خاوند په ځائ۔) نو په هر یو د د غے ښځے نیم مهر راځی۔ او دواړه به په شریکه سره

دَ هغې دَ میراث نه دَ یو خاوند میراث آخلی۔

**مسئله** :- زنې شاهدان وُدرول په دے خبره چې دا ښځه ما په نکاح اخستې ده او ښځې شاهدان وُدرول چې ځما خاوند دا بکر دے۔ او حال دا وو چې بکر انکار کا وو۔ چې زۀ ئې خاوند نه یم۔ نو شاهدان دَ زنې غوره دی۔

**مسئله** :- یو سړی دعوه وکړه چې دا ځما ښځه ده۔ کوروالے ئې ورسره کړے دے په جائز نکاح سره دَ څلورو کالو نه۔ او په دے دعوه ئې شاهدان وُدرول۔ او یو بل سړی دعوه وکړه چې دا دَ پنځو کالو نه ځما ښځه ده۔ کوروالے ئې ورسره کړے دے۔ او دې هم ځما دَ پاره دا اقرار کړے دے۔ او ځما په قبضه کښې ده۔ او دے دویم مُدعی هم په خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ نو دا شاهدان غوره دی۔ ځکه چې دا دویم مُدعی دَ خپل نکاح دوه مبیوالے ثابته وی۔ او دا چې ښځې په قبضه کښې ده۔ او دا چې ښځې ورلره اقرار کړے دے۔ او دا قول دَ غوره والی سببونه دی۔

**مسئله** :- یوه جینئ په ورکوتوالی کښې دَ پلار نیکه نه سوا بل واکدار چا له په نکاح ورکړے وه۔ اوس ځوانئ ته دَ رسیدو نه وُروستو ئې) جینئ که په دے خبره شاهدان وُدرول چې کوم وخت زۀ ځوانئ ته وُرسیدم۔ نو سره دَ رسیدو نه مې دَ دے نکاح رَد وکړلو۔ (اوُم ویل چې په دے شوی نکاح راضی نه یم۔ غایه نه کړم) او خاوند ئې شاهدان وُدرول په دے خبره چې ته په دغه وخت کښې چپ شوے وے۔ هیڅ دے نه وو ویلی۔ نو شاهدان دَ ښځې قبول دی۔ ځکه چې دوئ ثابتوی یو کار یعنې دَ ښځې انکار۔

**مسئله** :- که ښځه او خاوند دبچی پیدا کیدو نه وُروستو دَ خپل نکاح په صحیح والی او فاسد والی کښې مختلف شول۔ نو خاوند دعوه وکړه۔ چې دا نکاح (په شروع) فاسد شوے دے۔ او ښځې دعوه وکړه چې صحیح دے۔ او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ نو چې چا دَ فاسد والی دعوه کړے ده۔ دَ هغه شاهدان غوره دی۔ او دَ بچی نسب به ثابت وی۔ دَ دغه سړی نه۔ "خزانه"

**مسئله** :- که دَ ښځې او دَ خاوند دَ مهر په مقدار کښې اختلاف راغے۔ (ښځې دَ زیاتې دعوه کوله۔ او خاوند دَ کم) نو کوم یو چې شاهدان وُدرول دَ هغه دَ پاره به حکم کیږی۔ او که دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول نو حکم به کیږی دَ پاره دَ ښځې۔ که مهر مثل شاهد وو۔ دَ پاره دَ خاوند۔ په دے طریقه چې دَ کوم مقدار خاوند دعوه

کړی وی ۔ مهر مثل دَ دغے مقدار په مثل وی یا ترے کم وی ۔ (نو په دے صورت کښې شاهدان دَ ښځے غوره دی) ځکه چه ظاهر حال دَ خاوند دَ پاره شاهد دے ۔ اودَ ښځے شاهدان یو داسے شے ثابته وی ۔ چه هغه خلاف دے دَ ظاهر نه (یعنې زیاتوالے) او حکم به کیږی دَ پاره دَ خاوند خو هله که مهر مثل شاهد وو دَ پاره دَ ښځے ۔ په دے شان سره چه دَ کوم مقدار ښځے دعوه کړے ده ۔ مهر مثل دَ دغے مقدار برابر وی ۔ یا ترے زیات وی ۔ (نو په دے صورت کښې شاهدان دَ خاوند غوره دی) ځکه چه دے کموالے ثابته وی ۔ او هغه خلاف دے دَ ظاهر نه ۔ اوکه مهر مثل نه دَ ښځے دَ پاره شاهد وو ۔ اونه دَ خاوند دَ پاره ۔ په دے طور سره چه کم وو دَ هغے مقدار نه چه ښځے ئے دعوه کړے ده ۔ اوزیات وو دَ هغے مقدار نه چه خاوند ئے دعوه کړی ۔ نو په دے صورت کښې په دَ دوارو شاهدان ؤغورځیګی ۔ ځکه چه دَ ښځے شاهدان زیاتوالے ثابته وی ۔ اودَ خاوند شاهدان کموالے ۔ نو دواړه په اثبات کښې برابر شو ۔ اویو دَ بل نه غوره نه شو ۔ "درر کتاب"

**مسئله** :۔ که ښځے دعوه وکړه چه زهٔ کوم وخت دے سړی له خپل پلار په نکاح ورکولم نو بالغه وُم ۔ او په دے نکاح راضی نه وُم ۔ اودغه خاوند ئے دعوه وکړه چه دَ دے پلار چه دا ماله په نکاح راکوله ۔ نو دا وړه وه ۔ نو خبره دَ ښځے معتبره ده او که دواړو شاهدان وُدرول ۔ ښځے په دے خبره چه زهٔ دَ دے نکاح په وخت کښې دَ ځلو کالو وُم ۔ او سړی دَ دے خبرے چه دا دَ اَتو کالو وه ۔ نو شاهدان هم دَ ښځے غوره دی ۔ دا مسئله راوړے ده قاضیخان په شرایط دَ نکاح کښې ۔ اودا شاهدان په دے وجه غوره شو چه دوئ په ثابتولو کښې دَ خاوند دَ شاهد (تو نه زیات دی ۔ اوصاحب دَ وجیز کتاب ئے هم داوجه خوښولے ده ۔ ویلی ئے دی ۔ چه یو سړی په دے خبره شاهدان وُدرول چه دا ښځه پلار ماله دَ دے دَ بالغ کیدو نه مخکښې په نکاح راکړے وه ۔ اودغه ښځے په دے خبره شاهدان وُدرول چه زهٔ ځوانئے ته رسیدلے وُم پس دَ هغے نه ئے زهٔ ده له بے ځما دَ رضا نه په نکاح ورکړے یمه ۔ نو دَ ښځے شاهدان غوره دی ۔ ځکه چه دَ دے شاهدان بالغوالے ثابتهٔ وی ۔ نو په اثبات کښې زیات شو ۔

**مسئله** :۔ دَ امام محمّد صاحب رح نه روایت دے چه سړی که په دَ خبره شاهدان وُدرول " چه دا ښځه ما په نکاح اخستے ده ۔ په عوض دَ زرو روپو مهر کښې اودغه ښځے شاهدان وُدرول ۔ چه ده ځما سره نکاح کړیے په عوض دَ دوو زرو روپو مهر کښې نو قاضی بحکم کوی چه مهر ئے زر روپئے دے ۔ په خلاف دَ

---

سله په بحرالرائق کښې ویلی دی چه صحیح خبره داده چه په دَ صورت کښې به مهر مثل لازمیږی ۱۲ مترجم

هغے صورت نه چه یو سړی په بل باندے څه شے خرڅ کړے وو. او شاهدان وُدرَوی چه مادغه شے په دے اخستونکی باندے په دوه زره روپئ خرڅ کړے دے. او دغه اخستونکے شاهدان وُدروی په دے خبره "چه ما په زر روپئ دده نه اخستے دے" نو حکم به کیږی چه په دوه زره دے. وجه دَ فرق دادہ چه په نکاح کښ دَ فسخ (یعنے دَ ورانیدو) احتمال نشته. (قابل دَ ورانولو نه دے) او خاوند او ښځے چه دَ کوم کوم نکاح دعوه کړے. هغه دَ یو بل نه غیر غیر دی (خاوند وائی نکاح په زر روپئ مهر شوے. او ښځه وائی چه په دوه زره) نو شاهدان دَ دواړو او غوره یدل. او نکاح ثابت دے. ځکه چه دواړو منلے. او مهر زر روپئ لازم شه ـ ځکه چه خاوند اقرار کړے دے او بیعه فسخ کیدے شی (یعنے دَ ورانولو قابله ده.) نو مونږ به وایُو چه گویا دغه شے ئے دَ خرڅونکے نه ممکښ په زر روپئ اخستے وو. خو دواړو بیا دغه بیعه ورانه کړے وه نو دغه شے دوباره دے اخستونکی دَ دغه خرڅونکی نه په دوه زره روپئ واخستلو. او دا بیعه په ځائ پاتے ده. (نو دے وجے نه په اخستونکی دوه زره روپئ راغلے.) دا مسئله راوړے ده وجیز کتاب.

زه وایم. چه دا بیان مخالف دے. دَ حقایق کتاب دَ هغه بیان نه چه مخکښ تیر شوے دے. ځکه چه په دا سے ځائ کښ دَ ښځے شاهدان غوره وی په سبب ددے چه زیاتوالے ثابتوی. او صحیح خبره په دے مسئله کښ لکه چه زیلعی وئیلی دی. هغه تفصیل دے. کوم چه مونږ دَ درر او غرر کتاب نه نقل کړے دے. او مخکښ تیر شوے دے.

**مسئله**:- که ښځے خپل خاوند ته اووئیل. چه تا ما سره په دے خپل مرئی (غلام) نکاح کړے دے. (یعنے مهر دِ ماله دا مرئے مقرر کړے وو) او خاوند ئے اووئیل چه ماتاله دا خپله وینځه په مهر کښ مقرر کړے وه. او حال دا وی چه دغه وینځه دَ دے ښځے مور وی. او ښځے او خاوند دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول. نو شاهدان دَ ښځے غوره دی ځکه چه دَ دے شاهدان دَ دے په حق کښ وُدریدلی دی. او دَ خاوند شاهدان په پردی حق کښ وُدریدلی دی. پاتے شوه دغه وینځه (خواخې) نو هغه به په دے سړی آزاده شی. ځکه چه دهٔ اقرار کړے دے. مطلب

دادے چه دغه مرئے خو دَ ښځے شهٔ ـ ځکه چه شاهدانو شاهدی وکړه ـ او دغه وینځه
ګویا هم دَ دے ښځے شوه ـ ځکه چه خاوند اقرار کړے دے ـ چه ما ناله په مهر
کښی دا وینځه مقرر کړے وه ـ ګویا لُور دَ خپلے مور مالکه وګرزیده ـ او دا
قاعده ده ـ" چه څوک دَ خپلے مور یا پلار یا دَ خوئ یا دَ لُور یا دَ بل داسے نسبی
چه نِکاح ئے ورسره حرام وی ـ" مالک وګرځی ـ نو هغه پرے آزادیږی ـ نو دَ دے
وجه نه دا وینځه دَ اقرار په سبب په خاوند رآزاده شوه ـ

**مسئله** :- که خاوند شاهدان وُدرول په دے خبره چه ما په زر روپئ
مهر نه په نکاح آخستے ئے ـ او دغه ښځے شاهدان وُدرول چه تا ځما سره په
شلو اشرفو مهر بانِدے نکاح کړے دے ـ او دَ دے ښځے پلار کوم چه ئے دَخاوند
مرئے وو ـ په دے خبره شاهدان وُدرول چه تا ځما دِے لور له په مهر کښی
زهٔ مقرر کړے وُم ـ نو شاهدان دَ پلار غوره دی ـ او که سره دَ دے نه دَ
دغے ښځے مور کومه چه ئے دَ خاوند وینځه ده ـ شاهدان ودرول په دے
خبره چه تا ځما دے لُور له په مهر کښی زهٔ مقرره کړے وُمه ـ نو شاهدان دَ
پلار او دَ مور غوره دی ـ (ځکه چه دوئ ثابتوی مهر والے او آزادوالے ـ نو زیات
شو په ثابتولو کښ) نو نیمه حصه دَ پلار او نیمه حصه دَ مور دا دواړه به دَ ښځے دپاره
پوره مهر شی ـ او مور او پلار دواړه به دَ خاوند دَ پاره په خپل قیمت کښی
کوشش کوی ـ (یعنے نیمه حصه څوئے په دغه ښځه دَ مهر والی دَ وجے آزاد
شوه ـ او دَ خپلے خپلے باقی نیمے حِصے دَ آزادولو دَ پاره به کوشش کوی ـ خاوند
له به چرته قیمت ګوری ـ) او که دارنګ واقعه نه وه خو ښځے شاهدان
وُدرول چه تا ځما سره په سلو اشرفو مهر نکاح کړے دے ـ او خاوند ئے
شاهدان وُدرول چه ما تا سره په سلو روپو مهر نکاح کړے دے ـ او قاضی
دَ ښځے دَ پاره دَ هغے په شاهدانو سره حکم وکړلو" چه دا نکاح په سل
اشرفئ مهر شوے دے ـ پس دَ دے نه دَ دغے ښځے پلار" کوم چه ئے دَخاوند
مرئے وو" په دے خبره ګواهان وُدرول چه تا ځما دا لُور په نکاح آخستے ده
ځما په ذات باندے ـ (یعنے زهٔ دِ ورلره مهر ګرزولے یُم ـ) نو قاضی به تحیل
وُړمبے حکم مات کړی ـ او حکم به کوی چه پلار ئے مهر دے ـ

**مسئله** :- که ښځه او خاوند مختلف شو په بابت دَ هغه کور کښی چه او سیدل

پکښې دواړه - نو هر یو دعوه کوله . چه دا کور ځما دے - نو (که دَ ښځې شاهدان نه وُو)
په دے کښې خبره دَ خاوند معتبره ده - او که ښځې په خپله دعوه شاهدان
وُدرول - یا دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول - نو حکم به کیږی
په شاهدانو دَ ښځې سره - ( یعنې شاهدان دَ ښځې غوره دی - ) ځکه چه ښځه په
اصل کښې بے قبضے ده - ( او دوه تنه چه په یو شی د ملکیت مطلقه دعوه
وکړی - یعنې هر یو وائی چه دا ځما دے - او یو خاوند دَ قبضے وی - او بل بے
قبضے نو شاهدان دَ مُدعی بے قبضے غوره دی) ....

**مسئله** :- که یو کور دَ یو سړی او دَ یوے ښځې په قبضه کښې وو - او
ښځې شاهدان وُدرول " چه دا کور ځما دے - او دا سړے ځما مرئے دے - او
دغه سړی په دے خبره شاهدان وُدرول - چه دا کور ځما دے او دا ښځه ځما
ښځه ده - ما په زر روپئ مهر سره په نکاح آخستے - او روپئ م ورله ورکړی دی
او دے سړی په دے خبره شاهدان وُنه درول چه زهٔ آزاد یم - (مرئے نه
یم) نو حکم به کیږی چه کور دَ ښځې دے - او دغه سړے ئے مرئے دے - او
دوئ سره ښځه خاوند نه دی - ځکه چه ښځې شاهدان وُدرولی دی - دَ دغه
سړی په مرئی توب باندے - او هغه دَ خپل آزادوالی شاهدان نه دی وُدرولی
نو حکم به کیږی دَ هغه په مرئی توب باندے - او دا ظاهره خبره ده چه
دَ هغه په مرئی توب سره حکم وکړے شه - نو دَ کور او دَ نکاح بابت
کښې دَ هغه شاهدان بیکاره شو - ( ځکه چه مرئے ځان له دَ څه شی
مالک کیږے نه شی - او دَ خپلے مالکے ښځې سره نکاح کولے نه شی - ) او که
صورت دَ مسئلے داسے وو - چه سړی شاهدان وُدرول په دے خبره
" چه زهٔ آزاد یم په اصل کښې " یعنې مرئے نه وُم او نه یم ) او نوره مسئله
په خپل حال ده - نو حکم به کیږی چه دے آزاد دے - او دا ښځه ئے منکوحه
ده - او کور به دَ ښځې شی - ځکه چه کوم وخت قاضی حکم وکړلو - چه دوئ
سره ښځه او خاوند دی - نو سړے دَ کور په بابت کښې خاوند دَ قبضے
شه - او ښځه بے قبضے شوه - نو حکم به کیږی چه کور دَ ښځې دے
لکه چه ښځه او خاوند مختلف شی په بابت دَ داسے کور کښې چه
دَ دواړو په قبضه کښې وی - نو خبره معتبره وی دَ خاوند - او که دواړو

شاهدان وُدرول۔ نو ښځې چه کوم شاهدان وُدرولی دی ۔ دَ هغو په شهادت به حکم کیږی۔ (اودا مسئله اوس اوس تیره شوے ده)

**مسئله** :۔ که دَ ښځې اودَ خاوند اختلاف راشي۔ په بابت دَ داسے سامان کښې چه هغه دَ ښځو مناسب وو۔ نو (یو وئیل چه دا ځما دے۔ او بل وئیل چه دا ځما۔او) دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول ۔ نو حکم به کیږی چه دا دَ خاوند دے ۔ اوکه اختلاف ئے په داسے قسم سامان او په نکاح دواړو کښې وو۔ او ښځې شاهدان وُدرول چه دا سامان ځما دے۔ او دا سړے ځما مړئے دے۔ اودغه سړی شاهدان وُدرول چه دا سامان ځما دے۔اودا ښځه ما په نِکاح اخستے ده په زر روپئ۔ اوروپئ م ورکړیدی۔ نوحکم به کیږی دَ ښځې دَ پاره چه دا سړے ئے مرئے دے ۔ اوسامان هم دَدے دے ۔ځکه چه مونږ وئیلی وودَ کورپه مسئله کښې راو دا مسئله اوس اوس تیره شوے ده) اوکه دغه سړی په دے خبره شاهدان وُدرول۔ چه زهٔ په اصل کښې آزاد یَم۔ نو حکم به کیږی چه دے آزاد دے۔(مرئے نه دے) اودا ښځه ددهٔ ښځه ده۔ اوسامان هم دَده دے ۔ځکه چه سړے په داسے قِسم سامان کښې محتاج دے شاهدانو ته ۔(یعنې کوم سامان چه دَ ښځومناسب دی ۔ په هغې کښې دَ سړی وَینا معتبره نه ده۔ترکومے پورے چه شاهدان وُنه۔ نوکه دواړو شاهدان وُدرول ۔ نو شاهدان به دَ سړی غوره وی) اوکه دغه سامان دَ سړی مناسب هم وو۔ او دَ ښځې هم۔نوپه دے صورت کښې به حکم کیږی۔ چه سړے آزاددے۔ (ښځه دَ دهٔ ښځه ده) او دغه سامان ئے دَ ښځې دے۔ځکه چه په داسے قسم سامان کښې شاهدان دَ ښځې غوره کیږی۔ په سبب دَدے چه ښځه ئے قبضه ده۔

**مسئله** :۔که ښځه مړه شوی وی۔ اوخاوندئے اوس دعوه کوی۔چه هغې ماته په حال دَ جوړوالی کښې دَخپل مهرنه ابرا کړے وه۔(یعنې زهٔ ئے دَخپل مهرنه آزادی کړے یَم۔ مهرئے راته پریخے دے۔) اودَ دغې ښځې یو میراث خور په دے خبره شاهدان وُدروی۔ چه هغې تاته په حالت دَ مرض موت کښې ابرا کړے وه۔ نو شاهدان دَ جوړوالی غوره دی۔ او بعضې عالمان وائی چه شاهدان دَ میراث خور غوره دی۔

**مسئله** :۔ که ښځې خاوند ته اووئیل۔ چه ما تاته دَ خپل مهر نه چه ابرا کړے

ده. نو هغه په یو شرط سره وه. او خاوند ئے دعوه کوله چه تا ماته خپل مهر پریخے دے

بے دَ شرط نه. او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول. نو شاهدان دَ ښځے

غوره دی. اوکه دغه شرط دَ دے قسمه وو. چه په عرف کښې ذکر

کیدے شه. نو ابرا[1] سره دَ دغه شرط صحیحه ده. او بعضے علماء وائی چه شاهدان

دَ خاوند غوره دی.

**مسئله**:- که ښځے شاهدان وُدرول. په مهر چه ځما دا خاوند ځما په مهر

تر ننه پوره قائله وو. (یعنے دا ئے وئیل چه ماته ئے پوره دے) او خاوند

ئے په دے خبره شاهدان وُدرول چه دا ښځه چه په ما دَ کوم مهر دعوه کوی

دے ماته د دغه مهر نه ابرا کړے ده. (پریخے ئے دے) نو شاهدان دَ ابراء

غوره دی." جامع الفتاوٰی"

**مسئله**:- یو سړی دعوه وکړه. مثلاً دَ یو داسے مرئی چه دَ بل په قبضه

کښې وو. چه دا مرئے ماته خاوند دَ قبضے هبه کړے دے. (یعنے بخلے دے) یا

داچه خیراتی ئے راکړے دے. او خاوند دَ قبضے دعوه وکړه دَ قیمتؒ اخستلو او

دَ قبض کولو. او یوه ښځے دعوه وکړه چه خاوند دَ قبضے ما سره نکاح کړے دے په

مرئی باندِ (یعنے دغه مرئے ئے ماله مهر کړزولے دے.) او ما ترے قبض کړے

دے. او دواړو په خپله دعوه شاهدان وُدرول. نو امام ابو یوسف وائی

چه مرئے دَ دواړو شو. (یعنے دواړه برابر حصه دار دی) او دَ ښځے دَ پاره به نیم قیمت

د دغه مرئی هم لازمیږی. دَ پاره دَ دے چه مهر ئے پوره شی. او امام محمد صاحبؒ

وائی چه مرئے دَ هغه یو شه. چه دَ قیمتؒ آخستلو دعوه ئے کړے ده. او دَ ښځے دَ پاره

به په خاوند باندے لازمیږی پوره قیمت دَ دغه مرئی. دا مسئله[2] ذکر ده دَ شرح

---

[1] یعنے خاوند که په دغه شرط عمل وکړلو. نو مهریه آزاد شی. او که وُئے نه کړلو. نو نه آزادیګی. مثلاً خاوند ښځه طلاقه کړے وه. بیا ورته دغے ښځے دَ خپل مهر نه ابراء وکړه. په شرط دَ نوی نکاح او دَ مهر. او حال دا وو چه دَ دغے ښځے مهر مثل سل اشرفئی وو. نو که خاوند ورسره نوے نِکاح وتړلو په یوه اشرفئی. او هغے انکار وکړلو نو دَ دغے ښځے دَ پخوانی مهر نه آنادیګی. بے دَ شرط نه. او که شرط دَ دے قسمه وو. چه عرف کښې نه مستعملیږو. نو په داسے شرط سره ابراء صحیح نه ده. دا ټول مذکور دی په بحرالرائق کښې ۱۲ مترجم

[2] دا مسئله عامو کتابونو لکه بحر. شامی. هدایه. مجمع الانهر. زیلعی. قاضیخان. هندیه بدائع. په دے طریقه راوړے ده چه مدعی بے قبضے که دعوه وکړه. مثلاً چه دا مرئے ما دَ زید نه په بیعه آخستے دے. او دَ زید ښځے دعوه وکړه چه ما زید ماله په مهرکښې راکړے دے. او حال دا وی چه دغه مرئے دَ زید په قبضه کښې وی. نو دَ امام ابو یوسفؒ په نزد به دغه مرئے دَ دواړو دعوه کونکو شی په شریکه. یعنے مدعی او دَ زید ښځه دواړه به په دغه مرئی کښې برابر شی په حصه کښې او به (پاتے حاشیه په ۲۰ مخ اوګوره)

المجمع په هغه فصل کښی چه په ښځې کښی بیان د دعوے د دوؤ تنو دے

**مسئله**:۔ د یوے ښځے په قبضه کښی یوه زمکه ده۔ یل سړے پرِ دعوه کوی او شاهدان پرِ وُدروی چه دغه زمکه ځما ملکیت دے۔ او دا ښځه په دے خبره شاهدان ودروی چه دغه زمکه" شل کاله کیږی چه زۀ ئے خپل خاوند په مهر کښی مالکه کړے شوے یم" نو دا صحیح دفعه نه ده۔ (په دے سره د مدعی دعوه نه دفعه کیږی۔" قنیه"

**مسئله**:۔ د خلاصے په کتاب الدعوی کښی ئے راوړی دی۔ چه د مړک وُرز د قاضی د حکم لاندے نه راځی۔ نو فائده ئے دا ده۔ که زید دعوه وکړه چه ځما پلار په فلانئ وُرز مړ شوے دے۔ او قاضی ورلوه (په میراث سره) حکم وکړو۔ پس د هغے نه په دغه سړی) یوے ښځے دعوه کوله چه هغهٔ زۀ د دغه تاریخ نه (کوم چه ئے زید د مرګ خوُلے دے) یوه وُرز وړاندے په نکاح آخستے وُم۔ نو د ښځے شاهدان قبول دی۔ او حکم به ئے کیږی په نکاح سره۔ (چه دا ئے ښځه وه) او د قتل وُرز د قاضی د حکم لاندے راځی۔ نو که زید په دا دعوه وکړه۔ چه ده ځما پلار په فلانئ وُرز (قصدًا) وژلے دے۔ او قاضی حکم وکړه پرِ دے سره (چه دے قاتل دے قصاص دِ کړے شی) پس د دے نه یوه ښځه شاهدان وُدروی۔ چه د زید پلار زۀ د دغه تاریخ نه (کوم چه ئے د قتل خوښلے دے) یوه وُرز وړاندے په نکاح آخستے وُم۔ نو د ښځے دا دعوه به قاضی نه آوری۔ خلاص شه مضمون د خلاصے۔ او په لسم فصل د جامع الفصولین کتاب کښی راوړی دی۔ چه ښځے که دعوه وکړه چه زۀ زید د فلانی کال په بزماکه میاشت

زید بانډے به د دغه مرئی نیم قیمت لازم شی۔ ودکوی به دغے ښځے له د پاره دے چه مهر ئے پوره شی۔ او که مُدعی تیسلے روپئ زید له ورکړے وے نو مدعی به ترے نیمے روپئ بیرته واخلی او که ئے خوښه وه نو دا بیعه هم ورانولے شی۔ او د امام محمد صاحب په نزد شاهدان د قیمتًا آخستلو غوره دی۔ نو مرئے به د مدعی شی۔ او په زید بانډے به قیمت د مرئی لازم شی۔ ورکوی به ئے دغه خپلے ښځے۔ دا حکم هله دے چه دوارو مدعیانو تاریخ نه وی خوُلے۔ یا دواړو یو تاریخ نولے وی۔ او که دواړو تاریخ خولے وو۔ او تاریخ د یو وړاندے وو۔ نو شاهدان د وړمبی تاریخ والا غوره دی۔ بیا دا مسئله هم کتابونو داسے ده چه یو مدعی که دعوه کوله چه دا شئے زید ما ته رابخلے دے۔ یا دا چه خیرات ئے راکړے دے۔ او د زید ښځے دعوه کوله چه دا مال زید په مهر کښی راکړے دے۔ او حال دا وُو چه دغه شے د زید په قبضه کښی وو۔ نو شاهدان د مهر غوره دی۔ نو د دے نه تا ته معلومه شوه چه د متن دا عبارت چه څرګند دے دا د حوالے سره مطابق نه دے۔ بلکه کاتب پکښی کړبړی کړے ده۔ او عبد الرحمٰن خصالی ښځه د دریم کتاب واله چه په خپل کتاب کښی دا مسئله نقل کړے۔ نو د بیعه شه ذکر نه دے کړے۔ او د هبے نه ئے هبه معوضه راواخستله۔ لاکن صدقه ورسره هم ذکر کړے ده۔ که کتل ئے غواړے وئے ګوره ۱۲ مترجم

بقیه حاشیه صفحه ۱۹

کښې په نکاح اخستے وم - (او مهرم ورته پوره دے) نو زهٔ خپل مهر دَ هغه په میراثه کښې غواړم - (او شاهدان ئے وُدرول) او دَ زید میراث خور په دے خبرهٔ شاهدان وُدرول چه زید دَ دغه کال په سفر میاشت کښې مړ شوے دے نو دا شاهدان قبول نه دی - ځکه چه دوئ مرګ ثابته وی - او مرګ دَ قاضی دَ حکم لاندے نه داخلیږی - نو دَ دغه ښځے نکاح به ثابت شی - او مهر به ئے دَ زید په میراثه کښې لازم شی - ختم شه بیان دَ جامع الفصولین -

---

# دَطلاق مسئلې

**مسئله :-** که سړی خپله ښځه خلع[1] کړے وهٔ - بیا ئے شاهدان وُدرول چه زهٔ دَ دغې خلع په وخت کښې لیونے وُمه - او ښځے شاهدان وُدرول - چه مے په دغه وخت کښې خاوند دَ عقل او هوښیار وو - نو شاهدان دَ ښځے غوره دی او دارنګ حکم دے - که سړے دَ عقد ے په وخت کښې لیونے وو - او دَ هغه وَلی واکدار په دے خبره شاهدان وُدرول چه دے دَ خلع په وخت کښې لیونے وو - او ښځے شاهدان وُدرول چه دے په هغه وخت کښې هوښیار وو - نو شاهدان دَ ښځے غوره دی - "دررغرر" او عامه قاعده په دے کښې دا ده - چه کوم شاهدان په دے خبره شاهدی کوی چه فلانے دَ فلانی کار په وخت کښې هوښیار وو - دا شاهدان غوره دی دَ هغه شاهدانو نه چه شاهدی کوی په دے خبره چه دغه فلانے دغه کار کولو په وخت کښې لیونے وو - یا په دے خبره چه عقل ئے مخلوط (ریښے ګډ وډ) وو

**مسئله :-** دوه تنه شاهدی کوی په دے خبره چه زید مړ شویدے په داسے حال کښې چه دا ئے ښځه وه - او نور دوه تنه شاهدی کوی په دے

---

[1] که ښځے خپل خاوند ته اووئیل چه ځما نه دوه سوه روپئ واخله او ما دَ خپل نکاح نه وُباسه - او یا ئے ورته اووئیل چه ځما مهر چه ستا په ذمه دے - دَ هغے په عوض کښې ما دَ خپل نکاح نه وباسه - او دے په جواب کښې ورته خاوند دوئیل "چه ما ته ویستلے" نو په دے طریقه سره یو طلاق بائن واقع شو - او بیا ورته سړے رجوع نه شی کولے - لاکن که سړے په دغه ځائے کښې چه ناست جواب ورنکړلو - بیا پاسیدلو نو دے وئیل چه ښه ده ما پریښودلے - یا سړے خو په ځائے ناست وو - لکن ښځه پاسیدله - ورستو ورله سړی دا جواب ورکړو - نو په دے سره هیڅ نه کیږی - ښځه دَ نکاح نه نه وُزی - ځکه چه دَ دواړو خبرے یوځائے پکار دی - او په دے طریقه دَ نکاح نه ځان ایستلو ته خلع وئیلے کیږی - او لیونے سړے خلع نه شی کولے - ۱۲ مترجم

خبره چه زید دا ښځه پخوا دَ خپل مرګ نه طلاقه کړې وه۔ نو شیخ ابوبکر محمد بن فضل صاحبؒ وئیلی دی۔ چه شاهدان دَ ښځوالئ غوره دی۔ او قاضی امام علی سغدی صاحبؒ وئیلی دی۔ چه شاهدان دَ طلاق غوره دی۔" قاضیخان په فصل دَ هغه دعوی کښ چه مخالفه وی دَ شهادت نه۔"

**مسئله**:۔ یوے ښځے په زید باندے دَ نکاح دعوه اوکړه (چه تا ځما سره نکاح کړے دے۔) نو زید ورته اووے۔ چه نشته نکاح ستا او ځما په مینځ کښ نو چه ښځے شاهدان وُدرول په نکاح باندے۔ زید شاهدان وُدرول په دے خبره۔ چه دا خلعه شوے ده ځما نه۔ (یعنے دَ خلع په وجه ځما دَ نکاح نه وتلے ده) نو دَ زید دا شاهدان قبول دی۔ اوکه زید مخکښ په انکار کښ داسے وئیلی وی۔ چه ځمونږ په مینځ کښ هرګز نکاح نه وو۔ یا ما دا ښځه هرګز په نکاح نه ده اخستے۔ بیا چه ښځے په نکاح شاهدان اُودرول۔ نو زید په دے خبره شاهدان وُدرول چه دا ځما نه خلعه شوے ده۔ نو قاضیخان وائی بناپیری چه په دے صورت کښ دَ زید دَ شاهدانو شاهدی وانه وُریدے شی

**مسئله**:۔ په قاضیخان کتاب کښ ئے دا مسئله هم راوړے ده۔ چه ښځے که دَ یو مړشوی سړی په ځوئ دعوه اوکړه۔ چه زهٔ دَ دهٔ دَ پلار ښځه وُمه هغه مړشوے دے په داسے حال کښ چه زهٔ دَ هغه په نکاح کښ وُمه۔ او س خپله حصه غواړم دَ هغه په میراث کښ۔ او دَ دے ښځے دَ دعوے نه ځوئ انکار اوکړو پس هغے شاهدان وُدرول په نکاح باندے۔ دَ دے نه وروستو ځوئ شاهدان ودرول په دے خبره۔ چه ځما پلار دا په دریو طلاقو سره طلاقه کړے وه۔ او دَ هغه دَ مرګ نه پخوا دَ دے عدت تیر شوے دے۔ نو صحیح خبره داده۔ چه دَ ځوئ دا شاهدان قبول دی۔ اوکه دَ ښځے دَ دعوے په وخت کښ ځوئ داسے وئیلی وو۔ چه ځما پلار دا ښځه په نکاح نه وه آخستے۔ یا دا دَ هغه ښځه نه وه هیڅکله۔ نو په دے صورت کښ ئے بیا دا شاهدان قبول نه دی۔

**مسئله**:۔ په قاضیخان کتاب کښ دا مسئله هم راوړے ده۔ چه ښځے که دعوه وکړه په خپل خاوند باندے چه دهٔ زهٔ په دریو طلاقو طلاقه کړے یمه۔ او شاهدان ئے ودرول۔ او خاوند ئے منکر وو۔ بیا خاوند ئے دعوه کوله چه ما دا په نکاح آخستے ده۔ وُروستو دَ هغے نه چه دے اقرار کړے وو۔ وئیلی ئے دی

چه ما بیا دَ یو بل سړی سره نکاح کړے وه. اوس م ستا سره نکاح جائز دے
نو دا دفعه به قاضی نه آوری. (یعنے په دے سره دَ ښځے دعوه نه رد کیږی)
او په لسم فصل دَ جامع الفصولین کتاب کښ ئے لیکلی دی. که دَ زید او دَ ښځے
ئے جګړه شوه. نو ښځے شاهدان وړاندے کړل په دے خبره چه زه دهٔ طلاقه
کړے یم. په دریو طلاقو سره. او زید شاهدان وړاندے کړل په دے خبره
چه دے ښځے وړوستو دَ هغے نه چه ما په دریو طلاقو طلاقه کړے وه
دا سے اقرار کړے دے. (وئیلی ئے دی) چه ما عدت تیر کړے وو. بیا م دَ
بل سړی سره نکاح کړے وه. هغه پس دَ کور والی نه طلاقه کړم. بیا چه عدت
م تیر شو. نو زید م په نکاح واخستو. اوس دَ زید ښځه یم. نو بعض عالمان
وائی. چه دا دفعه نه ده. لکن صحیح خبره دا ده. چه دا صحیح دفعه ده. (رد
کیږی په دے سره دعوه دَ ښځے.

**مسئله** :- یو سړی خپلے ښځے ته وئیلی وُو. ماکه تا ته په دو سره وخت
کښ ستا نفقه خرڅه دروُنه رسوله. نو ستا اختیار ستا په لاس کښ دے
کوم وخت چه غواړے ځان طلاقوِلے شے. نو چه دغه وخت تیر شهٔ ښځے دَ ځان
طلاقولو ارادہ وکړه. پس ښځه او خاوند په دے خبره کښ مختلف شول
چه دے ته په دغه مقرّره وخت کښ نفقه رسیدلے ده. او که نه نو
ښځے شاهدان وړاندے کړل په دے خبره. چه ځما دے خاوند داسے اقرار
کړے دے. چه ما دے ته نفقه نه ده رسوُلے. نو بعض عالمان وائی.
چه دا شاهدان قبول دی. او په دے سره دعوه دَ خاوند ردکیږی. او که
ښځے په دے خبره شاهدان وړاندے کړل چه ځما دے خاوند داسے اقرار کړے دے
چه ما دے له دَ دے نفقه نه ده ورکړے. نو دا شاهدان قبول نه دی ځکه
چه کیدے شی. چه (ده ورله په خپل لاس نه وی ورکړی. بلکه) دَ دهٔ
وکیل دے ورکړے وی. او بعض عالمان وائی. چه په دواړو صورتونو کښ دَ
ښځے شاهدان قبول دی. (په اول صورت کښ خو ظاهره ده. او په دے دویم
صورت کښ) ځکه چه دَ وکیل ورکول دهٔ ورکول دی. اے! تا ته نهٔ کوړے
که چا قسم اُخوړ. چه زهٔ به زید له دَ زید حق ضرور ورکړم. او بیا
په خپل لاس ئے ورنکړلو. بلکه بل ته ئے اوویل. چه ته ورله ورکړه.

اوهغه ورکړلو۔ نو دَ دَهٔ قسم مات نه شهٔ۔ بلکه پوره شه

**مسئله**:۔که دوه تنو شاهدی کوله۔ چه فلانے مړشوے دے۔ په داسے حال کښې چه دا ئے ښځه ده۔ او نورو دوؤ تنو شاهدی کوله۔ چه هغه دا ښځه دَ خپل مرګ نه مخکښې طلاقه کړے وه۔ نو امام بقالی صاحب وائی چه دَ ښځوالئ شاهدان غوره دی۔ او علیؒ سعدی صاحبؒ وائی چه دَ طلاقو شاهدان غوره دی۔ او بعضے عالمان وائی۔ چه ښځه کَه دوه ځله نکاح دعوه کوله نو فتوی په دے ده۔ چه شاهدان دَ ښځوالئ غوره دی۔(نو مونږ به وایو چه مخکښې نکاح شوے وه۔ خو بیائے طلاقه کړے وه۔ دَ هغے نه وروستوئے بیا په نکاح اخستے وه۔) او که داسے دعوه ئے نه کوله۔ نو بیا شاهدان دَ طلاقو غوره دی۔ او بعضے عالمان وائی چه دَ دغه مړی میراث خوړ که دَ سره دَدے ښځے دَ نکاح نه انکار کړے وو۔ (چه هغهٔ دا چرے په نکاح نه وه اخستے) نو اوس چه دے په طلاقو شاهدان وُدروی۔ په دے ښځے دعوه نه دفعه کیږی۔ ځکه چه ښځه خپل نکاح په شهادت سره ثابته وی۔ او که دَ نکاح نه ئے انکار نه وو کړے۔ خو دَ میراث وړلو نه ئے انکار کړے وو۔ لکه وئیلی ئے وو۔ چه دا دَ هغه دَ مرګ په وخت کښې دَ هغه ښځه نه وه۔ یا دا دَ هغه نه میراث نه شی وړے په ښځوالئ سره۔ یا دَ دے په مثل ئے نور څهٔ وئیلی وو۔ نو اوس چه دے په طلاقو شاهدان ودروی۔ دا قبول دی۔) په دے سره دعوه دَ ښځے رد کیږی۔

**مسئله**:۔ یو سړے مړ شو۔ ښځه ئے پاتے شوه۔ او اولاد ئے پاتے شه دَ بلے ښځے نه۔ نو اولاد ئے دعوه کوی چه دا ښځه (یعنے خمونږ میره مور) خمونږ پلار باندے دَ مرګ نه شپږ میاشتے مخکښې حرامه وه۔ او دے په دے دعوه شاهدان وُدروی۔ او ښځه په دے دعوه شاهدان وُدروی چه زهٔ هغه له دَ مرګ په وخت حلاله وُم۔ نو شاهدان دَ ښځے غوره دی

**مسئله**:۔که چا خپلے ښځے نه وئیلی وُو۔ چه ماکه بے ستا دَ اجازت دَ ښځے څه شئے وُسکلو۔ نو ستا اختیار ستا په لاس کښې دے۔ (که غواړے نو ځان طلاقه وَ ګڼے) اوس ښځه شاهدان وُدروی چه خما دے خاوند بے

ځما دَ اجازت نه شراب څښلي دي (مثلاً) او خاوند ئې شاهدان وُدروي په دے خبره چه دے ماته دَ څښلو اذن کړے وو۔ نوشاهدان دَ ښځے غوره دي۔
" قنیه په باب دَ دوؤ بیّنو متضاد تین کښں "

**مسئله** :۔ زید مړ دے ۔اولاد ئې دعوه ۔چه ځمونږ پلار یعنے زید دَ خپل مرګ نه دوه کاله مخکښں دا ښځه په خپل ځان حرامه کړے وه۔ او دغې ښځے په جواب کښں اووئیل ۔ چه ځما خاوند (یعنے زید) په خپل مرض موت کښں اقرار کړے وو۔ او وئیلي ئې وُو۔ چه دا ښځه ماله حلاله ده۔ نو په دے سره دَ اولاد دعوه دفعه کیږي ۔ اوکه اولاد دَ سره دَ دے دَ نکاح نه انکار کړے وو۔ بیاچه دے ښځے په نکاح شاهدان ودرول ۔ نو دوی اووئیل چه ځمونږ پلار دا طلاقه کړے وه۔اودَدے عدت دَ هغه دَ مرګ نه مخکښں مخکښں تیر شوے وو۔ نو امام سغدی صاحبؒ وائي چه دا صحیح دفعه ده۔ (په دے سره دَ ښځے خبره رد کیږي۔) او امام بقالي صاحبؒ وائي چه دا صحیح دفعه نه ده۔ او بعضے عالمان وائي۔ چه اولاد که دَ سره دَ نکاح نه انکار کړے وي۔ نو (اوس چه پرطلاق شاهدان وُدروي۔ په دے سره) دَ ښځے خبره نه رد کیږي۔ (ځکه چه دَ هغے په نکاح شهادت موجود دے۔) اوکه دارنګ[1] نه وي۔ (یعنے دوئ دَ اصل نکاح نه انکار نه وي کړے۔ نو دَ میراث وُړلو نه ئې انکار کړے وي ۔) نو بیا په دے سره دفعه راځي۔

**مسئله** :۔ ښځه مړه شوے ده۔ یو سړے ئې دَ میراث دعوه کوي ۔او وائي چه هغه دَ مرګه پورے ځما په نکاح کښں وه ۔ (نو زهٔ ئې په میراث کښں خپل حق غواړم ۔) او دَ دغه ښځے میراث خوارهٔ شاهدان وُدروي۔ په دے خبره چه تاخو دَ دے نه مخکښں دا سے وئیلي وُو۔ چه دا مړه شوے که ځما ښځه وے نوما به ترے میراث وُړ وو ۔ نو بعضے عالمان وائي چه په دے سره دَ دغه سړي دعوه دفعه شوه۔ اودا اقرار کول شو په دے خبره چه ښځه م نه ده۔ او بعضے عالمان وائي ۔چه دَ دغه سړي دعوه په دے نه دفعه کیږي۔ اودا اقرار کول نه دي۔ په دے خبره چه ښځه م نه ده۔ لکه یو سړي اووئیل چه زید

[1] نوکه ښځه ځان طلاقه دُل غواړي۔ نو طلاقه وُلے شي ۱۲ مترجم

که په کورکښې وي۔ زهٔ یه ورله تللے وُم۔ نو دا په دے خبره اقرار نه دے۔ چه زیدا
جو په کورکښې قطعي نشته۔ علاوه دَ دے نه موتږ دا هم وایو۔ چه تا سرکومه خبره
کړے ده۔ (چه دا دَ نه ښځوالئ اقرار دے۔ نو دَ نه ښځوالئ ذکر خو دغه سړی
په خپله خبره کښې نه دے کړے نو) دا دَ هغه دَ خبرے نه هسے معلومیږی
او دے قسم خبرے ته مفهوم مخالفت وائی) خمونږ مذهب دا دے۔ چه مفهوم
مخالف حجت نه دے۔ (نو دا دَ نه ښځوالئ اقرار نه شه۔ جو په دے سره دَ دغه
سړی دَ دعوے رد رافعي) اوکه دَ دغه سړی دَ دعوے په جواب کښې دَ ښځے میراث
خوړو دا اوویل۔ چه تا خو ویلي وُو۔ چه هغه ځما ښځه وه۔ خو ما طلاقه کړے ده
نو په دے سره دَ دغه سړی دَ دعوے رد نه راځی۔ ځکه چه دے په شهادت
سره دا ثابته وی۔ چه دغه ښځه م دَ مرګ په ورځ په نکاح کښې وه
او کومه خبره چه میراث خواره ثابته وی۔ هغه دَ دے سره ټکراؤ
نه خوری۔ ځکه چه کیدے شی۔ چه دهٔ مخکښې طلاقه کړے وی
او بیائے په نکاح اخستے وی۔

**مسئله**:۔ یو سړی شاهدان وُدرول په دے خبره۔ چه دا ښځه ځما ښځه
ده۔ په نکاح م اخستے ده۔ او دغه ښځے په دے خبره شاهدان وُدرول۔ چه
دهٔ زهٔ خلعه کړے یم۔ (مثلاً زهٔ ئے دَ خپل مهر په عوض کښې دَ خپل نکاح
نه ویستلے یم) نو په دے دَ دغه سړی دعوه دفعه شوه۔ ولے هله که دے دواړه
تاریخ نه وو ذکر کړے۔ (یعنے سړی دَ نکاح تاریخ نه وو ښودلے۔ او ښځے دَ خلع)
یا په دے دواړو کښې صرف یوتن تاریخ ښودلے وو۔ اوکه دواړو تاریخ ذکر
کړے وی۔ او تاریخ دَ خلع وړومبے وی۔ نو بیا دَ سړی دعوه نه دفعه کیږی۔
او دَ ښځے شاهدان به رد شی۔

**مسئله**:۔ یو سړی شاهدان وُدرول په دے خبره۔ چه دَ دے ښځے سره
ما دَ فلانئ میاشتے په وړومبی تاریخ نکاح کړے دے۔ او دغه ښځے شاهدان
وُدرول په دے خبره چه دهٔ دَ دغه تاریخ نه وړاندے میاشتے وُرستو داسے ویلی
وُو۔ چه دا په ما حرامه ده۔ او ځما ښځه نه ده۔ نو دا صحیح ده۔ فائده ئے دا
شوه۔ چه قاضی به دغه سړی ته وائی چه ته داسے قسم اوکړه (چه دا خبره ما
دَ طلاق په نیت نه وه کړے۔ او) په دے سره ځما مراد طلاق نه وو۔ پس

که دغه سړی د قسم کولو نه انکار اوکړو۔ نو دعوه به ئے رد شی ۔ دا مسئلے د جامع الفصولین کتاب په لسم فصل کښی ذکر دے ۔ او د خدائ پاک علم د هرڅه نه زیات دے۔

# د نفقے مسئلے

**مسئله** :۔ که خاوند د خپل غریبوالی دعوه کوله ۔ نو خبره ئے معتبره ده ښځے له به د غریبوالی نفقه خرچه ورکوی۔ لکن که ښځے ئے په دے خبره شاهدان وُدرول چه دے مالدار دے ۔ نو بیا به ورته قاضی حکم کوی ۔ چه نه ورله خرڅ خوراک د غنی والی ورکوه ۔ اوکه دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول نو شاهدان د ښځے غوره دی ۔ " قاضیخان "

**مسئله** :۔ قاضی یو ے ښځے له خرڅ خوراک د هغے په خاوند مقرر کړے وو۔ بیا ښځه او خاوند د مقرره نفقے په اندازه کښی مختلف شول ( ښځے د زیات دعوه کوله ۔ او خاوند ئے د کم) یا د قاضی د نفقے مقرر کولو نه وُرستو چه څومره مُده تیره شوے وه ۔ د هغے په بابت کښی دواړه مختلف شول ۔ ( نو ښځے دعوه د ډیرے کوله ۔ او خاوند ئے د کمے ) نو که شاهدان د یو هم نه وی ۔ نو هسے خبره د خاوند معتبره ده ۔ اوکه دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول ۔ نو شاهدان د ښځے غوره دی ۔ حکه دوئے زیاتوالے ثابتوی ۔ " خزانه "

**مسئله** :۔ که خاوند ښځے له څه کپړه لیږلے وه ۔ بیائے اوویل چه هغه مهر وو ۔ بیائے اوویل چه هغه حساب وو په جوړه کښی ۔ او ښځے ویل چه هغه صله وه (یعنے بخشش وو ۔ یا د رشتے د تعلق په وجه وو) نو خبره د خاوند معتبره ده او دارنګ که خاوند خپلے ښځے له څه روپئ ورکړے وے ۔ بیائے اوویل چه هغه نفقه ده ۔ او ښځے ویل ۔ چه هغه منجره ده ۔ نو خبره د خاوند معتبره ده لکن که ښځے په دے خبره شاهدان وُدرول ۔ چه دهٔ ماته څه رالیږلی وُو هغه منجره وه ۔ نو بیا خبره د خاوند معتبره نه ده ۔ اوکه دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول ۔ نو شاهدان د خاوند غوره دی ۔ او دارنګ که په دے دواړو کښی هر یو د هغه په اقرار شاهدان وُدرول ۔ نو مالک کردونکی

شاهدان غوره دی. (یعنے ښځے شاهدان وُدرول. چه دهٔ اقرار کړے دے. چه هغه منجره وه. او خاوند ئے شاهدان وُدرول چه دے اقرار کړے دے چه هغه مهر وو جوړه وه یا نفقه. نو شاهدان دَ خاوند غوره دی) دا مسئله قاضیخان راوړے ده او په خلاصه کتاب کښ دا ذکر دے. چه خاوند که ښځے له څه کپړه اولیږله بیا ښځے اوویل چه هغه پیش کش (منجره) وو. او خاوند ئے اوویل چه هغه حساب ده په مهر کښ. نو خبره دَ خاوند معتبره ده. او که ښځے شاهدان وُدرول نو خبره دَ ښځے[1] معتبره ده. او که دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول. نو شاهدان هم دَ ښځے غوره دی.

**مسئله**:- که دواړه مختلف شو. دَ پلار په غنی توب کښ (یعنے ځوئ ویل چه ته غنی ئے. په ما دِ نفقه لازمه نه ده. او پلار ئے ویل چه زهٔ غریب یم) نو خبره[1] دَ ځوئ معتبره ده. او که دواړو شاهدان وُدرول. نو شاهدان دَ پلار غوره دی "بزازیه"

**مسئله**:- پلار که دَ خپل غائب ځوئ څه مال په ځان ولګاوو. بیا دغه ځوئ را حاضر شه. او دعوه ئے وکړه. چه ځما دے پلار کوم وخت چه ځما مال په ځان لګاوو. دے په هغه وخت کښ مالداره وو. او پلار ئے انکار کړلو. (چه زهٔ په دغه وخت کښ مالداره نه وُم.) نو دَ پلار حال ته به کتے شی. چه دَ دے مقدمے په وخت کښ څرنګ دے. که دَ دے مقدمے په وخت کښ دے غریب وی. نو خبره دَدهٔ معتبره ده. او که نه وی. نو نه. او که دواړو په خپله دعوه شاهدان وُدرول نو شاهدان دَ ځوئ غوره دی. ځکه چه ځوئ ئے یو امرِ عارضی یعنے نوے شے ثابتوی (او هغه غنی توب دے)" قاضیخان او بزازیه"

**مسئله**:- یو شل کوډ سړی په زید بانده دعوه وکړه. چه دے زما پلار دے او دَ قاضی نه ئے داغوښتله. چه نفقه پرِ ورله مقرر کړی. نو زید انکار او کړو. (چه زهٔ ئے پلار نه یم.) پس دغه شل کوډ سړی په خپله دعوه شاهدان وُدرول. او زید په بکر شاهدان وُدرول. چه دَ دهٔ پلار بکر دے. او بکر انکار کاوو. نو شاهدان دَ شل کوډ غوره دی. او نسب به ئے دَ زید نه ثابت شی. او په زید به ورله نفقه مقرر کړے شی. او دَ زید شاهدان به او غورزیګی "قاضیخان په باب دَ ما یبطل الدعوی قبل القضاء" کښ

[1] لکن په بحر الرائق کښ ویلی دی چه خبره دَ پلار معتبره ده. او که دواړو شاهدان وُدرول. نو شاهدان دَ ځوئ غوره دی. او په مجمع الانهر کتاب کښ دَ بحر دا مسئله هم نقل ده. ۱۲ مترجم.

# دَ ئي ورکولو مسئله

**مسئله** :- که په دائئ باندے ئے دا خبره ایخے وه۔ چه ته په دے وړوکی له خپل پئ اوتے ورکوے۔ او هغے ورله دَ بیزے پئ ورکړه۔ نو اجرت ئے نشته اوکه دَ وړوکی واکدار او دائئ دواړه سره مختلف شول۔ (دائئ اووئیل۔ چه ما ورله خپل تے ورکړے دے۔ او دهٔ اووئیل چه تا ورله دَ بیزے پئ ورکړی دی۔) نو خبره دَ دائئ معتبره ده۔ خو سره دَ قسم نه۔ اوکه دَ وړوکی خپلوانو په خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ نو بیا دائئ له اُجرت نشته۔ ولے هالکه شاهدانو داسے شاهدی وکړه۔ چه دے دائئ دِ وړوکی له دَ بیزے پئ ورکړی دی۔ خپل پئ ئے نه دی ورکړی۔ اوکه شاهدانو صرف دا اووئیل چه دے ورله خپل پئ نه دی ورکړی۔ نو دَ دوئ دا شهادت قبول نه دے ځکه چه دا شاهدی دهٔ یوازے په نفے (یعنے په نشتوالی باندے او ثبوت پکښ نشته۔ او شهادت دَ ثبوت دَ پاره وی۔ دَ نشت دَ پاره نه وی۔) په خلاف دَ ځکنی شهادت نه۔ ځکه چه په هغے کښ اګرکه نفے داغلے ده۔ لکن هغه دَ اثبات سره راغلے۔ (نو هغه قبوله ده۔ او دا نه) اوکه دواړو په خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ نو شاهدان دَ دائئ صاحب غوره دی " جامع الفصولین دَ دولسم فصل په آخر کښ۔

# دَ مرئ آزادولو مسئلے[1]

**مسئله** :- دَ زید میراث خوړو په یو مرئ دعوه وکړه۔ چه ته خُمونږ

---

[1] دَ دے باب بلکه دَ دے کتاب په بعض بعض مسئلوکښ دَ مرئ متعلق داسے لفظونه راغلی دی چه دَ هغے تشریح ضروری ده۔ مناسب به وی چه زهٔ ئے قدرے تفصیل اوکړم :-

(۱) که مالک خپل مرئ ته اووئیل۔ چه زه مړشم نو ته آزاد ئے۔ یا ته ځما دَ مرګ نه وُروستو آزاد ئے۔ یا ما ته مدبّر کړے یا ته مدبّر ئے۔ نو دغه مرئ مدبّر شو۔ اوس ئے چا ته بخل یا خرشول جائز دی۔ خپل خدمت او مزدوری پرے کولے شی۔ اوکه وینځه وی نو صحبت ورسره کولے شی۔ او نکاح ورسره کولے شی۔ او چه مالک ئے مړشی۔ نو مدبر دَ هغه دَ میراث دَ دریئے حصے نه آزادیږی۔ که دے دَ دریئے حصے نه آزادیږی۔ که دے دَ دریئے نه وتے شه۔ اوکه دَ مالک نور څه میراث نه وِو پاتے شوے۔ خو صرف دا مدبّر وو۔ نو دهٔ دریئمه حصه به آزاده شی۔ او دَ خپل قیمت دوه (۲) دریئے $\frac{2}{3}$ حصه به دَ مالک میراث خورو له چرته کوری۔ اوکه په مالک قرضه وه نو خپل ټول قیمت به چرته پیدا کوی۔ قرضدارو له به ئے ورکوی۔ نو هاله به آزادیګی۔

(پاتے حاشیه ۳۰ مخ اوګورئ)

دَ پلار دَ مرګه پورے دَ هغه ملکیّت وے۔ او مونږ دَ هغه میراث خواره یُو۔ (نو نه راته پاتے شوے ئے په میراث کښ۔) او مرئی په دے خبره شاهدان وُدرول چه زهٔ دَ بل فلانی سړی مرئے وم۔ او هغه آزاد کړے یَم۔ نو دَ مرئی دا شاهدان قبول دی۔ او مرئے به دَ هغه غائب سړی له طرفه خصم اوګرزی دَ ملکیت په ثابتولو کښی۔ ځکه چه دَ هغه مالک والے ددهٔ دَ آزادئ دَ پاره شرط دے۔ نو دے دَ هغه دَ طرفه دَ ملکیت او آزادولو په ثابتولو کښ خصم ودریدهٔ۔ (مطلب دا دے چه هغه غائب سړے خو اوس حاضر نه دے۔ لکن دَ هغه په ځائ دا مرئے ددے مُدعی سره جګړه کوی۔ نو ګویا هغه غائب سړے وائی۔ چه دا مرئے ځما ملکیت وو۔ ما آزاد کړے دے۔ بیا (دا مسئله زده کړه چه) کوم وخت دے مرئی دعوه وکړه۔ چه زهٔ دَ فلانی سړی مرئے وم۔ او هغه آزاد کړے یَم او قاضی ئے دَ آزادئ حکم وکړلو۔ اوس که څوک بل سړی پرے شاهدان وُدرول۔ چه ته ځما مرئے ئے۔ نو دا شاهدان قبول نه دی۔ ځکه چه دَ قاضی هغه حکم حکم دے په ټولو خلقو بانذے۔ او دا سے شوه۔ لکه چه ټول خلق حاضر وی۔ او دے مرئی دعوه دَ آزادئ کړے وی۔ او په ټولو خلقو ئے شاهدان وُدرولی وی۔ (او قاضی ورله حکم کړے وی۔ چه ته آزاد ئے۔ نو که بیا پرے یو سړی دعوه کوله۔ چه ته ځما مرئے ئے) نو دا دعوه نه قبلیږی نو دا رنګ حکم شوے دلته۔ "مشتمل الاحکام"

(رپاتے له ۲۹ مخ حاشیے نه)

(۲) که دَ خپل مالک نه دَ وینځے بچے وُشو۔ نو دا وینځه دَ هغه دَ بچی مور شوه۔ دغه بچے نو آزاد دے۔ لیکن وینځه به هم دَ مالک دَ مرګ نه پس آزاده شی۔ او مالک ئے نه خرڅولے شی۔ او نه ئے چا ته بخلے شی۔ لکن خدمت ترے اخستے شی او نکاح هم سره کولے شی۔

(۳) که مالک دَ خپل مرئی سره یا دَ وینځے سره څه مال وکړلو۔ چه که دومره مال مالَ ستا نه ماته وصول شو نو ته به آزاد ئے او مرئی دا خبره قبوله کړه۔ نو دا سے مرئی ته مکاتب وئیلے شی۔ او دے معاملے ته کتابت وئیلے کیږی۔ او هغه مال ته بدل دَ کتابت۔ کوم وخت چه مکاتب بدل دَ کتابت مالک له ورکړی او پوره پوره وصول شی۔ نو دے هغه وخت آزاد شی۔

(۴) چا چه مرئے آزاد کړو۔ یا وینځه۔ نو ولاء ئے دَ دغه مالک ده یعنی که څه جنایت ئے وکړو۔ نو دیت وغیره به ئے په دے مالک بانذے راځی۔ او پس دَ مرګ نه که قریبی رشته دار ئے نه وو۔ نو میراث به ئے دَ دے مالک وی۔ دے قسم ولاء ته دَ آزادئے ولاء وئیلے شی۔ او دَ دے نه علاوه یو بل قسم ولاء هم شته دے۔ هغے ته ولاءِ موالاة وئیلے شی۔ یعنی دوستانه تړون۔ او دَ هغے صورت دا دے چه یو مجهول سړے دَ کُفر۔ دَ چا په لاس چه دے مسلمان شوے وی۔ هغه ته یا بل چا ته او وائی۔ چه ما ستا سره دوستی اوکړه۔ په دے شرط سره که ما څه جنایت وکړو۔ نو دیت وغیره به په تا او ستا په متعلقینو وی۔ او که زهٔ مړ شوم۔ نو میراث مې ستا دے۔ او هغه سړی دا خبره قبوله کړه۔ نو دا عقدِ موالاة شو۔ حکم ئے دا دے۔ چه که دغه سړے مړ شو۔ او بل وارث ئے نه وو۔ نو چا سره ئے چه دا دوستانه تړلے ده۔ میراث به ئے دَ هغه شی۔ او که په ژوندانه کښی ئے څه جنایت جرم وکړلو۔ نو دیت به ئے هم په هغه وی باقی دا ځائے دَ نورا تفصیل نه دے۔ په دے وجه مې مختصرا بیان اوکه

(مترجم)

**مسئله** :- که دَچا په قبضه کښې یو مریٔ وو. بل پرے دعوه وکړه (چه دا مریٔ خما دے) نو خاوند دَ قبضے اووئیل - چه دے خما ملکیت وو - اوما آزاد کړے دے - اودواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول - نو په دے خبره خوندِ دَ امامانو صاحبانو اتفاق دے - چه شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره دی.

" جامع الفتاوی "

**مسئله** :- دَ یو سړی په قبضه کښې یو مریٔ دے - نو دا مریٔ پر شاهدان وُدَروی - چه زهٔ فلانی سړی آزاد کړے یم - په دا سے حال کښې - چه هغه خما مالک وو - او خاوند دَ قبضے شاهدان وُدروی په دے خبره - چه دا مریٔ دَ دغه فلانی غائب سړی مریٔ دے . ما څخه ئے په طور دَ آمانت پریخے دے - نو حکم به کیږی دَ مریٔ په آزادیدلو - پس که هغه فلانے غائب راشے - او شاهدان ئے وُدروُل - چه دا خما مریٔ دے - نو دا شاهدان ئے قبول نه دی او آزادوالے غوره دے -

**مسئله** :- که وینځے شاهدان وُدرول په زیبا باندے چه زهٔ دَ زیبا وُمه زیبا آزاده کړے یُمه - او یو بل سړی شاهدان وُدرول چه دا خما وینځه ده خما نه خاوند دَ قبضے په زور آخستے ده - نو شاهدان دَ آزادئ غوره دی.

**مسئله** :- دَ یو سړی په قبضه کښې یو مریٔ وو - نو دغه سړی په دے خبره شاهدان وُدرول - چه دا خما مریٔ دے - ما آزاد کړے دے په دا سے حال کښې چه زهٔ ئے مالک وُم - او یو بل سړی په دے خبره شاهدان وُدرول چه دا خما مریٔ دے - خما په ملکیت کښې پیدا شوے دے - نو عالمان وائی - چه شاهدان دَ پیدائیش غوره دی -

**مسئله** :- یو سړی خپله وینځه آزاده کړه - بیا و دسره وینزے جګړه جوړه کړه - اودَ دے یو بچے هم وو - نو دے خپل مولا ریعنے مالک) ته اووئیل - چه تا زهٔ ددے بچی دَ پیدا کیدو نه مخکښې آزاده کړے یُم - نو دا بچے هم آزاد دے - او مولا ئے اووئیل چه نا. بلکه دا بچے تا دَ آزادیدو نه مخکښې راوړے وو - نو دے مریٔ دے - نو دَ دے مسئلے په حکم کښې امام ناطقی صاحب ذکر کړیدی - چه دغه بچے که دَ دے په قبضه کښې وی. نو دَ دے وینا معتبره ده - او امام ابو یوسف صاحب رح وئیلی دی - چه دغه بچے که دَ دَ اودَ مولا یعنے دَ دواړو په قبضه کښې وی - نو هم دَ دے وینا معتبره ده - ځکه چه دا

دعوه کوی. چه بچے په نزدے وخت کښې پیدا شوے دے. او په دے کښې د بچي آزادوالے
هم دے. او که دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان ؤدرول. نو د وینځے شاهدان
غوره دی. ځکه چه د وینځے شاهدان غوره دی. ځکه چه د مولا شاهدان په نه آزادئ د
بچي ؤدریدلی دی. او د وینځے شاهدان په آزادئ د بچي ؤدریدلی دی. (او شاهدان د
ثبته والی د پاره وی. د نشتوالی د پاره نه وی) او دارنګ حکم دے. په مکاتب والی کښې.
ریعنې مالک د خپلے وینځے سره کتابت کړے وو. یعنې څه مال ورسره کړے وو. چه دومره
مال راکه. نو ته به آزاده شے. بیا ورته وینځے وئیل. چه تا څه د دے بچي د پیدائښت نه
مخکښې مکاتبه کړے یم. نو ځما دا بچے هم مکاتب دے. ځما په کتابت کښې راغلے دے
او مولائے داوئیل. چه دے ستا د مکاتب والی نه مخکښې پیدا شوے دے. او ځما
مریے دے. نو د دے مسئلے حکم هغه دے کوم چه اوس اوس د کړشه) او که جګړه
په مدبروالی کښې وه. ریعنې مالک خپله وینځه مدبره کړے وه یعنې هغے ته ئے
وئیلی وو. چه ته ځما د مرګ نه پس آزاده ئے. بیا ورته وینځے ووئیل. چه تا زه
د دے بچي د پیدا کیدو نه مخکښې مدبره کړے یمه. نو ځما په مدبروالی سره
دے هم مدبر شوے دے. کوم وخت چه زه آزادیږم. دے به هم آزادیږی
او مالک ئے اووئیل چه دے ستا د مدبروالی نه مخکښې پیدا شوے دے. نو ځما
مریئے دے) نو خبره د مالک معتبره ده. ځکه چه دواړو دا خبره او منله. چه بچے
مریے دے. (ځکه چه مدبر تر کوسه پورے چه مدبر وی. د مرئی توب نه اوزی
او مکاتب چه تر کوسه پورے مکاتب وی. هغه د مالک ملکیت دے لکن قبضے
پرنشته) او په منتقی کتاب کښې د امام محمد صاحب رح (د بچي د آزادئ په
مسئله کښې) دا خبره نقل کړیده. چه هغه وائی. که دغه بچے خبرے کولے شی
او خپل حال بیانولے شی. نو دغه بچي ته به رجوع کیږی (یعنے تپوس به ترے
وکړے شی. نو چه څه ئے اووئیل جی) د دغه بچي خبره معتبره ده. او که دیر وړوکے
وی. خبرے نئے نه شی کولے. نو چه دے د چا په قبضه کښې وی (وینځه وی. او
که مالک) بیا د هغه خبره معتبره ده. او که دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان
ؤدرول. نو شاهدان د وینځے غوره دی. او دارنګ حکم دے. که مالک خپله
وینځه مکاتبه کړے وه. بیا دواړه د بچي په بابت کښې مختلف شول
(لکه چه مخکښې تیر شوی دی)

**مسئله** :- یوسړے دَدُنیا نه لاړ. یوه ئے لور پاتے شوه. او څه ئے مال پاتے شه نو یو سړے راغے. شاهدان ئے په دے خبره وُدرول. چه دغه مړشوے څما مړئے وو. ما آزاد کړے وو. نو ولاء (میراث) ئے څما دے. او لُور په دے خبره شاهدان وُدرول. چه څما دغه مرحوم پلار مړئے ورئے نه وو. اصلی آزاد وو. نو امام محمّد صاحب رح دَ اصل په مسئلو دَ ولاء کښ ذکر کړے دے. چه شاهدان دَ لور غوره دی. " قاضیخان په دعاوی کښ "

**مسئله** :- یوے وینځے په دے خبره شاهدان وُدرول. چه زهٔ کوم وخت خپل مالک په مرضِ موت کښ مدبره کولمه. (یعنے ماته ئے وئیل. چه ته څما دَ مرګ نه پس آزاده ئے.) نو په دغه وخت کښ هغه هوښیار وو. او خاوند دَ عقل وو. او دَ دغه مالک میراث خورو په دے خبره شاهدان وُدرول. چه په دغه وخت کښ ئے عقل کم وَدشوے وو. (نو دا مدبر کول ئے صحیح نه دی) نو شاهدان دَ وینځے غوره دی. " درر غرر "

**مسئلہ** :- دَ یو سړی په قبضه کښ یوه وینځه ده. دے په دے خبره شاهدان ودروی. چه دا وینځه ما مدبره کړے ده. په داسے حالت کښ چه زهٔ مالک ئیم او یو بل سړے شاهدان وُدرَوی چه دَدے وینځے څما نه بچے شوے دے. په داسے حال کښ چه زه ئے مالک وُم. او یو دریم سړے هم دا رنګ شاهدان وُدرَوی نو وینځه چه دَ چا په قبضه کښ ده. دَ هغه ده. " قاضیخان په دعاوی کښ "

**مسئله** :- دَ زید په قبضه کښ یوه وینځه ده. هغے اووئیل چه زه دَ بکر دَ بچی مورئیم. (یعنے څما نه دَ هغه بچے شوے دے. نو زهٔ به دَ هغه دَ مرګ نه پس آزادیږم.) یائے اووئیل چه زهٔ بکر آزاده کړے یم. یائے اووئیل چه زهٔ بکر مکاتبه کړے یم. (چه زهٔ ورله دومره روپئ ورکړم نو آزاده به شمه) پس زید اووئیل چه دا وینځه (دعوے والئ داخو) څما ملکیت دے. نو خبره دَ زید معتبره ده. او امام ابویوسف صاحبؒ وائی. چه خبره دَ وینځے معتبره ده. او دَ بکر. او که بکر دَ دغه وینځے تصدیق وکړلو. چه دا دښتیا وائی. دا څما وینځه ده. لکن دَ بچی په مور کیدلو او په آزادولو کښ ئے دروغژن کړه. (یعنے بکر اووئیل چه دا څما وینځه ده. خو څما دَ بچی مور نه ده. یا ما نه ده آزاده کړے.) نو بیا خبره دَ زید معتبره ده. او که خاوند دَ قبضے اووئیل چه دا وینځه ما دَ فلانی سړی نه په بیعه اخستے ده. او

وينځۍ اووئيل چه زهٔ فلانی آزاده کړے يمه - او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول - نو شاهدان دَ آزادئ غوره دی - لکن کوم يو چه خاوند دَ قبضې دے او دغه وينځه ئے په بيعه آخستے - که چرے دَ هغه قبضه معلومه او خلقوته ښکاره وه - نو بيا دَ هغه شاهدان غوره دی - "خلاصة الفتاوئ"

**مسئله** :- که مالک خپل يو مرئے مکاتب کړے وو - (يعنے څه روپئ ورسرهٔ کړے وے - چه دومره روپئ راکړه - نو ته به آزاد شے) بيا دواړه سره مختلف شول - په بدل دَ کتابت کښې - نو مکاتب اووئيل - چه دومره روپئ مقرر شوے وے - او مالک اووئيل چه دومره - نو دَ امام صاحب په نزد دَ مکاتب خبره معتبره ده - سره دَ قسمه - او صاحبين وائی چه دواړه به قسم کوی - او پس دَ قسم نه به دَ مکاتب والی دغه معامله وُرانه شی - او که دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول - نو دَ مالک شاهدان غوره دی - ځکه چه دوئ زياتوالے ثابته وی -

**مسئله** :- که دوؤتنو دَ يو مړی دَ ولاء دعوه وکړه - او هر يو شاهدان وُدرول چه هغه فلانے مرے ځما مرئے وو - ما آزاد کړے وو - نو حکم به کيږی چه دَ هغه ولاء او ميراث دَ دواړو مدعيانو ده - ځکه چه په دے کښې دَ دواړو شريکوالے کيدے شی - مگرتلک چه په ملکيت کښې شريکوالے کيدے شی (يعنے يو مرئے په دوه تنه شريک کيدے شی - نو دارنګ دَ يو مرئی ولاء او ميراث هم دَ دوه وُتنو کيدے شی) دا مسئله ډيره غوره راغلے ده - او که په دے دواړو يو مخکښی شاهدات تير کړل - او قاضی پرے حکم وکړلو - او بيا په دَ هغه پل شاهدان نه قبليږی - دارنګ اشباه کتاب دَ قضا په مسئلو کښې ذکر کړے ده -

**مسئله** :- که مالک او مکاتب دَ کتابت په دغه معامله کښې مختلف شول - نو يو دَ صحيح والی دعوه کوله - او بل دَ فاسد والی - (مثلاً مکاتب وئيل چه تا ماته وئيلی وُو - چه پنځه سوه روپئ ماله په درے کاله کښې راکړه نو ته به آزاد شے - نو دا کتابت صحيح شوے دے - او مالک ورته وئيل چه نه ما درته وئيلی وو چه ته دَ ځان قيمت راکړه نو ته به آزاد شے - نو دا کتابت فاسد دے) نو خبره دَ هغه يو معتبره ده - چه دَ صحيح والی دعوه کوی

اوکه شاهدان وو ۔ نو شاهدان دَ هغه یوه غوره دی چه دَ فاسد والی دعوه کوی ۔
" تتمة الفتاوی په بیوع کښې "

**مسئله** :۔ که مالک اووئیل چه ما چه ته مکاتب کړے وے (یعنی روپئ یا
بل څه رِم درسره کړیدی ۔ چه دا داکړے نو ته به آزاد شے ۔) نو ته رِم ستا په نفس
مکاتب کړے ئے ۔ نه ستا په مال ۔ (یعنی دانه چه مال به دے هم ستا شی ۔ کوم چه تا
ګټلے) او مکاتب وئیل ۔ چه تا زهٔ ځما په نفس او په مال دواړو مکاتب کړے یم ۔
نو خبره دَ مالک معتبره ده ۔ او شاهدان دَ مرئ غوره دی ۔ (نو کوم مال چه
دَدهٔ په لاس کښې دَ مالک وی ۔ هغه خو به دَ مالک شی ۔ او باقی که ددهٔ په لاس کښې
دَدهٔ کسب کړے څه مال یا مرئ وغیره وو ۔ هغه به ددهٔ شی) او که مالک او مکاتب
مختلف شو ۔ دَ کشتونو ۔ (قسطونو) دَ مُدے په بابت کښې ۔ (مثلاً مکاتب وئیل چه
دَ بدلِ کتابت مُده دَ ادا کولو درے کاله ده ۔ او مالک وئیل ۔ چه دوه کاله ده)
نو هم خبره دَ مالک معتبره ده ۔ او شاهدان دَ مکاتب غوره دی ۔" وجیز "

## دَ وقف مسئلے

**مسئله** :۔ دَ زید په قبضه کښې یو کور دے ۔ بل سړی پرے شاهدان راوړل
چه داکور ماته وقف کړے شوے دے ۔ او دَ جماعت منتظم په دے خبره شاهدان راوړل
چه داکور دَ جمات (جماعت) دے ۔ نو که دواړو تاریخ ذکر کړے وی ۔ نو دَ وړومبی
تاریخ والا شاهدان غوره دی ۔ او که نه وی ۔ نو دغه کور به دَ دواړو شی
نیم دَ یو ۔ او نیم دَ بل ۔

**مسئله** :۔ دَ دوؤ رونړو په قبضه کښې دَ وقف کور وو ۔ یا زمکه وه ۔ مثلاً
نو یو ترے مړ شه ۔ او دغه وقف دَ ژوندی په قبضه کښې ۔ او دَ دغه مړی دَ
اولاد په قبضه کښې پاتے شه ۔ نو دغه ژوندی رور په یو وراره باندی شاهدان
راوړل په دے خبره ۔ چه دا وقف بطناً بعد بطن دے ۔ (یعنی یو دَ درجے والو
ته دے ۔ پس دَ بلے دَ درجے والوؤ ته ۔ مثلاً وقف کونکی وئیلی وُو ۔ چه دا ځما ځامنو
ته وقف دے ۔ درجه بدرجه ۔ نو هلکښې دَ ځامنو حق دے ۔ او که ځامن ئے
بالکل پاتے نه شول ۔ نو بیا دَ ځامنو دَ ځامنو ۔ او که دوی بالکل ختم شو ۔ نو بیا دَ ځامنو دَ ځامنو

دَ حامتو۔ دا دلته درجه بدرجه) حال دا دوچه تور ودېږوته ئے غائب وُو۔ او دغه وقف
چه چاکړے وو۔ هغه یوتن وو۔ (یعنے وقف کوُنکے یو وو۔ دوه نه وُو) او وقف هم
یو وو۔ نو دا شاهدان قبول دی۔ او دا حاضر وارث به دَ هغے نورو وارثانو دَ جانبه
خصم (یعنے مقدمه کوُنکے) وګرځی۔ او که وارثانو ئے په دے خبره شاهدان وُدرول
چه دا وقف (درجه بدرجه نه دے۔ بلکه) په ټولو په موږ په شریکه دے۔ بے دَ
شخص والی نه۔ نو کوم یو چه دا دعوٰے کړے ده۔ چه دا وقف درجه بدرجه
دے۔ دَ هغه شاهدان غوره دی۔ " درر غرر "

**مسئله**:۔ که (دَ وقف په مقدمه کښ یو سړی) قاضی حکم وکړلو" چه دا
وقف دے" نو بعضے عالمان وائی چه دا جو په ټولو خلقو باندے حکم کول شو
نو که دَ وقف متولی۔(واکدار) دَ یو سے زمکے په وقف والی شاهدان وُدرول۔ او دَ
چا په قبضه کښ چه وه دَ هغه په خلاف قاضی حکم وکړلو۔" چه دا وقف ده"
پس دَ هغے نه یو بل مُدعی شاهدان وُدرول " چه دا زمکه ځما ده ځمے مالکیم"
نو دا دعوه دَ ملکیت به قاضی نه آوری۔ دا مسئله جامع الفتاوٰی راوړے ده
او په جامع الفصولین کتاب کښ ئے وئیلی دی۔ چه دَ قاضی حکم کول په دے
خبره چه دا وقف دے۔ بعضے عالمان وائی چه دا جو حکم کول دی په ټولو
خلقو باندے۔ نو که دَ یو سړی په قبضه یوه زمکه وه۔ او دَ وقف متولی پرے شاهدان
وُدرول چه دا زمکه وقف ده۔ او قاضی دَ خاوند دَ قبضے په خلاف دَ دغه زمکے
په وقف والی سره حکم وکړلو۔ دَ دے نه وروستو که یو بل مدعی پرے دَ ملکیت دعوه
کوله۔ نو دا دعوه به قاضی نه آوری۔ نو دَ وقف والی حکم دا سے شه۔ لکه
دَ اصلی آزادئ حکم۔ (که یو سړی په بل باندے دعوه وکړه چه ته ځما مریئے
ئے۔ او هغه او وئیل چه زهٔ اصلی آزاد یم۔ او دواړو شاهدان وُدرول او قاضی
حکم وکړلو" چه دے آزاد سړے دے۔ نو که پس دَ دے نه بل مُدعی پرے شاهدان
ودرول چه ته ځما مریئے ئے۔ نو دس دا دعوه به قاضی نه آوری۔ نو دا دلته حکم
شه دَ وقف) او بعضے عالمان وائی۔ چه دا حکم په ټولو خلقو باندے حکم نه دے
نو دا حکم دا سے شه۔ لکه حکم په ملکیت باندے۔ (یعنے یو سړی په خاوند دَ قبضے
باندے دَ یو شی دعوه وکړه۔ چه دا شے ځما دے۔ او شاهدان ئے وُدرول
او قاضی ورلره حکم وکړلو په ملکیت سره دَ دے نه وروستو که بل مُدعی پرے

شاهدان وُدرول چه دا ځما ملکیّت دے - نو دا دعوه به قاضی آوری - جو دا تِلُه حال دَ وقف والی دے)

**مسئله** :- او په مشتمل الاحکام کتاب کښ راوړی دی - چه یو متولی خاوند دَ قبضے که شاهدان وُدرول په وقف والی بانږے - (چه فلانئ زمکه فلانی جماعت ته وقف ده - مثلاً) او مُدعی بے قبضے شاهدان وُدرول چه هغه ځما ملکیت دے نو قاضی به حکم کوی دَ مدعی بے قبضے په ملکیّت سره - پس که دَ دے نه وُرستو متولی (واکدار) شاهدان وُدرول په وقف والی بانږ نو دا به قاضی نه آوری ځکه چه دے متولی په خلاف - او دَ چا په بابت کښ چه دا متولی وائی چه دا هغه وقف کړے - دَ هغه په خلاف قاضی یو ځل حکم کړے دے - او امام ابویوسف رح صاحب وائی چه شاهدان دَ خاوند دَ قبضے په دے خبره بانږے چه دا وقف دے - قبول دی - او شاهدان دَ مدعی بے قبضے په دے خبره بانږے چه دا ځما ملکیت دے قبول نه دی - لکن فتویٰ دَ طرفینو په قول ده - کوم چه هغکښ بیان شوے دے -

**مسئله** :- او په مشتمل الاحکام کتاب کښ ئے دا مسئله هم راوړے ده چه دَ وقف دَ متولی په قبضه کښ یو کور وو - مُدعی بے قبضے پرے دَ ملکیت دعوه کوله - او متولی وئیل چه دغه کور زید فلانی جماعت ته وقف کړے دے - او قاضی دَ مدعی دَ پاره په ملکیّت سره حکم وکړلو - پس دَ دے نه که یو بل متولی په دے مدعی دعوه وکړه چه دغه کور بکر یو بل جماعت ته وقف کړے دے - او شاهدان ئے وُدرول - نو دا شاهدان ئے قبول دی - ځکه چه دَ دے نه مخکښ چه قاضی حکم کړے وو - نو هغه دَ زید په خلاف وو - او دَ هر وقف کوُنکی په خلاف نه وو -

**مسئله** :- په مشتمل الاحکام کتاب کښ ئے دا مسئله هم راوړے ده یو سړی په بل بانږے دَ یو کور دعوه وکړه - چه دا کور ما ته وقف شوے دے - بالکل او خاوند دَ قبضے دعوه وکړه چه دا کور چه په ما چا راخرڅ کړے دے - هغه دَ دغه وقف کوُنکی نه په بیعه آخستے وو - او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول نو دَ وقف والی شاهدان انا غوره دی - او که خاوند دَ قبضے دا سے تاریخ دَ بیع ثابت کړلو چه هغه دَ وقف والی نه مخکښ وو - نو هغه شاهدان غوره دی - او که دا سے نه وی - نو شاهدان دَ وقف غوره دی -

**مسئله** :- او په دغه کتاب کښې دا مسئله هم ذکر کړې ده. چه دَ وقف یو متولی (رواکدار) دعوه وکړه دَ وقف کوټکی په یو داسې میراث خور باندې چه دَ هغه په قبضه کښې یو محدود ملکیت وو. (مثلاً څه زمکه وه یا کور وو) نو متولی وئیل. چه دا په صحیح طریقه وقف شوې دې. فلانی جماعت ته (مثلاً) او په دې دعوې ئې شاهدان وُدرول. او میراث خور شاهدان وُدرول دَ وقف په فاسد والی باندې. نو که فاسد والے دَ یو داسې شرط په وجه وو په وقف کښې چه په هغې سره وقف فاسد یدلو (مثلاً وقف کوټکی وئیلی وُو. چه دا وقف دې په دې شرط سره چه څما دَ ملکیت نه به نه وؤزی) نو شاهدان دَ فاسد والی غوره دی. ځکه چه په ئا ثبتولو کښې زیات دی. او که فاسد والے دَ یو داسې معنیٰ په وجه وو. چه هغه دَ وقف په محل کښې وه. یا وه دَ بل څه وجه نه. نو بیا شاهدان دَ صحیح والی غوره دی.

**مسئله** :- زید دعوه وکړه. چه دَ بکر په قبضه کښې چه فلانے کور دے. هغه بالکل ما ته وقف شوے دے. او بکر دعوه وکړه چه دغه کور چه په ما چارا خرڅ کړے دے. هغه دَ دغه وقف کوټکی نه په بیعه آخستے وو. او تاریخ ئې ذکر کړلو. او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول. نو دَ وقف شاهدان غوره دی. او ځینې عالمان وائی. چه خاوند دَ قبضے که دَ بیعه داسې تاریخ ثابت کړلو. چه هغه دَ وقف نه مخکښې وو. نو بیا شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره دی.* قنیه په باب دَ دوؤ متعارضو شهادتونو کښې۔

---

# دَ بیع مسئلے

که چا په بل باندې څه شے خرڅ کړے وو. بیا دَ دواړو اختلاف ولګے. نو یو دعوه کوله. چه دا بیعه صحیح وه. او بل وئیل چه فاسده وه. ځکه چه یو فاسد شوے درسره لګیدلے وو. (مثلاً خرخرکی صرف خرڅ کړے وو. او آخستونکی ته ئې وئیلی وو. چه ته به ئې په بل ته خرڅ) یا ځکه چه موده فاسده وه. (مثلاً دَ قیمت دَ اداکولو نیټه ئې داسې خوولے وه. چه مجهوله او نا معلومه ده) نو کوم یو چه دَ بیعې دَ صحیح والی دعوه کړې ده. دَ هغه قول معتبر دے. او که شاهدان وی

نو شاهدان دَ هغه یو غوره دی ـ چه دعوه دَ فاسد والی ئے کړے ـ په دے حکم ځونږ
قول روایتونه متفق دی ـ او چاچه دَ فاسد والی دعوه کړے ـ که هغه دَ فاسد والی
یوه داسے وجه ښوولہ ـ چه دَ بیع په معامله کښں د ننه موجوده وه ـ لکه دعوه ئے
کوله ـ چه دا شے م په زما روپئ او په یوه پیمانه شرابو آخستے دے ـ او چاچه پرے
خرڅ کړے دے ـ هغه وئیل چه یوازے په زما روپئ ـ نو په دے مسئله کښں دَ
امام صاحب رح نه دوه روایته دی ـ ظاهر روایت دا دے ـ چه په دے صورت کښں
هم خبره دَ هغه یو معتبره ده ـ چه دعوه دَ صحت ئے کړے ـ او شاهدان دَ هغه
بل غوره دی ـ لکه چه په مخکښں مسئله کښں وه ـ او بل روایت دا دے ـ چه کوم
یو دَ فاسد والی دعوه کړے دَ هغه خبره معتبره ده ـ مشتمل الاحکام "

**مسئله** :- که یو سړی په بل باندے څه خرڅ کړی وه ـ بیا دواړه مختلف شو
نو خرڅونکی دعوه کوله ـ چه په دے بیعه کښں ځما دَ پاره دَ دریو ورځو خیار وو
او هغه بل ووئیل ـ چه نه ـ بلکه بیعه قطعی شوے وه ـ نو دَ امام صاحب رح نه
ظاهر روایت دادے چه خبره دَ هغه یو معتبره ده ـ کوم چه دَ خیار نه انکار
کوی ـ او دَ امام صاحب رح نه بل روایت دادے ـ چه خرڅونکی که بیعه کښں دَ
ځان دَ پاره دَ خیار دعوه کوله ـ (چه په دے بیعه کښں ماله دریو ورځو مثلاً
خیار یاد شوے وو) نو خبره دَ خرڅونکی معتبره ده ـ او دَ امام محمد صاحب رح
نه دا روایت دے ـ چه کوم یو دَ خیار دعوه کوی ـ خبره دَ هغه معتبره ده ـ او
شاهدان دَ هغه بل غوره دی ـ او که صورت دَ مسئلے داسے وه ـ چه چا په بیعه
اخستے ـ هغه دَ ځان دَ پاره دَ خیار دعوه کوله ـ او خرڅونکی وئیل ـ چه نه ـ بلکه
دا بیعه قطعی شوے ده ـ (خیار پکښں نه وو) نو دَ امام صاحب رح په نزد په
دواړو روایتونو کښں خبره دَ خرڅونکی معتبره ده ـ

**مسئله** :- خرڅونکے او اخستونکے مختلف شو ـ نو یو دعوه وکړه ـ چه ځونږ
دا بیعه په رضا او په خوشحالئ شوے ـ او هغه بل دعوه وکړه ـ چه په زور او په
جبر شوے ـ نو د دے مسئلے په حکم کښں عالمان مختلف شوی دی ـ نو صحیح خبره
دا ده ـ چه کوم یو دَ بیعے دَ رضا دعوه کړے ـ دَ هغه قول معتبر دے ـ لکه په بیعه
صحیح او فاسده کښں ـ (چه یو وائی چه دا بیعه صحیح ده ـ او بل وائی چه فاسده ده
نو خبره دَ صحیح والی معتبره وی ـ لکه چه مخکښں ذکر شوے دے) او شاهدان دَ هغه

یو غوره دی - چه دعوه دَ زور او دَ جبر کوی - او بعض عالمان وائی چه شاهدان دَ رضا غوره دی -" قاضیخان په احکامو دَ بیعِ فاسد ے کښ "

**مسئله** :- خرخونکی دعوه وکړه چه دا بیعه په جبر شوے - نو چا چه تر ے په بیعه اخستے وه - هغه شاهدان وُړل چه دے خرخونکی دغه شے مانه سپار لے او مقرره قیمت ئے آخستے دے په رضا سره (نو په دے سره دفعه شوه دعوه دَ خرخونکی او دا دنلېړ که زید خالد ته څه شے هبه کړے وو - ( یعنے بخلے ئے وو) بیا زید دعوه وکړه چه دا هبه په ما باندے په زور او په جبر کړے شوے وه - او خالد شاهدان وُړل چه دَ دے هبے عوض زید ځانه په خوشحالئ آخستے دے - نو په دے سره (دَ زید) دعوه دفعه شوه -" فصولین په لسم فصل کښ "

**مسئله** :- او په دغه کتاب کښ ئے دا مسئله هم راوړے ده - چه خرخونکی که دعوٰ وکړه - چه زهٔ په دے خرخولو راضی نه وُم - بلکه په ما زور او جبر شوے وو - او چا چه تر ے دغه شے په بیعه آخستے او اوس ئے په لاس کښ دے - هغه ورته په جواب کښ اووے - چه تا دَ دغه بیعے نه وُرسنو ځان سره دَ دغه شی نرخ کړے دے (یعنے تا وئیل چه په څه قیمت به ئے ماله راکړے) جو دا دَ هغه دَ مُکنیٔ بیعے اجازه ده - نو لے په دے سره دَ خرخونکی هغه دعوه دفعه شوه - اوکه نه ؟ په دے بابت کښ دَ ابوالفضل کرمانی صاحب رح نه تپوس شوے وو - نو هغه په کښ تردّد وکړلو - او وے وئیل چه دَ دواړو خبرو ګنجایش لری - (کیدے شی چه دفعه وی - او کیدے شی چه نه وی -) او دَ یو څو وُرزو دَ فکر کولو نه ئے وُروستو او وئیل چه ما په دے بابت څه ښکاره حکم بیا نه موندو - او دلیلونه دواړو جانبو ته موجود دی - دَ بعضے دلیلونو نه معلومیږی - چه په دے سره اجازه دَ مُکنیٔ بیعے وشوه - او دَ بعضو نه معلومیږی چه نه (ځکه چه خاوند دَ شفعے چه دَ قیمتٔ اخستونکی سره دَ هغه خرخ کړی شوی - کوریا دَ زمکے نرخ وکړی - چه ماله به ئے په څو راکړے - نو په دے سره خاوند دَ شفعے خپله شفعه وسپارله - دَ دے نه معلومیږی - چه دا اجازه شوه او دا هم ممکنه ده - چه دَ خرخونکی مطلب خپل شے حاصلول وی - او بے دَ دے نه ئے بل څه طریقه نه وی - نو دَ دے نه معلومیږی چه دا اجازه نه ده ) نو قاضی لره ښائیږی - چه ښه فکر اوکړی - او عمل په داسے خبره اوکړی - چه غاړه ئے پرے نیولے نه وی -

**مسئله** :- زید په بکر باندے او بکر په خالد باندے او خالد په سالم باندے او سالم په حامد باندے یو خرخر کړے وو۔ نو یو بل سړے راغے۔ دعوه ئے وکړه چه دا خر زما دے۔ او شاهدان ئے تیر کړه۔ (پس قاضی ورله حکم وکړلو) نو خر ئے واخستنه۔ او چا چه د چانه په بیعه آخستے وه۔ هغه هر یو د خپل خپل خرخونکی نه د شاهدانو ودرولو او د قاضی د حکم کولو په وجه خپلے خپلے روپئی راکړن وُلے کومے چه ئے د خر په قیمت کښی ورکړے وے۔ بیا بکر هم د زید نه د خپلو روپو راکړزولو اراده وکړه۔ نو زید وئیل۔ چه دا خر چه په ما چا راخرخ کړے دے دا د هغه وو۔ د هغه په ملکیت کښی پیدا شوے وو۔ نو ستا حق نشته۔ چه زما نه خپلے روپئی واپس واخلے۔ او زید جو په دے خپله دعوه شاهدان ودرول۔ نو که په دے وخت کښی دغه بل سړے کوم چه مستحق گرزیدلے وو۔ حاضر وی۔ نو د زید دا شاهدان قبول دی۔ او چا چه دغه خر په زید خرخ کړے وو۔ که هغه حاضر نه وی۔ نو هم خیر دے۔ ځکه چه زید جو خصم (یعنے مقدمه کونکے) وُدریدو د خپل خرخونکی د جانب نه۔ او که دغه مستحق پس د دے نه شاهدان وُدرول چه دا خر زما کوره ئے پیدا دے۔ نو دا شاهدان قبول نه دی۔ ځکه چه کوم وخت دوه تنه (د یو خاروی یا مرئی) د کورنی پیدائیش دعوه کوی۔ او دواړه شاهدان وُدروی نو شاهدان د خاوند د قبضے غوره وی۔ نو دلته دا خبره بنکاره شوه۔ چه (په واقع کښی) خاوند د قبضے هغه خرخونکے دے۔ نو د هغه شاهدان غوره شول۔ (یعنے گویا د مستحق او د هغه سړی چه په زید ئے خرخ کړے وو۔ د دے دواړو جګړه ده۔ دواړه د خره په کورنی پیدائیش شاهدان وُدروی۔ او خر گویا د خرخونکی په قبضه کښی دے۔ ځکه چه د زید قبضه جو د خرخونکی قبضه ده۔ نو شاهدان د خاوند د قبضے غوره شو۔

**مسئله** :- که خاوند د قرضے په دے خبره شاهدان وُدرول۔ چه زما د قرضدار دے میراث خورو د هغه د میراثے نه یو مرئے خرخ کړے دے۔ او حال دا دے۔ چه د هغه ټوله میراثه ډوبه ده په قرضه کښی (یعنے دومره ده چه صرف قرضه به پرے اداشی۔ او یا د قرضے نه هم کمه ده۔ نو دوئ له ترے د مرئی خرخول جائز نه دی) او د قرضدار میراث خور او وئیل۔ چه زمونږ پلار په خپل ژوندانه کښی دغه مرئے خرخ کړے وو۔ او روپئی ئے آخستے وے۔ او دواړو په خپله دعوه

شاهدان ودرول - نو شاهدان د خاوند د قرضے غوره دی - ځکه چه دا شاهدان په میراث خوړو باندے ضمان (تاوان) ثابته وی - او میراث خواره د ضمان نشتوالے راولی - او شاهدان وی د پاره د ثابتولو - نه د پاره د نشت کولو -

**مسئله** :- که مدعی بے قبضے شاهدان ودرول - چه دا څاروے ما د فلانی نه په بیعه آخستے - او دا د هغه په ملکیت کښ پیدا شوے وو - او خاوند د قبضے په دے خبره شاهدان ودرول - چه دا ما د یو بل سړی نه په بیعه آخستے - او دا د هغه په ملکیت کښ پیدا شوے وو - نو حکم به کیږی د پاره د خاوند د قبضے -

**مسئله** :- که چا د بل نه څه شے په بیعه آخستے وو - بیا د غه آخستونکی دعوه کوله - چه دا بیعه بیعه قطعی وه - او خرڅونکی دعوه کوله - چه دا بیعه بیع وفا[1] وه - نو خبره د خرڅونکی معتبره ده - او که دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان ودرول - نو شاهدان د بیعے وفا غوره دی - دا مسئله مشتمل الاحکام کتاب راوړیده - او د قاضیخان په احکامو د بیع فاسد کښ ذکر دے - چه په خرڅونکی او آخستونکی کښ که یو دعوه د بیع وفا کوله - او بل د بیعے قطعی - نو قول د هغه یو معتبر دے چه د بیعے قطعی دعوه کوی - او شاهدان د بیع وفا غوره دی - ځکه چه بیع وفا یا خو جو کاتره ده لکه چه بعضے عالما نو وئیلی دی - او یا بیع فاسده ده لکه چه بعضے عالما نو وئیلی دی - نو که بیعه فاسده وګنړلے شی - نو قول د هغه یو معتبر دے - چه دعوه د صحیح والی کوی - او که کاتره وګنړلے شی - نو شاهدان د بیعے غوره دی - لکن په کاتره او په بیعه کښ چه یو د بیعے دعوه کوی - او بل د کاترے - نو خبره د هغه یو معتبره وی - چه انکار کوی د بیعے نه - ختم شه - مضمون د قاضیخان د

**مسئله** :- که خرڅونکی شاهدان ودرول - چه فلانے څیز ما په دے آخستونکی خرڅ کړیدے - او د غه آخستونکی شاهدان ودرول - په اقاله باندے (یعنے په دے خبره چه موږه دا بیعه بیا وُرانه کړے ده -) نو شاهدان د اقالے غوره دی - ځکه چه د بیع شاهدان بے کاره شو - په سبب د دے چه کوم یو د اقالے دعوه کړے - هغه جو اقرار وکړه په بیعے سره - (چه موږ بیعه کړے وه - خو بیا موږ وُرانه کړے ده -) " مشتمل الاحکام "

**مسئله** :- د یو سړی په قبضه کښ یو مرئے دے - په دے خبره شاهدان

---

[1] د بیع وفا صورت ما د دویم کتاب په حاشیه کښ د بیعے په مسئلو کښ لیکلے دے - که څوک ئے ضرورت کتری - نو د دِ ګوری ۱۲ مترجم

وُدروی - چه دا مرئے ما په دے دوارو سرو باندے په دوه زره روپئ خرچ کړیدے - او په دغه دوؤ تنو کښ یو تن شاهدان وُدروی - چه دا مرئے ما دَ دے خاوند دَ قبضے نه په زرو روپئ اخستے دے - نو په منتقی کتاب کښ ذکر دے - چه دَ خاوند دَ قبضے په شاهدانو سره به حکم کیږی - " قاضیخان په دعوه دَ منقول کښ "

**مسئله** :- په دغه کتاب کښ ئے دا مسئله هم راوړے ده - چه دَ یو سړی په قبضه کښ یو مرئے دے - دوه تنه پرے دعوه کوی - او هر یو په دے خبره شاهدان وُدروی چه دا مرئے ما په دے خاوند دَ قبضے باندې په بیعه فاسده سره خرچ کړے دے - نو دغه مرئے به دَ دغه دوارو مدعیانو شی په شریکه سره - او خاوند دَ قبضے نه به ئے راواخلی - او قیمت به ئے هم په هغه دَ پاره دَ دوارو نیم نیم وی - خو مطلب دا دے - چه شاهدانو شاهدی کړی وی دَ خاوند دَ قبضے په اقرار باندې - ( یعنے دا حکم هاله دے - چه شاهدانو په دے خبره شاهدی کړی وی - چه خاوند دَ قبضے اقرار کړے دے - چه ما دا مرئے دَ دے مدعی نه په بیعه فاسده سره آخستے دے - او دا دَلته شاهدانو دَ هغه بل مدعی ) پس که دغه مرئے دَ خاوند دَ قبضے په لاس کښ مړ شو - نو په هغه به دوه قیمته راشی - ( یو قیمت دَ مرئی به یو مدعی له ورکوی او بل هغه بل له - ) او که دَ دوارو مدعیانو شاهدانو شاهدی کړے وی دَ بیع او قبض کولو په لیدو باندې ( یعنے شاهدانو شاهدی کړے وی چه دے مدعی خمونږ په مخکښ هغه مرئے په دے سړی په بیعه فاسده خرچ کړے او دهٔ تړ قبض کړے دے ) نو که هغه مرئے موجود وی - نو دواړه مدعیان به ئے په شریکه واخلی نیمه حصه به دَ یو شی او نیمه دَ بل - او دوی له د دے نه سوا نور څه نشته او که مرئے هلاک کړے شوے وی - نو دی به دَ هغه قیمت واخلی - نیم به دَ یو شی او نیم به دبل - او د دے نه سوا نور څه ورله نشته - مصنف رح وائی - بنا ئیږی چه دَ غصب په دعوه کښ هم دا رنګه حکم وکړے شی ) یعنے که یو مدعی شاهدان وُدروی - چه مثلاً زید څما نه مرئے په زور آخستے دے - او بل مدعی هم دارنګه شاهدان وُدروی - نو که دغه مرئے موجود وی - دَ دوارو به په شریکه شی - او که هلاک کړے شوے وی -

نو د هغه قیمت به په شریکه واخلی )

**مسئله** :- که زید شاهدان ودرول - چه ما د بکر سره (په فلانی ورځ) په فلانی ځای کښې د فلانی شی بیعه کړے وه - او بکر شاهدان ودرول چه زه په دغه ورځ په دغه ځای کښې کوم چه دے محکیتو شاهدانو خودلے دے نه ومه - او په فلانی ځائے کښې ومه - نو دا شاهدی قبوله نه ده - ځکه چه دا شاهدی کول دی په نفی (یعنے په نشتوالی) باندے - ځکه چه د شاهدانو دا خبره چه بکر په دغه ځای کښې نه وو - دا خو په ظاهر او معنی دواړو کښې نفی ده او دا خبره چه بکر په فلانی ځای کښې وو - دا اگرکه په ظاهر کښې اثبات (یعنے شته والے) دے - لکن په معنی کښې دا هم نفی ده - ځکه چه مقصود په دے سره نفی د هغه شی ده - په کوم چه محکتو شاهدانو شاهدی کړے - " تتمه په شهادانو کښې "

**مسئله** :- که چا شاهدان ودرول په یو داسے کور چه د یل سړی په قبضه کښې وو - چه دغه کور زما دے - ما د دے خاوند د قبضے نه په بیعه آخستے دے - او قبض کړے م دے - او روپئ م ورله ورکړی دی - او خاوند د قبضے شاهدان ودرول - چه دغه کور ما ته فلانی غائب سړی د امانت په طور پریخے دے - نو د دے دواړو په منځکښې جګړه نشته ( یعنے خاوند د قبضے خلاص شو د دغه مدعی د دعوے نه )" جامع الفتاوی په دعاوی کښې "

**مسئله** :- د یو وړوکی هلک وصی لګیدلے وو - د هغه د انګورو باغ ئے خرڅ کړے وو - نو چه دغه هلک ځوانئ ته ورسیده نو دعوه ئے د غبن وکړه - او چا چه دغه باغ قیمتاً اخستے وو - په هغه ئے شاهدان ودرول - او هغه په دے خبره شاهدان ودرول - چه د دغه باغ قیمت په هغه وخت کښې هم هغه وو - په کوم چه ما اخستے دے نو شاهدان د غبن غوره دی - او عامه قاعده دا ده چه شاهدان د غبن غوره دی - د شاهدانو د دے خبرے نه چه قیمت ئے مناسب دے (زیاتے کے ورکښې نشته) ځکه چه شاهدان د غبن چه دی هغه

زیانوالے ثابته وی - او بله وجه داده - چه شاهدان دَ فساد غوره وی. دَ شاهدانو دَ صحت نه - دا مسئله دُرر غرر کتاب دَ شهادت دَ قبلیدلو اودَ نه قبلیدلو په باب کښې راوړے ده - خو په دے اعتراض کړے شوے دے. چه دا مسئله (اتفاقی نه ده.) بلکه اختلافی ده - او حال دا دے چه صاحب دَ دُرر کتاب پکښې څه اختلاف نه دے ذکر کړے - او په قنیه کتاب کښې په کوم باب کښې چه دَ اخستونکی او خرڅونکی دَ اختلاف مسئلے ذکر دی - کوم وخت چه یو دَ صحیح والی دعوه کوی او بل دَ فاسد والی نو په هغه باب کښې ئے دا مسئله راوړے ده - چه یو سړی دَ یو داسے محدودے زمکے دعوه وکړه - چه هغه دَ بل په قبضه کښې ده - او دعوه ئے داسے وکړه چه دغه زمکه ما ته دَ خپل پلار نه په میراث کښې پاتے شوے ده - نو خاوند دَ قبضے په دے خبره شاهدان ودرول چه دغه زمکه ما ستا دَ وصی نه په مناسب قیمت اخستے ده - او مدعی په دے خبره شاهدان ودرول - چه دَ دغے زمکے اصلی قیمت زیات دے - دَ هغه قیمت نه چه ته ئے ثابته وے (یعنے تا چه په کوم قیمت اخستے - اصلی قیمت ئے دَ هغے نه ډیر زیات دے) نو ځینے عالمان وائی چه کوم شاهدان زیاتولے ثابتوی - هغه غوره دی - او ډیر دا هم وائی چه کوم شاهدان لږ والے ثابتوی - هغه غوره دی. ختم شه مضمون دَ قنیے کتاب.

**مسئله** :- یو سړی دَ یو کور دعوه وکړه - او دے وئیل چه دا کور زما ملکیت دے - زما ولی (واکدار) په تا خرڅ کړے وو په داسے حال کښې چه زهٔ بالغ وُم - (او راضی پرے نه وُم) او خاوند دَ قبضے اووئیل - چه ته په هغه وخت کښې وړوکے وے - نو خبره دَ مدعی معتبره ده - او که دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان ودرول - نو شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره دی " فصولین په لسم فصل کښې "

**مسئله** :- یو سړی دَ خپل ځوئ زمکه خرڅه کړے وه - (او س پرے ځوئ دعوه کوی) نو چا چه دغه زمکه په بیعه آخستے - هغه په دے خبره شاهدان ودروی - چه دا زمکه په ما دَ دے هلک پلار په مناسب قیمت سره خرڅه کړے وه په داسے حال کښې چه دے وړوکے وو - او ځوئ ئے

شاهدان وُدروی په دے خبره - چه کوم وخت خما پلار دغه زمکه په ده خرڅوله زهٔ لویٔ وُمه (او راضی پرے نه وُم) نو چا چه دغه زمکه قیمتًا اخستے ده - دَ هغه شاهدات غوره دی - او بعضے عالمان وائیٔ چه شاهدان دَ خویٔ غوره دی

**مسئله** :- (چا په بل بانداے مثلاً یوکور خرڅ کړے وو - نو اوس) که خرڅونکے شاهدان وُدروی - په دے خبره چه دغه کور ما په ورو کوالی کښ در خرڅ کړے وو - او چا چه ترے قیمتًا اخستے - هغه شاهدان وُدروی په دے خبره چه تا دغه کور په ما را خرڅ کړے دے په دا سے حال کښ چه ته بنهٔ لویٔ وے - (بالغ وے) نو چا چه قیمتًا آخستے - دَ هغه شاهدان غوره دی - ځکه چه هغه ثابته وی - یو شے عارض - (یعنے بالغ کیدل)

**مسئله** :- پردے شے ئے خرڅ کړلو - او اخستونکی ته ئے او سپارلو - بیا مالک دعوه کوله چه کوم وخت زهٔ دَ دے بیعے نه خبر شوم - نو ما رد وکړلو (چه زهٔ په دے بیعه راضی ته یم) او چا چه قیمتًا آخستے - هغه دعوه وکړه - چه تا دَ دے بیعے اجازه کړے ده - او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول - نو چا چه قیمتًا آخستے - دَ هغه شاهدان غوره دی - ځکه چه هغه لازموُنکی دی - (یعنے هغه لازمه وی بیعه)

**مسئله** :- یوتن دَ دوؤ تنو بے قبضه مدعیا تو نه شاهدان وُدرول - په دے خبره چه دا شے ما دَ فلانی نه په بیعه آخستے - او قبض کړے م دے - او هغه بل مدعی شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا شے خما دے - نو نیم به دَ یو مدعی شی او نیم دَ بل - " جامع الفتاویٰ په شهادا تو کښ"

**مسئله** :- دَ زید په قبضه کښ یو کور وو - عمر پرے دعوه وکړه چه دا کور خما ملکیت دَ او زید په بکر خرڅ کړے دے - په سل اشرفئ - او بکر دعوه وکړه چه دا خما ملکیت دے ما په عمرو خرڅ کړے دے په زر روپئ - او دواړو په خپله دعوه شاهدان ودرول - نو امام ابو یوسف صاحبؒ وائیٔ چه حکم به کیږی - چه دغه کور نیم دَ یو مدعی شو او نیم دَ بل - بے دَ بیعے او دَ روپو نه - او امام محمدؒ صاحبؒ وائیٔ - چه حکم به کوی قاضی چه نیم کور دَ یو مدعی دے - او نیم دَ بل - په نیم نیم قیمت سره - (یعنے موتږ به وایو چه دا نیمه حصه دَ دهٔ وه - په دے بل ئے قیمتًا خرڅه کړے - او دغه بله نیمه دَ دغه بل وه - په دهٔ ئے قیمتًا خرڅه کړے ده) " حقائق "

**مسئله** :- دَ زید په قبضه کښې یو مرئے دے دوؤ تنو پرے دعوه اوکړه - او هر یو په دے خبره شاهدان تیر کړه - چه دا مرئے ما دَ زید نه په بیعه آخستے دے - او تاریخ دَ بیعے ئے ونخوؤ - نو اوس په دے دواړو کښې هر یو مدعی لره اختیار دے - که ئے خوښه وی - نو نیمه حصه دَ مرئی به په نیم هغه قیمت سره واخلی چه په کوم قیمت ددهٔ شاهدانو شاهدی کړے ده - او باقی نیم قیمت به دَ زید نه واخلی - که زید له ئے مخکښې تول ورکړے وی - او که ئے خوښه ئے نه وی - نو پرے دِ پرِدی - (ځکه چه دَ تول مرئی بیعه ئے وُنه شوه - نو دَ زید نه به خپلے ټولے روپئی راوکړنړوی -) او که دواړو مدعیانو دَ خپلے خپلے بیعے تاریخ خوولے وی - نو بیا مرئے دَ هغه مدعی شئ - چه تاریخ ئے مخکښې دے - او که دواړو تاریخ نه وی خوولے - یا یو خوولے وی - او هغه بل نه وی خوولے - لکن په دے دواړو کښې دَ یو تن په قبضه کښې دغه مرئے وی - نو بیا شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره دی - او که مرئے دَ دواړو په قبضه کښې نه وه - یعنے دَ یو دریم په قبضه کښې وو - او په دے دواړو کښې یو تن دَ بیعے تاریخ خوولے وو - نو کوم یو چه تاریخ خوولے دے - دَ هغه شاهدان غوره دی دا مسئله درر او غرر کتاب په باب دَ دعوه دَ دوؤ کسانو کښې راوړے ده - او هم دا حکم ذکر دے - په اکثرو معتبرو کتابونو کښې لکه زیلعی هدایه - قاضیخان - لکن صاحب دَ جامع الفصولین کتاب نقل کړے دے دَ مبسوط کتاب نه - چه مدعی بے قبضے او خاوند دَ قبضے دواړو که په بیعه آخستل ثابت کړل دَ یو سړی نه - او یو تاریخ اوخوؤ - او بل او نخوؤ - (مثلاً مدعی بے قبضے شاهدان ؤدرول چه دا شے ما دَ زید نه په بیعه آخستے او خاوند دَ قبضے هم دارنګه شاهدان ؤدرول) نو خاوند دَ تاریخ غوره دے زهٔ وایم چه په کومه خبره عام کتابونه دی - فتوی په هغے ده - او هغه معتبره ده - ځکه چه دَ یو شی په قبض کولو باندے - قدرت موندل لکه چه په هدایه کښې ئے ویلی وی - دا دَ دے خبرے دلیل دے - چه دهٔ دا شے مخکښې په بیعه آخستے دے - او بله وجه دا ده - چه دَ دواړو شاهدان په اثبات کښې برابر دی - نو کومه قبضه چه ثابته او یقینی ده - هغه په شک سره نه ماتیږی - (نو په دے صورت کښې شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره

شو ۔)

**مسئله** :۔ یو مدعی شاهدان وُدرول چه فلانے شے ما دَ زید نه په بیعه آخستے دے ۔ او ما قبض کړے دے یوه میاشت کیږی ۔ او بل مُدعی شاهدان وُدرول ۔ چه دغه شے ما دَ زید نه په بیعه آخستے او قبض کړے م دے ۔ لس وُرزے کیږی ۔ او حال داوو ۔ چه دغه شے دَ زید په قبضه کښ وو ۔ نو خاوند دَ ځکښ تاریخ غوره دے ۔ اوکه دغه شے دَ هغه مدعی په قبضه کښ وی ۔ چه دَ لسو وُرزو په قبضه ئے شاهدان ودرولی دی ۔ نو هغه بل به ئے ترِ واخلی ۔ ځکه چه دَ هغه شاهدانو داثابته کړه ۔ چه دَ هغه قبضه مخکښ ده ۔ اوکه صورت دَ مسئلے داسے وو ۔ چه دَ کوم مدعی په قبضه کښ هغه شے اوس نه وو ۔ هغه شاهدان وُدرول په دے خبره چه دغه شے ما دَ یوے میاشتے نه قبض کړے دے ۔ او خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په قبض کولو باندے بے دَ ذکره دَ تاریخ نه ۔ یائے شاهدان په دے خبره وُدرول چه ما په بیعه آخستے دے دَ زید نه ۔ او شاهدانوئے ذکر دَ قبض کولو ونکړه ۔ نو دغه شے دَ خاوند دَ قبضے دے ۔ ځکه چه دَ دهٔ اوسنئ قبضه دا ښئ چه دَ دهٔ قبضه مخکښ ده ۔ او تاریخ ورله په معنیٰ کښ هم ثابت شوے دے ۔ خو دَ مدعی بے قبضے دَ قبضے نه ئے مخکښ والے او ورستو والے معلوم نه دے ۔ نو دَ دواړو شاهدان وغورځیدل ۔ او خاوند دَ قبضے غوره شو ۔ په سبب دَ موجوده قبضے ۔ اوکه صورت دَ مسئلے داسے وو ۔ چه دَ خرڅ دغه شے دَ خرڅونکی په قبضه کښ وو ۔ (چه زید دے مثلاً) او دواړو مدعیانو پرے دعوه کوله ۔ رهریو وئیل چه ما دَ زید نه په بیعه آخستے) او دواړو دَ بیعے تاریخ ونخوو ۔ او یو شاهدان وُدرول ۔ چه ما دَ یوے میاشتے نه قبض کړیدے او هغه بل په دے خبره چه ما قبض کړے دے ۔ او تاریخ دَ قبض کولو ئے ونخوو ۔ نو کوم یو چه تاریخ خوولے دے ۔ دَ هغه شاهدان غوره دی ۔ ځکه چه قبضه یو آمر حادث دے ۔ (یعنے یو نوے کار دے) نو دَ قاضی دَ حکم دَ وخت نه به دَ هغے په حدوث سره حکم کیږی ۔ تکن که معلومه شوه ۔ چه دَ دغه بل مدعی قبضه مخکښ ده ۔ نو بیا هغه غوره دے ۔ او په دے فولو تیرو شوو صورتو نو کښ که دواړو مدعیانو دَ قیمه اخستلو وخت اُونخوؤ ۔ او دَ

يو وخت دَ هغه بل نه وړومبے وو۔ نو وړومبے وخت واله غوره دے۔ ځکه چه دا بل په حقيقت کښ دَ يو داسے شي اخستونکے شه۔ چه هغه ممکښ تاريخ واله ممکښ په بيعه آخستے دے۔ نو نه دده آخستل جايز شو۔ او نه ئے قبضه " اتم فصل دَ فصولين"

**مسئله**:۔ که دوه تنو دَ يو څيز دَ قيمت آخستلو دعوه وکړه۔ دَ جُدا جُدا سړی نه۔ ( مثلاً يو مدعی اووئيل چه ما دَ زيد نه په بيعه آخستے۔ او بل اووئيل چه مَا دَ بکر نه) او دواړو دَ بيعے يو تاريخ اوخود۔ نو دوئ دواړه برابر دی۔ ځکه چه دوئ دواړه دَ دغه شي ملکيت خپلو خرڅونکو له ثابته وی۔ (يعنے گويا يو وائي۔ چه دَ دغه شي مالک زيد وو۔ بل وائي چه بکر وو) نو داسے شوه۔ لکه چه هغه (زيد او بکر) دواړه په خپله حاضر شوی وی۔ (او دواړو په خپل خپل ملکيت شاهدان وُدرولی وی۔ نو حکم به کيږی۔ دَ پاره دَ دواړو۔ نو دا رنګ حکم دلته هم شه) بيا په دے دواړو مدعيانو کښ هر يو له اختيار دے يعنے که ئے خوښه وی نو نيم دِ واخلی۔ لکه چه مونږ دَ دے نه مخکښ ذکر کړيدے ريعنے په هدَايه کښ او په دے کتاب کښ هم دا رنګ بيان مخکښ تير شوے دے۔) او که دَ يو مدعی شاهدانو دَ بيعے تاريخ اوخود۔ او دَ هغه بل شاهدانو تاريخ ونخود۔ نو په دے صورت کښ به هم دَ دواړو مدعيانو دَ پاره حکم کيږی۔ ( چه دا شے نيم دَ يو شو او نيم دَ بل) ځکه چه دَ يو مدعی دا تاريخ بيا نول چه دی۔ دَ دے نه دا نه معلوميږی۔ چه چوڼ په ده چه چا خرڅ کړيدے دَ هغه ملکيت مخکښ وو۔ ځکه چه کيدے شي چه هغه بل ترے مخکښ وی۔ په خلاف دَ هغه صورت نه چه خرڅونکے دَ دواړو يو وی۔ ( مثلاً که يو مدعی دعوه کوله چه ما دَ زيد نه په بيعه آخستے۔ او بل مدعی هم دا رنګ دعوه کوله۔ او يو تاريخ اُوخود۔ بل ونخود۔ او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ نو په دے صورت کښ شاهدان دَ تاريخ واله غوره دی) ځکه (چه په دے صورت کښ) دواړه مدعيان دا منی چه ملکيت نه دے حاصل شوے۔ مګر دَ هغه (زيد) دَ جهت نه۔ نو چه يو مُدعی دَ خپلے بيعے تاريخ ثابت کړلو۔ د هغه دَ پاره به حکم وکړے شي۔ ترکومے پورے چه دا نه ئي معلومه شوی چه دَ دغه بل مُدعی بيعه ترے وړومبئ وه۔ "هدايه"

**مسئله** :- که هریوتن دَ دوو مدعیانونه شاهدان ودرول په قیمهٔ آخستلو باندے دَ بیل بیل خرڅونکی نه - او دواړو دَ خپلے خپلے بیعے تاریخ وخوو- او تاریخ دَ یو مخکښ وو- او دَ بل وروستو- تو د دے مسئلے په حکم کښی دَ کتابونو روایتونه مختلف شوی دی - زیلعی دَ کنز په شرح کښی وائی چه په دواړو مدعیانوکښی هر یوتن که دَ یوشی په قیمهٔ آخستلو شاهدان ودرول - او هر یو خپل خرڅونکے دَ هغه بل دَ خرڅونکی نه غیر خوو- (مثلاً یو مدعی وئیل چه ما دَ زید نه په بیعه آخستے . او بل مدعی وئیل چه ما دَ بکر نه) نو دواړه مدعیان برابر دی - او د دواړو دَ پاره به حکم کیږی - چه دغه شے نیم دَ یو شو او نیم دَ بل - برابره خبره ده - چه تاریخ دَ یو مخکښ وی او که نه وی - ځکه چه په دے دواړو مدعیانو کښی هر یو د دغه شی ملکیت خپل خرڅونکی له ثابته وی - او دَ خرڅونکی ملکیت ئے مطلق دے - او تاریخ پکښی نشته - نو په دواړو خرڅونکو کښی هر یو له ملک مطلق ثابت شه - نو دَ دواړو یه شی - او داسے شوه - لکه چه دواړه خرڅونکی حاضر شی او دواړه دَ ملک مطلق[1] دعوه وکړی - بے دَ ذکره دَ تاریخه نه (یعنے زید او وائی چه دا ځما دے - او بکر او وائی چه ځما دے - او دا ونه خئ - چه دَ کوم تاریخ نه ئے زهٔ مالک شوے یم - نو په دے صورت کښی دَ دواړو دَ پاره حکم کیږی) او دارنګ حکم دے - که یو مدعی تاریخ دَ بیعے اوخوو - او هغه بل ونه خوو - نو هم دواړه مدعیان برابر دی ځکه چه که دواړو تاریخ خوولے وے - او دَ یو تاریخ دَ هغه بل نه په یقینی طور سره مخکښ وے - نو هم به مخکښ تاریخ والا غوره نه وو - نو اوس چه یوتن تاریخ خوولے دے او هغه بل نه دے خوولے - او چا چه خوولے دے - دَ هغه تاریخ کیدے شی چه دَ دے بل دَ بیع نه په واقع کښی مخکښ وی - او کیدے شی چه وروستے وی - نو په شک سره به خاوند دَ تاریخ غوره شی - (نو دے غوره نه شو - بلکه دواړه برابر دی - ) په خلاف دَ هغے صورت نه چه مالک کړے وشکے یو وی - ځکه چه مثلاً یو مدعی وائی چه ما زید نه په بیعه آخستے - او هغه بل هم دارنګ وائی - نو په دے

---

[1] دعوه دَ مالک مطلق دے ته وئیلے شی - چه سړے او وائی چه دا شے ځما دے - او سبب ذکر نه کړی - چه په بیعه م آخستے یا راته چا بخلے دے - وغیره ۱۲ مترجم

صورت کښې) مخکښې تاریخ والا غوره دے - ختم شه مضمون دَ زیلعي - او
دَ مبسوط کتاب نه دا خبره نقل شوے ده - چه خاوند دَ مخکښې تاریخ
غوره دے - (په دواړو صورتو کښې) دَ جامع الفصولین په اتم فصل کښې
دَ مبسوط کتاب نه نقل دے - چه هر یو تن دَ دوؤ مدعیانو نه که دعوه
کوله دَ قیمتٔ اخستلو دَ یو شي دَ جدا جدا خرڅونکي نه یا دَ یو نه او دواړو
دَ خپلې خپلې بیعې تاریخ خوؤ - او دَ یو تاریخ مخکښې وو - او دَ بل وروستو
نو وړومبے تاریخ والا غوره دے - ذدے نه وروستو جامع الفصولین
کتاب والا وئیلي دي چه کومه خبره چه حق ته نزدے ده هغه دا ده
چه په کوم صورت کښې دَ بیل بیل خرڅونکي نه دَ آخستلو دعوه کوي - په
هغه صورت کښې دَ تاریخ مخکښې والي له اعتبار ور نکړے شي - ځکه چه
دَ خرڅونکو دَ ملکیت تاریخ خو نه دے خوولے شوے - نو قیمتٔ آخستونکي
چه دَ خپل ملکیت تاریخ ښئ - دے له اعتبار نشته - په کوم صورت
کښې چه خرڅونکي ئے جدا جدا خوولي وي - نو دا سے شوه - لکه چه
دواړه خرڅونکي حاضر شوي وي - او په خپل خپل ملک مطلق ئے
شاهدان ودرولي وي - بے دَ ذکره دَ تاریخ نه - (او په هغه صورت کښې
حکم کیږي دَ پاره دَ دواړو - نو دا رنګ حکم شه دلته) او په بزازیه
کتاب کښې وئیلي دي - چه دَ یو سړي په قبضه کښې یو مرئے دے
بیل پرے شاهدان ودرول چه دا مرئے دَ فلانی سړي وو - ما ترې
لس وړنے کیږي چه په بیعه آخستے - او خاوند دَ قبضے شاهدان ودرول
په دے خبره چه دا مرئے دَ یو بل سړي وو - یو میاشت کیږي چه ما
ترې په بیعه آخستے دے په دومره قیمت سره - او بیان دَ قیمت ئے وکړو
نو دَ شیباني صاحب رح دوئیم قول دا دے - چه په دے صورت کښې به
مرئے دَ مخکښې تاریخ والا شي - یعنې دَ خاوند دَ قبضے - او یو قول ئے دا دے
چه دغه مرئے دَ مدعي به بے قبضے شي - او په دے طریقه دَ امام محمدؒ
صاحب رح وړومبے قول دا دے - چه دغه مرئے به دَ خاوند دَ قبضے شي -
ځکه چه تاریخ ئے مخکښې دے - او دَ امام محمدؒ صاحب رح دَ دوئیم قول په
بنا به دَ مُدعي بے قبضے شي - ختم شه مضمون دَ بزازیے - او په قاضیخان

کتاب کښې په مسئلو دَ دعوو کښې وئیلې دی۔ چه دوارو که دَ قیمتً آخستلو دعوه کوله هریو دَ جدا جدا سړی نه۔ او یو په دے خبره شاهدان وُدرول چه دا ما دَ زید نه په بیعه آخستے۔ په دا سے حال کښې چه هغه ئے مالک وو۔ او هغه بل په دے خبره شاهدان وُدرول۔ چه دا ما دَ بکر نه په بیعه آخستے په دا سے حال کښې چه هغه ئے مالك وو۔ نو قاضی به دَ دوارو مدعیانو دَ پاره حکم کوی۔ (چه دا دَ دوارو شۀ په شریکه سره) او که دوارو دَ خپلے خپلے بیعے تاریخ وښوُو۔ نو په ظاهر روایت کښې ممکښې تاریخ والا غوره دے۔ او که یو مدعی تاریخ وخوُو۔ او هغه بل ونخوو۔ نو حکم به کیږی دَ دوارو دَ پاره۔ او دا حکم اتفاقی دے او که په دے دوارو مدعیانو کښې یو خاوند دَ قبضے وو۔ نو هغه بل ترے غوره دے۔ ختم شه مضمون دَ قاضیخان۔ زۀ وایم۔ چه په دے بنا بانډ ے دا خبره بنائیږی۔ چه دَ مخکښې تاریخ واله دَ پاره فتویٰ ورکړے شی۔ لکه چه دواړه دعوه دَ قیمتً آخستلو کوی۔ دَ یو سړی نه (په هغے صورت کښې وُړومبے تاریخ واله غوره وی۔ دارنګ دِ دلته هم شی) لکن کومه خبره چه زیلعی کړیده دا دَ هغے نه مخالفه ده۔

**مسئله** :۔ که دوؤتنو دعوه وکړه دَ قیمتً آخستلو دَ جدا جدا سړی نه۔ او دَ خپل خپل خرخونکی دَ ملکیت تاریخ ئے او خوو (مثلاً یو وئیل چه ما دَ زید نه په بیعه آخستے دے۔ او زید ئے دَ فلانی تاریخ نه مالك وو۔ او بل وئیل چه ما دَ بکر نه په بیعه آخستے دے او بکر ئے دَ فلانی تاریخ نه مالك وو) نو په دے صورت کښې څوتړ دَ ټولو امامانو په نزد تاریخ له اعتبار شته دے۔

**مسئله** :۔ مدعی بے قبضے او خاوند دَ قبضے که دَ یو شی دَ قیمتً آخستلو دعوه وکړه۔ دَ جدا جدا سړی نه۔ او دوارو دَ خپلے خپلے بیعے تاریخ وُخوُو۔ او دَ یو په تاریخ کښې جهالت وو۔ په دے شان سره چه مُدعی بے قبضے دعوه وکړه چه دا ما دَ زید نه په بیعه آخستے۔ یو کال ئے کیږی۔ او شاهدان ئے وُدرول او خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره۔ چه ما دَ بکر نه په بیعه آخستے۔ یو یا دوه کاله ئے کیږی۔ او دَ شاهدانو شك وو په زیاتوالی کښې (یعنے په دے خبره کښې چه خاوند دَ قبضے چه په بیعه آخستے دے۔ دَ یو کال نه ئے زیاته مُده کیږی۔ او که نه) نو حکم به کیږی۔ دَ پاره دَ مُدعی

بے قبضے ـ او دا حکم هله دے ـ چه دواړه مدعیانو دعوه دَ ملکیّت کړے وی په سبب سره ـ (یعنے سبب دَ ملکیّت ئے خوولے وی ـ مثلاً دا چه په بیعه رٰ اخستے دے) اوکه یو دعوه دَ ملکیّت کوله په سبب سره ـ او بل دعوه دَ ملکِ مطلق کوله (یعنے صرف دائے وئیل چه دا څما دے ـ او سبب دَ ملکیّت ئے نه ذکر کاوو) په دے شان سره چه مدعی بے قبضے دعوه کوله ـ چه دا شے دَ بو کال نه څما دے ـ او خاوند دَ قبضے دعوه کوله ـ چه دا ما دَ بکر نه په بیعه اخستے دے ـ په داسے حال کښ چه هغه ئے مالك وو ـ دوه کاله ئے کیږی نوحکم به کیږی دَ پاره دَ مدعی بے قبضے ـ ځکه چه خاوند دَ قبضے خصم (جګړه کوُنکے) دے ـ دَ خپل خرڅونکی (یعنے دبکر) دَ جانب نه ـ دَ هغه دَ ملکیت په ثابتولوکښ ـ دَ پاره ددے چه بیائے دَ هغه نه ځان ته را کاږی ـ نوداسے شوه لکه بکرچه حاضرشوے وی ـ او شاهدان ئے وُدرولی وی په دے خبره چه دا خیزڅما دے ـ او دغه خیزئے هم په قبضه کښ وی ـ ځکه چه دَ قیمهٔ آخستونکی قبضه چه ده ـ داجو په معنٰی کښ دَ هغه خرڅونکی قبضه ده ـ اوکم داسے وے ـ نو دَ مدعی بے قبضے دَ پاره به حکم کیدلو ـ نو دلته همدارنګ حکم شهٔ ـ او دارنګ حکم دے ـ که مدعی بے قبضے شاهدان وُدرول په ملکیت دَ یو شی باندے په یو سبب سره ـ او تاریخ ئے دَ دوؤ کالواوخودلو (مثلاً په دے خبره ئے شاهدان وُدرول ـ چه داشے ما دَ زید نه په بیعه آخستے دے ـ او دوه کاله ئے کیږی او خاوند دَ قبضے په دے خبره شاهدان وُدرول ـ چه داشے دَ دریؤ کالونه څما دے ـ نو دغه شے به دَ مدعی بے قبضے شی ځکه چه مدعی بے قبضے چه دے ـ دے دَ خپل خرڅونکی (یعنے دزید) دَ جانبه خصم (مقدمه کوُنکے) شه ـ لکه چه مخکښ تیر شوی دی ـ نوګویا زید حاضر شوے دے ـ اوشاهدان ئے وُدرولی دی" چه دا شے څما دے" او خاوند دَ قبضے هم شاهدان وُدرولی دی ـ چه دا څما دے ـ نو دغه شے دَ مدعی بے قبضے شه ـ (ځکه چه مُدعی بے قبضے او خاوند دَ قبضے چه په ملک مطلق شاهدان وُدروی ـ نو شاهدان دَ مُدعی بے قبضے غوره وی ـ اګرکه خاوند دَ قبضه تاریخ خوُلے وی ـ او مدعی بے قبضے نه وی خوُلے) نو دارنګ حکم شه دلته ـ

**مسئله** :- که ( په دے تیرو شوو مسئلو کښې مدعی او مدعا علیه ) دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان ودرول - او دواړو تاریخ خوولے وی. خو یو خاص تاریخ خوولے وی - او بل وړومبے تاریخ ذکر کړے وی. لکن بیان کړے ئے نه وی په دے شان سره چه یو خو په دے خبره شاهدان ودرول - چه ما داشے دَ بکر نه په بیعه آخستے دے یو میاشت کیږی - او هغه بل شاهدان ودرول په دے خبره" چه دا ما دَ دغه بکر ته ستا نه مخکښې په بیعه آخستے دے - نو اے ! په دے قدر سره وړومبیوالے راځی او که نه ؟ نو دَ شیخ الاسلام برهان الدین صاحبؒ په فوائد کښې ذکر دی - چه هو! په دے سره مخکښې والے ثابتیږی. ځکه چه هغه وئیلی دی - چه دواړو که دَ یو سړی نه دَ قیمتؔ آخستلو دعوه کوله - او مدعی بے قبضے شاهدان ودرول. چه ما په بیعه وړومبے آخستے دے - او خاوند دَ قبضے تاریخ دَ بیعے نه وو خوولے - نو دَ مدعی بے قبضے دا وینا دَ وړومبوالی دَ پاره کافی ده - او په دغه کتاب کښې دَ نکاح په دعویٰ کښې دا هم وئیلی دی چه ( دَ یوے ښځے دَ نکاح چه دوه تنه دعوه کوی - که په هغو کښې یو اووئیل چه ځما نکاح وړومبے شوے دے - نو چه خاص تاریخ ذکر نه کړی نو په دے قدر سره غوره والے راځی - او که په دے قدر ئے شاهدان تیر کړل - نو حکم به ورلوه ورکړے شی - او دَ قاضی ظهیر الدین رح په فتاویٰ کښې مذکور دی - چه مدعی بے قبضے او خاوند دَ قبضے دواړو که دَ یو سړی نه دَ قیمتؔ اخستلو دعوه کوله - او دواړو تاریخ دَ خپلے خپلے بیعے وو نه خوو - او یو پکښې اووئیل چه ځما بیعه ستا دَ بیعے نه وړومبے شوے وه نو دے دَ هغه بل نه غوره دے - او په فتاوی دیناری کښې وئیلی دی - چه په دے قدر سره وړومبے والے نه ثابتیږی - نه په بیعه کښې او نه په نکاح کښې ترکومے پورے چه شاهدان داسے او نه وائی - چه دَ دهٔ نکاح یا بیعه دَ فلانی کال په بزرګه میاشت کښې شوے ده - او دَ هغه بل دَ دغه کال په میاشت دَ شو قدر کښې شوے ده - بیا ئے وئیلی دی چه ځموږ مخکنو عالمانو به وئیل چه په دے سره وړومبی والے ثابتیږی - اګر که بیان و نکړی - لکن موږ په بعضو شروطو کښې دا خبره موندلے ده - چه بیان دَ تاریخ ضروری دے او موږ هم په دے باندے ولاړ یو -

زه وایم۔ چه ځما په نزد ډیره حقه خبره داده چه په دے قدر سره ورومبیوالے ثابت شي ۔ ځکه چه اصلي غرض خو دا دے ۔چه حال قاضي ته ښکاره شي ۔ او دا قدر په دے کښې کافي دے

**مسئله** :۔یو مدعي بے قبضے په یوشي دعوه وکره ۔ چه دا ما د زید نه په فلاني تاریخ په بیعه آخستے دے۔ نو خاوند د قبضے په دے خبره شاهدان ودرول ۔ چه دغه زید ستا د آخستلونه ورومبے دا سے اقرار کرے وو ۔ چه دا شے ځما د ورور دے ۔او رور ئے هم تصدیق کرے وو ۔ نو ما بیا د هغه رور نه ئے په بیعه واخستنه ۔ او تاریخ د اقرار ئے ونځوؤ۔(چه زید کله د خپل رور د پاره اقرار کرے وو۔) نو دا جایزه ده ۔ او دا لفظ ورلره کافي دے ۔چه ستا د اخستو نه مخکښې " فصولین په اتم فصل کښې"

**مسئله** :۔که یو مدعي شاهدان ودرول چه دا شے ما د زید نه په بیعه اخستے دے ۔ او دویم مدعي شاهدان ودرول ۔چه دا ماته بکر هبه (بخلے) کرے دے او ماتہ قبض کرے دے ۔ او دریم مُدعي شاهدان ودرول ۔چه دا ماته د خپل والد صاحب مرحوم نه په میراث کښې پاتے شوے دے ۔او څلورم مدعي شاهدان ودرول ۔چه دا ماله خالد خاص د خدائ په نامه راکرے دے ۔ او ما ته قبض کرے دے ۔ نو دغه شے به څلورو حصے کرے شي ۔ او د هر یو د پاره به په یوه یوه حصے سره حکم وکرے شي ۔ ځکه دوئ دغه شي ملکیت حاصلوی د خپلو مالک کرزونکو نه۔ نو ګویا به وایو چه ګویا هغه څلور واړه (یعنے زید ۔ بکر ۔ والد ۔ خالد) په خپله حاضر شوی دی ۔ او په خپل خپل ملکیت مطلقه ئے شاهدان ودرولی دی۔

**مسئله** :۔که مدعي بے قبضے شاهدان ودرول په ملک مطلق د یو شي باندے ۔(یعنے سبب د ملکیت ئے بیان نکړو ۔خو وے وئیل ۔چه دا ځما دے۔) او خاوند د قبضے په دے خبره شاهدان ودرول چه دا ما ستا نه په بیعه سره اخستے دے ۔ نو خاوند د قبضے غوره شه ۔ ځکه چه مدعي بے قبضے اګرکه د خپل مالک والی د ورومبیوالي دعوی کرے ۔ لکن خاوند د قبضے ترِ ملکیت حاصل کرے دے ۔او په دے دواړو خبرو کښې څه لرے والے نشته ۔ نو ګویا خاوند د قبضے ورته وائي چه واقعي دا شے ورومبے ستا وو ۔ لکن ما درنه په بیعه اخستے دے ۔" هدایه "

**مسئله**:- که مدعی بے قبضے دعوه وکړه. چه فلانئے کور چه د زید په قبضه کښ دے. هغه ما د زید نه په بیعه آخستے دے. او شاهدان ئے ودرول او زید په دے خبره شاهدان ودرول. چه هغه ما د دے مدعی بے قبضے نه په بیعه آخستے دے. او دواړو د بیعے تاریخ ذکر نه کړو. نو د دواړو شاهدان به رد شی. اوکور به د خاوند د قبضے په قبضه کښ پریخودے شی. دا حکم د شیخینو په نزد دے. او امام محمد صاحبؒ وائی چه په دواړو شهادتونو سره به حکم کیږی. اوکور به د مدعی بے قبضے شی. ځکه چه عمل په دواړو شهادتونو ممکن دے. نو مونږ به وایو. چه ګویا خاوند د قبضے دغه کور د مدعی بے قبضے نه په بیعه آخستے وو. او قبض کړے ئے وو. خو بیا ئے په مدعی بے قبضے خرڅ کړے دے. لکن سپارلے ئے ورته نه دے. ځکه چه د خاوند د قبضے دا قبضه چه ده. دا دهٔ د بیعے ورومبے والے ښئی. او مونږ عکس وشکړلو. (یعنے مونږ دا اوندونیل. چه ګویا مدعی بے قبضے دغه کور د خاوند د قبضے نه قیمةً آخستے دے. او بیائے پرے خرڅ کړے دے.) ځکه چه (په دے صورت کښ لازمیږی خرڅول د یو شی پخوا د قبض کولو د دغه شی نه. او حال دا دے. چه سړی لاشے نه وی قبض کړے. او بیائے خرڅوی. نو دا جایزه نه ده. او امام محمد صاحبؒ وائی. چه دغه شے که منقولی نه وی. نو هم ئے خرڅول جایز نه دی. پخوا د قبض کولو نه. او د شیخینؒ دلیل دا دے چه د بل نه څه شے په بیعه غوښتل په اصل کښ د خرڅونکی په ملکیت اقرار کول دی. نو دا سے شوه. لکه د دواړو شاهدان د دواړو په اقرار ودریدلی دی. (نو ګویا مدعی بے قبضے اقرار کړے دے. د خاوند د قبضے په ملکیت سره. او هغه اقرار کړے دے د دهٔ په ملکیت سره) او په دے دواړو اقرارونو کښی خوتول متی چه معاوضه شته دے. نو دا رنګ حکم دلته شه (نو دواړه شهادتونه رد شول) بیا (دا خبره ایزده کړه چه) د دواړو جانبو شاهدانو که د روپو د رسولو هم شاهدی کړی وی. نوچه د دواړو قوته برابر وی. (مثلاً هریو دعوه په زر زر روپئ د قیمةً اخستلو کړے وه) نو د شیخینؒ په نزد زر د زرو په قصاص (یعنے مقابله) کښ لاړے. ځکه چه روپئ دواړو قبض کړے دی. او که شاهدانو د روپو د رسولو

شاهدی نه وی کړی۔ نو بیا دَ شیخینو په نزد دَ قصاص خبره نشته او دَ امام محمّد صاحب رح په نزد قصاص شته دے۔ ځکه چه دَ هغه په نزد قیمت هم ثابت دے۔ (یعنے دَ امام محمّد صاحب رح په نزد چونکه شهادتونه ثابت دی رد شوی نه دی۔ نو دواړو شهادتونو دَ خرڅولو په عوض کښې قیمت هم واجب کړے دے۔ نو ذلته قصاص لاغے۔ یعنے یو وجوب دَ بل وجوب په مقابله کښې لاړ شه۔)

**مسئله**:۔ که مدعی بے قبضے دعوه وکړه او شاهدان نے وُدرول۔ چه فلانے کور چه دَ زید په قبضه کښې دے۔ ما دَ زید نه آخستے دے په بیعه او قبض کړے م دے۔ او زید په دے خبره شاهدان وُدرول۔ چه هغه ما دَ دے مدعی نه په بیعه آخستے او قبض کړے م دے۔ نو په دے مسئله کښې امام محمّد صاحب رح هم دَ شیخینو رح سره په دے خبره کښې متفق دے چه شهادتونه به دواړه وُغورزیږی۔ او کور به دَ خاوند دَ قبضے په قبضه کښې پاتے کړے شی۔

**مسئله**:۔ که مدعی بے قبضے دعوه وکړه۔ او شاهدان نے وُدرول۔ په دے خبره چه فلانے کور یا فلانئ زمکه چه دَ زید په قبضه کښې ده۔ هغه ما دَ زید نه په بیعه آخستے ده۔ او زید شاهدان وُدرول۔ چه هغه ما دَ دے مُدعی نه په بیعه آخستے ده۔ او دَ دواړو شاهدانو ذکر دَ قبض کولو وُنکړلو۔ او تاریخ دَ بیعے نے او خوړ۔ خو تاریخ دَ مدعی بے قبضے مخکښې وو۔ نو دَ شیخینو رح په نزد به حکم کیږی۔ دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے۔ نو گویا مدعی بے قبضے مخکښې دغه زمکه دَ ده نه په بیعه اخستے وه۔ خو لا قبض کړے نے نه وه۔ بیائے په ده خرڅه کړه۔ او دَ شیخینو رح په نزد دا (خرڅول مخوا دَ قبض نه) په غیر منقولی شی کښې جایز دی۔ او دَ امام محمد صاحب رح په نزد به حکم کیږی دَ پاره دَ مدعی بے قبضے۔ ځکه چه دَ دے بیعه مخوا دَ قبض نه دَ امام محمد صاحب رح په نزد جایزه نه ده۔ نو زمکه دَ مدعی بے قبضے په ملکیت کښې پاتے شوه۔ او که دَ دواړو شاهدانو ذکر دَ قبض هم کړے وی۔ نو بیا به (خو نزدَ دریواړو اماما نو رح په نزد) حکم کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے۔ ځکه چه دا دواړه بیعے جایزے دی۔ په دواړو قولونو باندے (یعنے خرڅول دَ خاوند دَ قبضے په مدعی باندے۔ او خرڅول دَ مدعی بے قبضے په خاوند دَ

قبضے باندے ۔ دا دواړه بیعے جایزے دی ۔ په دے صورت کښې هم دَ شیخینو په قول هم دَ امام محمد صاحب رح په قول) او که تاریخ دَ خاوند دَ قبضے وړومبے وو۔ نو حکم به کیږی دَ پاره دَ مدعی بے قبضے په دواړو صورتونو کښې (یعنے برابره خبره ده چه شاهدانو شاهدی کړی دی ۔ په قبضه کولو یائے نه وی کړے) نو موږ به وایو ۔ چه گویا دغه دغه زمکه خاوند دَ قبضے په بیعه اخستے ده دَ دغه مدعی نه ۔ او قبضه کړے ئے ده ۔ لکن بیائے پرے خوشه کړے وه ۔ خو سپارلے ئے ورته نه ده ۔ یائے ورته سپارلے ده ۔ خو دده لاس له بیا راغلے ده ۔ په بله ذریعه سره ۔ (مثلاً په طریقه دَ عاریت یا دَ اجارے) "هدایه په باب دَ دعوی دَ دوؤ کسانو کښې"

**مسئله** :۔ دَ زید په قبضه کښې یوشے دے ۔ بل چاپرے دعوه وکړه او شاهدانئے پرے اودرول ۔ چه دا شے ما دَ زید دَ پلار نه لس کاله کیږی چه په بیعه اخستے دے ۔ او حال داوی چه دَ زید پلار مړ وی ۔ او زید شاهدان وُدرول ۔ چه ځما مرحوم پلار مړ دے ۔ دَ هغه دَ مرگ خوشل کاله کیږی نو دَ زید دا رقعه صحیح دفعه ده ۔ (په دے سره رد کیږی شاهدان دَ مدعی) او عمر حافظ صاحب رح وئیلی دی ۔ چه قاضی به ئے نه آوری (یعنے په دے سره شاهدان دَ مدعی نه رد کیږی) او صاحب دَ قنیے کتاب وئیلی دی ۔ چه دَ حافظ صاحب رح خبره حقه ده ۔ بنا ئیږی چه یاده کړے شی ځکه چه هغه دا خبره یاده ساتلے ده ۔ چه دَ مرگ زمانه دَ قاضی دَ حکم لاندے نه راځی ۔" جامع الفتاوٰی په دعاوی کښې"

**مسئله** :۔ مدعی بے قبضے دعوه وکړه ۔ چه دا شے ما ستا دَ پلار نه په بیعه اخستے وو ۔ او خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول ۔ چه دا شے ځما دَ پلار دَ مرگه پورے دَ هغه ملکیت وو ۔ نو شاهدان دَ قبضے آخستلو غوره دی ۔ "لسم فصل دَ فصولین"

**مسئله** :۔ یو سړی په بل باندے دَ زمکے دعوه وکړه ۔ او شاهدانئے پرے وُدرول ۔ نو مدعا علیه اووئیل ۔ چه دغه زمکه ما ستانه په بیعه اخستے ده ۔ نو مدعی اووئیل چه هو! لکن زهٔ په هغه وخت کښې وړوکے وُم ۔ او مدعا علیه اووئیل چه نه! بلکه ته په هغه وخت کښې ځوان وے

او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان ؤدرول - نو کوم یو چه دَ وړوکوالی
دعوه کړے وه۔ دَ هغه شاهدان غوره دی۔

**مسئله** :- زید په خالد باندے یوه زمکه خرڅه کړه۔ نو دَ زید ورور ولګیدۀ
په خالد ئے دعوه وکړه - چه زید خو معتوه (بوله او ناپوهه) دے۔ او زۀ ئے
دَ دغے زمکے په بابت کښ دَ قاضی دَ طرف نه وصی یم (نو دا بیعه نه ده شوے)
نو خالد او وئیل چه دا سے نه ده۔ بلکه زید ښه هوښیار دے۔ او دواړو په
خپله خپله دعوه شاهدان ؤدرول۔ نو شاهدان دَ بولتوب او دَ ناپوهئ
غوره دی -" دا مسئله جامع الفتاوی په دعاوی کښ ذکر کړے ده"

زۀ وایم چه دا مسئله مخالفه ده دَ هغے نه چه په دررغرر کتاب کښ ئے
راوړی دی - او هغه دا دی چه شاهدان دَ دے خبرے چه دا معامله کوئکے
کوئکے په وخت دَ معاملے کښ هوښیار وو۔ غوره دی دَ شاهدانو دَ خبرے
نه۔ چه دے په دغه وخت کښ لیونے وو۔ یا ئے عقل کمزور وو۔ او په قنیه
کتاب کښ ئے وئیلی دی - چه یو سړی خپله زمکه خرڅه کړه۔ نو دَ هغه ورور
دعوه وکړه - په هغه سړی باندے چه دغه زمکه ئے آخستے۔ چه ځما ورور
خرڅوئکے ناپوهه او بوله سړے دے۔ او زه ئے وصی یم۔ او دغه اخستونکی
او وئیل - چه نه بلکه هغه ښه هوښیار دے - او دواړو شاهدان ؤدرول
نو شاهدان دَ ناپوهئ غوره دی۔ بیا ئے په قنیه کښ وئیلی دی - چه دَ
دغه خرڅوئکی لیونتوب که ښکاره شی۔ او حالاً جوړ وو۔ او دا ئے وئیل
چه زۀ دَ دغے زمکے دَ خرڅولو په وخت کښ جوړ نه وم۔ نو خبره ئے معتبره
ده - او که شاهدان وو۔ نو شاهدان دَ دے خبرے چه دے په دغه وخت
کښ جوړ وو۔ غوره دی۔ دَ هغه شاهدانو نه چه شاهدی کوی۔ په دے
خبره چه دے په دغه وخت کښ لیونے وو۔ او دَ امام ابو یوسف صاحب
نه روایت دے۔ چه یو سړی که دعوه وکړه چه فلانے کور ما دَ فلانی سړی
نه په بیعه آخستے دے۔ او دوؤ تنو شاهدی کوله۔ چه دغه خرڅوئکے په
وخت دَ بیعے کښ لیونے وو۔ او نورو دوو تنو شاهدی کوله چه هغه
هوښیار وو۔ نو شاهدان دَ عقل او دَ بیعے دَ صحیح والی غوره دی" ختم
شو۔ مضمون دَ قنیے"

**مسئله** :- که چا په بل باندے څه شے خرڅ کړے وو. بیا دوئ دواړه مختلف شو. په اندازکښې د روپو. مثلاً خرڅونکی وئیل. چه هغه شےما تاله په دوه سوه روپئ درکړے وو. او اخستونکی وئیل. چه په سل دِراکړے یا دواړه مختلف شو په صفت د روپوکښې نو خرڅونکی دعوه کوله چه هغه شے ما په تاپانړے په رواجی روپوسره در خرڅ کړے دے. او دغه اخستونکی دعوه کوله. چه په کوټو روپو سره دے را خرڅ کړے دے. او یا دواړه مختلف شو د قیمت په جنس کښې په دے شان سره چه خرڅونکی دعوه کوله چه ما درسره په قیمت کښې اشرفئ کړے وے. او اخستونکی دعوه کوله چه روپئ. یا دواړه مختلف شو په انداز د مبیع کښې (یعنے د کوم شی بیعه چه ئے کړے ده. د هغے په مقدار کښې مختلف شول) په دے شان سره چه خرڅونکی د مبیع یو مقدار اوخوو. او اخستونکی د هغے نه د زیات دعوه کوله (مثلاً خرڅونکی وئیل چه ما تاله یو څټه په پنځوس روپئ درکړے ده. او اخستونکی وئیل. چه دوه څټے دِ په پنځوس راکړی دی) نو په دے ټولو صورتونو کښې حکم دا دے. چه کوم یو په خپله دعوه شاهدان تیر کړل. نو د هغه د پاره به حکم وکړے شی اوکه دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول. نو کوم یو چه زیاتوالے ثابتوی. د هغه د پاره به حکم کیږی. ځکه چه شهادتونه د څه شی د ثابتولو د پاره وی. (نو چه کوم زیاتوالے ثابتوی. هغه به قبول شی) اوکه خرڅوُنکے او اخستونکے مختلف شو هُم د قیمت په اندازه کښې او هم د مبیع په اندازه کښې. مثلاً خرڅونکی وئیل چه ما په تا باندے یو مرئے په دوه زره روپئ درخرڅ کړے دے. او آخستونکی وئیل چه تا دوه مرئ په زر روپئ راخرڅ کړی دی. نو په قیمت کښې شاهدان د خرڅونکی غوره دی. او په مبیعه کښې شاهدان د آخستونکی غوره دی. یعنے د خرڅونکی د پاره به د دوه زرو روپو حکم کیږی. او د آخستونکی د پاره به د دوؤ مریونو. (نو قاضی به حکم کوی چه دوه مرئ تے په دوه زره روپئ خرڅ کړی دی.) درر غرر د باب تحالف په شروع کښې "

**مسئله**:- خرخونکی[1] شاهدان ودرول۔ چه ما په دے آخستونکی باندے دَ خپل کور نیمه معینه حصه په دوه زره روپئ خرخه کړے ده۔ او دغه آخستونکی شاهدان ودرول په دے خبره چه ما ترے دَ دغه کور نا ویشلے نیمه حصه په زر روپئ آخستے ده۔ نو قاضی به حکم کوی۔ چه دغه معینه نیمه حصه ئے په زر روپئ۔ او هم دَ باقی نیمے ناویشلے نیمه ئے په پنځه سوه روپئ شوه۔" وجیز په دعاوی کښ"

**مسئله**:- دَ زید په قبضه کښ یو مرئے وو۔ او یو کور وو۔ نو دوؤ تنو پرے دعوه کوله۔ او هر یو په دے خبره شاهدان ودرول۔ چه دغه کور ما دَ زید نه په هغه مرئی سره چه دَ زید په قبضه کښ دے۔ په بیعه اخستے دے (یعنے په قیمت کښ م ورله دغه مرئے ورکړے دے) او حال دا وو چه خاوند دَ قبضے انکار کاوو۔ دَ دواړو دَ دعوے۔ نو حکم به کیږی چه دغه کور او مرئے دواړه دَ مدعیانو دی په شریکه (نوکه دَ دوئ خوښه وی۔ کور به په شریکه واخلی۔ او مرئے ئے په شریکه دے۔ نو مرئے دَ کور په قیمت کښ زید ته اورسید۔ اوکه ئے خوښه نه وی۔ نو کور دِ خرخونکی ته واپس کړی او مرئے به ترے راواخلی) اوکه دغه کور په دے دواړو مدعیانو کښ دَ یو تن په قبضه کښ وی۔ نو حکم به کیږی چه کور دَ خاوند دَ قبضے شه۔ او مرئے دَ هغه بل مدعی شه۔ او دارنگ حکم دے که کور خوئے په قبضه کښ نه وو لکن شاهدانو ئے شاهدی کړے وه۔ چه دهٔ دغه کور قبضه کړے وو نو قاضی به حکم کوی۔ چه دغه کور ئے شه۔ او دَ زید حق نشته چه کور راوګرزوی۔ اګرکه دَ کور قیمت یعنے مرئے ئے دَ لاسه ووتل) اوکه دواړو مدعیانو دَ خپلے خپلے بیعے تاریخ خوولے وی۔ او تاریخ دَ یو روغه وی۔ نو کور دَ هغه شه او مرئے دَ هغه بل شه۔ په هر حال کښ۔ یعنے برابره خبره ده۔ چه کور دَ دواړو مدعیانو په قبضه کښ وی۔ او یا دَ یو په قبضه کښ وی۔ او یا دَ زید په قبضه کښ وی۔ او یا دَ هغه بل شاهدانو دَ هغه دَ پاره دَ دغے کور په قبضه شاهدی کړی وی۔ اوکه یو مدعی تاریخ دَ بیعے خوولے وو۔ او هغه بل نه وو خوولے۔ نوکه کور دَ خرخونکی په لاس کښ وی (چه

---

[1] دا مسئله دَ قاضیخان دَ مسئلے نه کومه چه په وروستو ذکر شی مخالفه ده ۱۲ "مترجم"

زید دے) نو کور به دَ دغه مدعی شی ۔ چه تاریخ خوولے دے ۔ او مرئے به دَ
هغه بل مدعی شی ۔ او که یو مدعی تاریخ خووُلے وی ۔ او دَ هغه بل په قبضه
کښې کور وی ۔ نو کور به دَ خاوند دَ قبضے شی ۔ او دا رنګے کوم مدعی چه تاریخ
دَ بیع نه وی خوولے ۔ که دَ هغه په قبضے شاهدانو شاهدی کړی وی نو هغه
غوره دے ۔ او که دَ یو قبضه لیدلے شوے او ظاهره وه ۔ او دَ بل په قبضه
صرف شاهدانو شاهدی کوله ۔ نو ظاهره قبضه غوره دکه ۔ او که کور
دَ دواړو مدعیانو په قبضه کښې وو ۔ او یو تاریخ دَ بیع وخووَ ۔ او هغه بل
وُنه خوو ۔ نو حکم به کیږی چه دغه کور دَ دواړو په شریکه شه
او مرئے ئے هم په شریکه دے ۔

**مسئله** :- یو سړے وو ۔ چه په قبضه کښې ئے یو کور وو ۔ دعوه پرې
وکړه بل سړی ۔ چه دا کور ما دَ دے خاوند دَ قبضے نه په بیعه اخستے دے
یو کال ئے کیږی او خاوند دَ قبضے ووئیل ۔ چه دا دَ فلانی غائب سړی کور
دے ۔ یوه میاشت کیږی چه ما پرے ور خرڅ کړے دے ۔ او هغه ته م
سپارلے دے ۔ بیا هغه ځما څخه دَ امانت په طور پریخے دے ۔ نو حکم
دا دے ۔ چه کوم سړی پرے دعوه کړے ده ۔ که هغه دَ خاوند دَ قبضے تصدیق
او کړلو ۔ په بابت دَ بیع او دَ امانت کښې (مدعی ورته او وئیل ۔ چه ته رشتیا
وائے ۔ دغه کور تا په فلانی غائب خرڅ کړے او سپارلے دے ۔ او هغه
درته بیا دَ امانت په طور پریخے دے ۔) او یا قاضی ته ۔ (دَ بیع او دَ امانت) دا
خبره معلومه وه ۔ نو دَ دوئ په منځکښې جګړه نشته ۔ (یعنے په دے صورت
کښې مدعی دَ خاوند دَ قبضے سره جګړه نه شی کولے ۔ بلکه دَ جګړے حق ئے
هغه غائب سره دے) او که مدعی دا خاوند دَ قبضے دَ بیع او دَ امانت په دعوه
کښې دروغژن ګڼړلو ۔ او قاضی ته هم دَ دے خبرے څه پته نه وه ۔ نو بیا
خاوند دَ قبضے ئے خصم دے ۔ (یعنے مدعی ورسره په دے صورت کښې
مقدمه کولے شی) او خاوند دَ قبضے چه کومه دعوه دَ بیع او دَ امانت کړے
وه ۔ که هغه په دے دعوه شاهدات وُدزول ۔ نو دا شاهدان قبول نه دی
پس که قاضی دَ مدعی دَ پاره حکم وکړلو په دغه کور سره ۔ پس دَ هغے
نه هغه غائب سړے راحاضر شه ۔ او کومه دعوه چه خاوند دَ قبضے کړے وه ۔

په هغه ئے شاهدان وُدرول - نو دا شاهدان هم قبول نه دی - مګر که په دے خبره ئے شاهدان وُدرول - چه دَ یو کال نه زیاته موده کیږی - چه دا کور ما په بیعه آخستے دے - ( نو بیا قبول دی ) او که دغه غائب سړے پس دَ هغے نه حاضر شه - چه مدعی په خپله دعوه شاهدان وُدرولی وو - خو قاضی پرِ لا حکم نه وو کړے - او کومه دعوه چه خاوند دَ قبضے کړے وه - دے حاضر شوی سړی په هغه شاهدان وُدرول - نو دا شاهدان قبول دی - ( او که مدعی دوباره په خپله دعوه شاهدان وُدرول - نو قاضی به دَ مدعی دَ پاره حکم کوی - ځکه چه دَ بیعے تاریخ ئے وړومبے دے ) ....

**مسئله** :- دَ یو سړی په قبضه کښ یو کور وو - بل سړی پرے دعوه کوله - او شاهدان ئے وُدرول - چه خاوند دَ قبضے دَ دغه کور تا ویشلے نیمه حصه په ما په زر روپئ را خرڅه کړے ده - او دَ کور مالک او وئیل - چه ما پرے دغه کور معلومه نیمه حصه په دوه زره روپئ خرڅه کړے ده - نو قاضی به حکم کوی دَ خرڅونکی دَ شهادت په وجه چه معلومه نیمه حصه په دوه زره روپئ خرڅه شوے ده - او دا حکم به هم کوی - چه دَ باقی نیمے نیمه حصه په پنځه سوه روپئ خرڅه شوے ده -

**مسئله** :- یو سړی په بل باندے دَ خپل کور څه حصه خرڅه کړے وه نو دا خرڅونکے په دے خبره شاهدان وُدروی - چه ما په دے سړی باندے دغه کور نا تقسیمه لسمه حصه په زر روپئ خرڅه کړے ده - او اخستونکے شاهدان وُدروی په دے خبره - چه ما ترے تقسیم شوے نیمه حصه په شل روپئ آخستے وه - نو قاضی به دَ اخستونکی دَ پاره حکم کوی - چه دَ کوم نیمے حصے دَ اخستو دعوه ئِ نه ده کړے - دَ هغے لسمه حصه ئِ په پنځه سوه روپئ شوه - ځکه چه خرڅونکی پرے شاهدان وُدرولی دی - او دَ کوم تقسیم شوے نیمے حصے چه ئے دعوه کړے ده - دَ هغے نیمے دَ لسو برخو نه ئے نهه برخے په اتیالس روپئ شوے - او دَ دے باقی لسمه برخه ئے په پنځه سوه روپئ شوه - دَ خرڅونکی دَ شاهدانو په سبب - ځکه چه دَ خرڅونکی شاهدان په دے کښ دَ قیمت په زیاتوالی ودریدلی دی -

**مسئله** :- یو مړی ئے دے دَ زید په قبضه کښ - دوه تنه پرِ دعوه کوی

نویو په دے خبره شاهدان ودروی۔ چه دا مرئے ما په زید باندے په زرا روپئ او په نیم سیر شرابو ورخرڅ کړے دے۔ په داسے حال کښ چه زهٔ د دے مرئ مالک وم۔ او هغه بل په دے خبره شاهدان ودروی۔ چه دا مرئے ما په زید باندے په زرا روپئ او په یو خنزیر ورخرڅ کړیے په داسے حال کښ چه زهٔ دَ دے مرئ مالک وم۔ اوزید دَ دواړو دَ دعوے نه منکر دے۔ (چه تاسو دواړه دروغ وائیئ) نو امام ابو یوسف صاحبؒ وائی۔ چه دغه مرئے به دَواړو مدعیانو ته واپس کړے شی۔ نیم نیم۔ او په دے دواړو مدعیانو کښ دَ هر یو دَ پاره زید دَ دغه مرئ دَ نیم قیمت ضامن دے۔

**مسئله**:۔ دَ زید په قبضه کښ یو مرئے دے۔ دوؤ تنو پردعوه وکړه هریو په دے خبره شاهدان ودرول۔ چه دا مرئے ما په دے زید باندے په سل روپئ ورخرڅ کړے دے۔ او په دے بیعه کښ زید له درے ورځے خیار[1] ایخے شوے وو۔ (مثلاً) او حال دادے۔ چه زید دَ دواړو دَ دعوے نه انکار کوی۔ او وائی چه مرئے ځما دے۔ نواوس دَ زید اختیار دے کوم یو ته چه ئے خوښه وی۔ هغه ته دے مرئے ورکړی۔ اودَهغه بل به پرے سل روپئ لازمے شی۔ اوکه په دے دواړو مدعیانو کښ هریو دا دعوه کړے وی۔ چه په دے بیعه کښ ماله خیار مقرر شوے وو۔ نوکه دواړو بیعه ماته کړی وی۔ نو زید به ونګی۔ هغه مرئے به دے دواړو ته نیم نیم واپس کړی۔ اوبه زید باندے دَ هغو دَ پاره څهٔ تاوان نشته۔ او که دے دواړو دعوه دَ اقرار کړے وی۔ او شاهدان ئے ودرولی وی۔ چه هغه داسے اقرار کړے وو۔ (یعنے هریو مدعی په دے خبره شاهدان ودرولی وی۔ چه زید اقرار کړے دے۔ چه دا مرئے ما دَ دهٔ نه په سل روپئ اخستے دے۔ او په دے بیعه کښ دهٔ له خیار ایخے شوے وو۔) اوبیا دواړو دَ بیعے ماتول غوره کړی وی۔ نو مرئے به دَ دواړو مدعیانو نیم نیم شی اوزید په دے دواړو ته دَ دغه مرئ دَ نیم نیم قیمت ضامن شی۔ اوکه دے دواړو دَ زید په اقرار شاهدان نه وی ودرولی۔ او په بیعه ئے شاهدان

---

[1] خیار څه ته وائی؟ دَ دے دَپاره دَ دویم کتاب مسئلے دَ خیار دَکوره ۱۲ مترجم

ودرولی وی - او بیا قاضی لا د دواړو د پاره حکم نه وو کړے - او دواړو غوره کړه
چه بیعه دِ په ځائے پاتے شی - نو زید به هر یو ته هغه روپئ ورکړی - چه
کړے ئے ورسره کړے وے - که قاضی حکم وکړلو په بیعه سره - او زید له خیار
ثابت دے په سبب د دے - چه بیعه پرے ځان ځان له شوه - (یعنے زید ته
دغه ټول مرئے په یوه بیعه کښ ونه رسیده - بلکه د نیمے حصے بیعه ئے جدا
وشوه - او د نیمے جدا - نو دوه بیعے شوے - په یو ځائے - بوه ونه شوه - نو اوس د ده
خوښه ده - که مرئے اخلی نو وادِ خلی - او که ئے نا خلی - نو بیعه ماتولے شی -) او که
قاضی د دواړو مدعیانو د پاره په داسے وخت کښ " چه د هغوی خیار وخت
لا پاتے وو " حکم وکړلو - چه دا مرئے نیم ستا شو - او نیم ستا - پس د دے نه
دواړو د بیعے ماتول غوره کړل - نو د دے حکم د هغه صورت د حکم په
شان دے - چه دواړو ماتول د بیعے غوره کړی وی - او قاضی ورلره لا حکم
نه وی کړے - (او هغه دا دے چه زید به دواړو ته مرئے نیم نیم واپس کړی.
او نور څه تاوان پرِ نشته) او که قاضی لا د دواړو د پاره حکم نه وو کړے
چه دا مرئے ستا سو د دواړو نیم نیم شئے - او یو اجازه د بیعے وکړه - او هغه
بل د بیعے ماتول او غوښتل - نو نیمه حصه د دغه مرئ خو به هغه مدعی اخلی
چه د بیعے ماتول ئے غوښتلی دی - باقی پاتے شوه نیمه حصه نو) اوس د زید
اختیار دے - که ئے خوښه وی دا نیمه حصه دِ قبوله کړی - په نیمه حصه د هغه
قیمت چه کوم ئے ورسره کړے وو - او که ئے نه وی خوښه نو پرے دِ یږدی - شرح
وخوری

**مسئله** :- یو سړی دعوه وکړه د یو داسے کور چه وو د بل سړی په قبضه
کښ - او شاهدان ئے ودرول چه هغه کور ما په زر روپئ د دے خاوند
د قبضے نه بیعه اخستے - او خاوند د قبضے او وئیل چه ما نه دے خرڅ کړے
پس د دے نه خاوند د قبضے په دے خبره شاهدان ودرول " چه دے مدعی
دغه کور ما ته واپس کړے دے - نو امام محمد صاحب رح د شهادتو په مسئلو
کښ ذکر کړیدی - او وئیلی دی چه دوه شاهدان د خاوند د قبضے قبلوم
او بیعه باطلوم - او خاوند د قبضے چه وروستیه د بیعے نه انکار کړے وو - په
دے سره د کور د واپس کولو شاهدان نه غورزیږی - برابره خبره ده که مدعا

علیه (خاوند دَ قبضے) ورومبیه په انکارکښ داسے وئیلی وی - چه څمونږ په منځکښ بیعه نشته دے - او یائے وئیلی وی - چه ځما او ستا بیعه نه ده جاری شوے وجه داده چه خاوند دَ قبضے وئیلے شی - چه څمونږ په منځکښ معامله دَ بیعے نه وه شوے - خودے مدعی په دغه کوریوځل دعوه کړے وه بیابه په کښ ورنه څه ښکاره شوی وی - نو هغه ئے بیا ماته واپس کړے دے -

اوشیخ امام صاحب چه په خواهرزاده سره مشهور دے - هغه وائی - چه دَ کوردیه واپس کولو بانده دَ دغه مدعا علیه شاهدان هاله تیلیږی - چه دے دعوه دَ توفیق وکړی - یعنے داسے خبره وکړی - چه په انکارکښ هم دروغژن نه شی - او دواړے خبرے ئے برابرے شی - نکه چه اوس اوس تیرشه ) او دَ امام محمد صاحب رح هم دا مراد دے - اګرکه ذکرکړے ئے نه دے -

**مسئله** :- یو سړی دعوه وکړه دَ داسے یو څیزچه دَ زید په قبضه کښ وو - نو دے وئیل - چه داشے مادَ زید نه په بیعه آخستے دے په زر روپئ - او روپئ م ورلره ورکړیدی - اوپه دے ئے شاهدان وُدرول - اوخاوند دَ قبضے (یعنے زید) اووئیل - چه داما څخه دَ فلانی سړی امانت دے - اومدعی دَ شاهدانو کره والے لانر وو ښکاره شوے چه دا حاضرشه هغه فلانے چه دَ کوم دَ امانتو زید دعوه کړیده - نوزید په وُنکی - هغه شے به دغه فلانی له ورکړی - پس که مدعی دَ شاهدانو کره والے معلوم شو - نو دَ مدعی دَ پاره به په دغه شهادت سره حکم وکړے شی - اودا حکم به حکم نه وی - په هغه فلانی بانده - نو فائده ئے داشوه - چه هغه فلانی که ددے نه وروستو په دے خبره شاهدان وُدرول " چه داشے ځما ملکیت دے - او ما زید څخه په طوردَ امانت ایښے وو " نو دا شاهدان ئے قبول دی - او دا مسئله په درے قسمه ده - یوقسم خو هغه دے چه ذکر شه - اودوئیم قسم دادے - چه مُدعی که یو شاهد تیر کړے وو - او بیا هغه فلانے حاضر شه نو بیا مدعی یو دوئیم شاهد تیرکړه - نودا مسئله او دا وړو سبئ مسئله دواړه برابرے دی - په تولو خبرو کښ چه مونږه مخکښ ذکر کړیدی - اودریم قسم دادے - چه مدعی که لا یو شاهد هم نه وو وُدرولے - تردے پورے چه هغه فلانے حاضرشه - اودَ زید تصدیق ئے وکړو - ( چه دے رشتیا

وائی۔ داشے ورلره ماډ امانت په طور ودکړے وو۔) نو زید ته به حکم کیږی۔ چه ورته ئے ورکړه۔ پس که مدعی په خپله دعوه شاهدان ؤدرول۔ نو دَ مدعی دَ پاره به حکم وشی۔ او دا حکم به حکموی په دغه فلانی باندے نو که بیا دغه فلانی شاهدان ؤدرول په دے خبره۔ چه داشے ما زید له په طور دَ امانت ورکړے وو۔ نو دا شاهدان نه قبلیږی۔

**مسئله:-** یوسړی دعوه وکړه دَ یو داسے کور چه وو دَبل په قبضه کښ۔ چه دا ځما دے۔ او شاهدان ئے ؤدرول۔ او مدعا علیه شاهدان په دے خبره ؤدرول چه دے مدعی دغه کور په فلانی غائب سړی باندې په دومره قیمت خرڅ کړے دے۔ نو دَ مدعا علیه دا شاهدان به قبول شی۔ او دَ مدعی شاهدان به اوغورزیګی۔ او دَ هغه فلانی غائب په حق کښ به دَ دغه کور بیعه نه ثابتیږی۔ لکن که شاهدانو داسے شاهدی وکړه چه دے مدعی دغه کور په فلانی غائب باندے خرڅ کړے دے۔ او هغه غایب ترے قبض کړیدے۔ (نو بیا به بیعه ثابته شی)

**مسئله:-** دَ یو سړی په قبضه کښ وو یو کور۔ نو راغے دَ هغه رور او دعوه ئے وکړه په زور وشور۔ چه دا کور ځمونږ دَ مرحوم پلار وو۔ او هغه فلانے وو۔ مړشوے دے۔ او دا کور ئے مونږ دوارو ته په میراث کښ پریښے دے۔ نو زهٔ خپله حصه غواړم۔ نو خاوند دَ قبضے او وئیل۔ چه دا کور ځما دَ پلار نه وو۔ نو چه مدعی په خپله دعوه شاهدان ؤدرول۔ نو بیا دهٔ په دے خبره شاهدان ؤدرول۔ چه دا کور ما دَ پلار په ژوندانه کښ په حالت دَ صحت کښ دَ هغه نه په بیعه اخستے دے۔ او یا دهٔ دا دعوه وکړه چه ځما پلار په حالت دَ صحت کښ ځما دَ پاره دَ دے کور اقرار کړیدے (بیعے وئیلی وُو۔ چه دا دَ دهٔ دے) نو دَ دهٔ شاهدان به قبول شی۔ او دَ مدعی شاهدان به وغورزیګی۔ او که دهٔ کوم وخت چه رور پرے دعوه کوله دَ هغه په جواب کښ داسے وئیلی وی۔ چه په دے کور کښ ځما دَ پلار هڅ څه حق نه وو۔ بیا چه مدعی په خپله دعوه شاهدان ؤدرول نو دهٔ په دے خبره شاهدان ؤدرول۔ چه دا کور ما دَ پلار نه په حالت دَ صحت کښ په بیعه آخستے دے۔ نو دا شاهدان قبول نه دی۔

**مسئله**:- دَ یو سړی په قبضه کښې یو کور وو- بل سړی دعوه وکړه- چه دغه کور ما دَ خاوند دَ قبضے نه په زر روپیٔ آخستے دے- نو خاوند دَ قبضے اووئیل چه ما نه دے خرڅ کړے- نو کوم وخت چه مدعی په خپله دعوه شاهدان وُدرول جو خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول- چه مُدعی دغه کور ماته بیرته راکړو لے دے- نو دا شاهدان قبول دی- او دَ دوارو بیعه به ماته شی- او دا ئے حکم دے که خاوند دَ قبضے وړومبیه په انکار کښې داسے وئیلی وی- چه ځمونږ په مینځکښې بیعه نه ده جاری شوے- یا چه مدعی شاهدان وُدرول چه دغه کور تا ما قیمتاً آخستے دے- جو دهٔ شاهدان وُدرول- چه دغه کور ماته دے مدعی واپس کړے دے- نو دا شاهدان قبول دی-

**مسئله**:- که چا په بل بانډے دعوه وکړه- چه دهٔ په ما بانډے دا وینزه په زر روپیٔ را خرڅه کړے ده- او خاوند دَ قبضے اووئیل- چه ما په دهٔ هرګز نهٔ ده خرڅه کړے- نو چه مدعی په بیعه بانډے شاهدان تیر کړل- او قاضی وَدلته په دغه وینزه سره حکم وکړلو- بیا مدعی په دغه وینزه کښې څه عیب[1] اوموندهٔ- جو مدعا علیه ته ئے دَ واپس کولو اراده وکړه- نو مدعا علیه اووئیل- چه دهٔ ته ما (دَ بیعے په وخت کښې) ځان دَ دے وینزے دَ هر عیبه بری کړے وو- او دهٔ وئیلی وُو- چه ځما دَ هر عیبه سره قبوله ده- نو دَ دهٔ شاهدان قبول نه دی- او دَ امام ابویوسف صاحبؒ نه روایت چه قبول دی-

**مسئله**:- یو کور وو- په قبضه کښې دَ یو سړی- دعوه ئے وکړه- دوهٔ رو تړه- او دواړه بالغ وو- یو اوی وو دَ بل نه- او دعوه ئے دا وکړه- چه دغه کور ځمونږ دَ پلار وو- هغه مړ شوے دے- او دغه کور ئے مونږ دوارو ته میراث پریښے دے- او دوارو په خپله دعوه شاهدان وُدرول- نو مدعا علیه دے دعوے په جواب کښې اووئیل- چه دغه کور ما په زر روپیٔ ددے مشر نه- او دَ دے کشر دَ وصی نه کوم وخت چه دے وړوکے وو- په بیعه آخستے دے نو دوارو رو تړو دَ دے نه انکار اوکړو- او دغه وصی دَ وصیتوب نه انکار وکړلو (چه زهٔ ئے وصی نه وم) نو مدعا علیه شاهدان وُدرول په دے خبره چه دے وصی اقرار کړے دے- وئیلی دی- چه دغه کور ما دَ خپل وصیتوب په حکم

---

[1] مثلاً دَ لاس ئے شپږ ګوتے وے-[2] مترجم

خرڅ کړے دے۔ نو عالمان وائي چه دا شهادت قبول نه دے۔ او هله به قبلیږي چه شاهدان داسے شاهدي وکړي۔ چه دا وصي۔ وصي وو۔ دده د پلار د طرف نه۔ یا د مور د طرف نه۔ یا د قاضي د طرف نه۔ او دغه کور ئے د وړوکي د ضرورت په وجه په مناسب قیمت سره خرڅ کړے دے۔ (او دغه روميے شهادت قبول نه دے) ځکه چه موږ که په خپله او وینو۔ او واورو چه دے اقرار کوي۔ چه زهٔ ئے وصي یم۔ نو هم دده وصیتوب دده په اقرار سره نه ثابتیږي۔

**مسئله**:۔ یو سړي د یو داسے کور دعوه وکړه۔ چه د بل په قبضه کښ وو۔ چه دغه کور ما دده د پلار نه په بیعه آخستے دے۔ نو خاوند د قبضے او وئیل چه په دغه کور کښ ځما د پلار څه حق نه وو۔ نو کوم وخت چه مدعي شاهدان وړاندې کړل۔ چه ما دغه کور د خاوند د قبضے د پلار نه "چه مړ دے" په بیعه آخستے دے۔ په داسے حال کښ چه هغه ئے مالک وو۔ بیا خاوند د قبضے په دے خبره شاهدان وړاندې کړل۔ چه دغه کور ما د خپل پلار نه په بیعه آخستے وو۔ نو دا شاهدان ئے قبول دي۔ او که خاوند د قبضے وړومبیه په انکار کښ داسے وئیلي وي۔ چه دغه کور ځما د پلار هیڅکله نه وو۔ یا د هغه په کښ هرگز څه حق نه وو۔ بیا چه مدعي په خپله دعوه شاهدان وړاندې کړل جو خاوند د قبضے په دے خبره شاهدان وړاندې کړل۔ چه دغه کور ما د خپل پلار نه په حالت د صحت کښ په بیعه آخستے وو۔ نو دا شاهدان ئے نه قبلیږي۔ او که په دے خبره ئے شاهدان وړاندې کړل۔ چه ځما پلار په حالت د صحت کښ ځما د پاره په دے کور سره اقرار کړے وو۔ نو دا شاهدان ئے قبول دي۔

**مسئله**:۔ یو سړي دعوه وکړه۔ چه ما دا کور په دومره قیمت په دے سړي خرڅ کړے دے۔ نو مدعا علیه او وئیل۔ چه ما ستا نه په بیعه نه دے آخستے۔ نو چه مدعي په خپله دعوه شاهدان وړاندې کړل۔ جو مدعا علیه په دے خبره شاهدان وړاندې کړل۔ چه دا کور ځما فلاني وکیل په بیعه آخستے۔ نو قاضي به ئے دا دعوه آوري۔

**مسئله**:۔ د یو سړي په قبضه کښ یو کور وو۔ بل پرے دعوه وکړه۔ چه دا

کور حُما دے۔ او دے مدعاعلیه نه چه دَچا نه میراث پاتے شوے دے۔ هغه پرے تا حقه نوے قبضه کړے وه۔ بیا هغه مړ شوے دے۔ او دغه کور نے دَ خپل دے میراث خور په قبضه کښې پریخودے دے۔ او په دے دعوه نے شاهدان وُدرول۔ او مدعا علیه شاهدان وُدرول۔ چه دا کور چه ما تهٔ دَ چا نه په میراث کښې پاتے شوے دے۔ او نوم نے زیدَ دے۔ هغه دا کور دَ دے مدعی نه په دومره قیمت په بیعه قطعی سره اخستے وو۔ جوړه دهٔ روپئ قبض کړے وے۔ او هغه دا کور قبض کړے وو۔ بیا حُما هغه خپل مړ شه۔ او کور نړِ ماته ماته په میراث کښې پاتے شه۔ نو دَ مدعاعلیه دَ دعوے دَ ردَ دَ پاره مدعی دا سے دعوه وکړه۔" چه دَ دے مدعاعلیه هغه خپل (یعنے زید) اقرار کړے وو۔ چه کومه بیعه حُما او دَدهٔ (یعنے دَ دے مدعی) په منځکښې شوے ده۔ دا بیع وفاده چه دے ماله خپله روپئ واپس راکړی۔ نو په ما لازمه ده۔ چه زهٔ به ورته دغه کور واپس کړم۔ او په دے دعوه نے شاهدان وُدرول۔ نو شیخ امام استاد ظهیرالدینؒ مرغینانی صاحب وئیلی دی۔ چه قاضی به نړِ دا دَ نه آوری " قاضیخان په دعاوی کښې "

**مسئله** :- که دوو تنو دعوه وکړه۔ دَ یو دا سے خیز چه دَ دریئم سړی په قبضه کښې وو۔ نو یو خو شاهدان وُدرول۔ چه دغه خیز نړے ما په بیعه صحیح سره آخستے دے۔ او بل شاهدان وُدرول۔ چه ما نړے په بیعه فاسده آخستے دے۔ نو شاهدان دَ صحت غوره دی۔

**مسئله** :- دعوه نے وکړه چه ما دا زمکه دَ زید نه" پخه کاله کیږی چه په بیعه آخستے ده۔ او شاهدان نے وُدرول۔ نو خاوند دَ قبضے اوویل۔ چه هغه زید چه تا نړِے دا زمکه په بیعه آخستے۔ ستا دَ آخستو نه مخکښې اقرار کړے وو چه په دے زمکه حُما څه حق نشته۔ او شاهدان نے وُدرول۔ نو دا صحیح دفعه ده۔ په دے سره دَ مدعی شاهدان رد شول۔

**مسئله** :- چا په بل دَ یو کور دعوه وکړه۔" چه دا حُما ملکیت دے او په شهادت سره نے ثابته کړه۔ پس دَ هغے نه مدعا علیه شاهدان وُدرول په دے خبره۔ چه دے مدعی دغه کور په خپله بی بی صاحبه خرڅ کړے و او هغے په ما دا خرڅ کړے دے۔ نو دا دعوه قبوله ده۔ قاضی به نے آوری

**مسئله** :- یو سړی خپله ځمکه په زیدِ خرڅه کړه - بیائے په بکر خرڅه کړه - نو بکر په زید شاهدان وُدروی - چه دا ځمکه کوم وخت چه تا په بیعه آخسته - ما څخه کانړه وه نو ستا آخستل باطل وو - (نا روا وُو) نو زید شاهدان وُدروی - چه کوم وخت دا ځمکه ما په بیعه آخسته - په هغه وخت کښې ستا قرضه خلاصه وه - (جوړه دا ځمکه دَ کانړے نه راخلاصه وه) نو قاضی به دا نه آوری - او بعضے عالمان وائی چه دا صحیح دفعه ده - نو قاضی به ئے آوری -

**مسئله** :- یو سړی دعوه وکړه - دَ یو بے دا سے محدودے ځمکے چه دَ بل په قبضه کښې وه - " چه دا ځمکه ما نه دَ خپل پلاره په میراث کښې پاتے شوے ده - نو خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول - چه دا ځمکه ما ستا دَ پلار دَ وصی نه په پوره مناسب قیمت سره آخستے وه - او مدعی شاهدان ودرول چه ددے قیمت زیات دے دَ هغے نه چه ته ئے ثابته وے - نو بعض عالمان وائی چه کوم شاهدان زیا نوالے ثابتوی - هغه غوره دی - او ډیر عالمان وائی چه دَ کوالی شاهدان غوره دی " قنیه په دعاوی کښې "

**مسئله** :- یو سړی دعوه وکړه دَ ملک مطلق (یعنے وے ویل - چه فلانے شے چه دَ دے ، ړی په قبضه کښې دے - زما دے - ) او خاوندان دَ قبضے شاهدان وُدرول - چه دا تا زما نه په بیعه آخستے وو - خو مونږ بیا اِقاله کړے وه - (یعنے مونږ بیا بیعه ورانه کړے وه) نو په دے سره شاهدان دَ مدعی نه ردکیږی - ځکه چه دوا ړو دَ ملک مطلق دعوه کړے ده - نو شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره دی - او بعضے عالمان وائی - بنا ئیږی چه دَ خاوند دَ قبضے شاهدان قبول کړے شی -

**مسئله** :- دَ یو سړی په قبضه کښې یو مرئے دے - بل پرِ شاهدان وُدروی

---

ؔ یو سړی که بل ته څه شے کانړه کړلو - بیا دَ هغه بے دَ هغه دَ اجازت نه دَ غه شے په بل چا خرڅ کړه - نو یو روایت دادے - چه دا بیعه باطله ده - نه ده شوے - لیکن صحیح روایت دادے چه دا بیعه موقوفه ده - یعنے چا څخه چه دا شے کانړه دے - که هغه دَ دے بیعے اجازه وکړه - نو بیعه به په ځائے پاتے شی - او که ئے ونکړه نو ماته به شی - لکن په دے کښې هم صحیح روایت دادے - چه دَ هغه په ماتولو سره نه ماتیږی - بلکه اوس دوه صورتونه دی - چا چه قیمتۀ اخستے ده - که دَ هغه خوښه وی - نو دَ غه شی دَ آزادید و پورے دِ صبر اوکړی - او که صبر نه شی کولے - نو قاضی نه دِ خبره وړاندے کړی - نو دَ هغه په حکم سره به دا بیعه فسخ شی - ۱۲ مترجم

چه دا مرئے حما مرئے دے۔ما دَ فلانی نه په بیعه آخستے دے۔ او دے دَ هغه فلانکی خرخونکی په ملکیت کښ پیدا شوے وو۔او خاوند دَ قبضے شاهدان ودرﮦ وی۔ چه دا حما مرئے دے۔او ما دَ فلانی نه په بیعه اخستے دے۔ او دے دَ هغه فلانی خرخونکی په ملکیت کښ پیدا شوے وو۔ نو حکم به کیږی چه دا مرئے دَ خاوند دَ قبضے دے۔

**مسئله** :۔ دَ یو سړی په قبضه کښ یو کوړ وو۔ بل پړے دعوه وکړه " چه دا حما دے " او شاهدان ئے وُدرول۔او خاوند دَ قبضے په دے خبره شاهدان وُدرول " چه دا کوړ دَ فلانی غائب سړی دے۔ او هغه دَدے مدعی نه په بیعه اخستے وو۔ اوزهٔ ئے په دے سره وکیل کړے یَم نو دا شاهدان قبول دی۔او دے به دَ دغه مدعی دَ جګړے نه خلاص شی

**مسئله** :۔ کور وو دَ یو سړی په قبضه کښ۔ دوو تنو پړے دعوه وکړه۔او هر یو په دے خبره شاهدان وُدرول۔چه دا کور ما دَ خاوند دَ قبضے نه په دو مره روپو اخستے دے۔ اوروپئی مے ورله ورکړی دی۔ او حال دادی۔چه خاوند دَ قبضے دَ دواړو دَ دعوے نه منکر وی۔ نو حکم به کیږی دَ دواړو مدعیانو دَ پاره۔چه کور نیم دَ یو شو۔او نیم دَ بل۔ولے که دواړو دَ خپلے خپلے بیعے تاریخ نه وی خولے۔ یا دواړو یو تاریخ خولے وی او که دواړو تاریخ خولے وو۔او دَ یو تاریخ مخکښ وو۔ نو وړومبی تاریخ وال غوره دے۔اوکه یو تاریخ خولے وو۔او هغه بل نه وو خولے۔ نو تاریخ واله غو دے۔اوکه دواړو تاریخ نه وو خولے۔او کور په دے دواړو کښ دَ یو په قبض کښ وو۔ نو خاوند دَ قبضے غوره دے۔او که یو تاریخ خولے وو۔او هغه بل تاریخ نه وو خولے۔لکن کور ئے په قبضه کښ وو۔ نو خاوند دَ قبضے غوره ردَ غوره والی مطلب دا دے۔چه دَ هغه شاهدان به قبول شی۔او کو ئے قبول شی یه قاضیان په دعاوی کښ "

**مسئله** :۔که دوو تنو دعوه کوله۔دَ قیمهٔ اخستلو دَ جدا جدا سړ نو یو په دے خبره شاهدان وُدرول۔چه داشے مادَ بل فلانی نه په بی آخستے دے۔په داسے حال کښ چه هغه ئے مالک وو۔او هغه بل په دے خبره شاهدان وُدرول۔په دا ما دَ یو بل فلانی نه په بی

اَخستے ۔ په داسے حال کښې چه هغه ئے مالک وو ۔ نو قاضی به دَ دواړو دَ پاره حکم کوی۔ ( نیم به دَ یو شی او نیم به دَ بل ) اوکه دواړو دَ خپلے خپلے بیعے تاریخ وخوو۔ نو وړو مبے تاریخ والا غوره دے په ظاهر روایت کښې۔ اوکه یو تاریخ وخوو۔ او بل ئُ نه خوو ۔ نو دَ دواړو دَ پاره به حکم کیږی ۔ او په دے حکم کښې څوښرۀ دَ اماما نو اتفاق دے ۔ اوکه یو خاوند دَ قبضے وو ۔ نو هغه بل ترِ غوره دے ۔" قاضیخان په دعاوی کښې"

**مسئله** :۔ زید په بکر باندے څه شے خرڅ کړے وو ۔ او بکر لا نه وو قبض کړے ۔ چه داغے خالد اوو ے وئیل چه دا شے خو څما دے ۔ نو زید یا بکر شاهدان وُدرول په دے خبره ۔ چه زید دا شے دَ خالد نه په بیعه اخستے دے ۔ او قبض کړے ئے دے ۔ نو دا شاهدان قبول دی ۔ او که شاهدان ئے وُنه موندل ۔ نو کومه بیعه چه دَ زید او دَ بکر په منځکښې شوے وه۔ هغه قاضی ماته کړه۔ او بکر ته ئے خپلے روپئ واپس کړے ۔ نو پس دَ هغے نه زید شاهدان اوموندل۔ نو اوس به قاضی خپل وړو مبے حکم نه ماتوی۔ اوکه مستحق والے دَ بیعے دَ قبض کولو نه ورستو وو ۔ نو بیا به قاضی حکم ماته وی ( یعنے زید چه په بکر هغه شے خرڅ کړے دے ۔ که بکر هغه قبض کړے وی او بیا وروستو پرے خالد دعوه کړی وی ۔ او مستحق ګرځیدلے وی او زید شاهدان نه وی موندلی۔ نو چه قاضی دَ دغے بیعے دَ ماتولو حکم وکړلو۔ کومه چه دَ زید او بکر په منځکښې شوے وه۔ او بکر ته ئے روپئ بیرته ورکړزولے ۔ پس دَ هغے نه زید شاهدان اوموندل په دے خبره ۔ چه دا شے ما دَ بکر نه په بیعه اَخستے دے ۔ او قبض کړے مِ دَے نو په دے صورت کښې به قاضی چه دَ بیعے دَ ماتولو وړومبے حکم کړے وو ۔ او س به هغه حکم ماته وی ۔ نو بیا به هغه بیعه صحیح ده )" وجیز په مسئلو دَ استحقاق کښې"

**مسئله** :۔ چا په بل باندے یوه وینزه خرڅه کړے وه ۔ بیا ئے وئیل چه ما په تا دا وینزه په دے مرئ درخرڅه کړے وه ۔ او آخستونکی وئیل چه نه ۔ بلکه تا په زر روپئ را خرڅه کړے ده ۔ او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ نو شاهدان دَ خرڅونکی غوره دی۔ ځکه چه

دوارو دَ وینزے په قیمت کښې مختلف شوی دی ۔ او قیمت دَ خرڅونکی حق دے نو ددهٔ شاهدان دَ دهٔ حق ظاهره وی ۔ کوم چه په بل بانده دے ۔ (په دے وجه غوره شو)

**مسئله** :- یو سړی دوه مرئی په بیعه واخستل ۔ نو یو ئے تر ے قبض کړلو ۔ بیا دواړه مړه شول ۔ پس خرڅونکے او اخستونکے مختلف شو ۔ دَ هغے دواړو په قیمت کښې ۔ نو خبره دَ اخستونکی معتبره ده ۔ او که اخستونکی دواړه قبض کړی وو ۔ بیا تر ے یو مړ شو ۔ او هغه بل ئے دَ څه عیب په وجه واپس کړلو بیا کوم یو چه مړ شوے دے ۔ دَ هغه په قیمت کښې ئے اختلاف راغے ۔ نو خبره دَ خرڅونکی معتبره ده ۔ او شاهدان هم دَ ده غوره دی۔

**مسئله** :- یو سړی په بل بانده ے څه شے خرڅ کړے وو ۔ بیا هغه ضایع شه ۔ نو خرڅونکے شاهدان وُدروی ۔ چه هغه دَ دے اخستونکی په لاس کښې ضایعه شوے دے ۔ او اخستونکے شاهدان وُدروی چه هغه دَ دے راخرڅونکی په لاس کښې ضایع شوے دے ۔ نو خبره دَ اخستونکی معتبره ده او که شاهدان وو ۔ نو شاهدان دَ خرڅونکی غوره دی ۔ او دارنګ حکم دے که دواړه مختلف شو ۔ په ضایعه کولو کښې ۔ (یعنے یو وئیل ۔ په دهٔ ضایعه کړے دے او بل وئیل چه ده) نو خبره دَ اخستونکی معتبره ده ۔ او که شاهدان وو نو شاهدان دَ خرڅونکی غوره دی۔

**مسئله** :- که چا په بل[1] بانده ے څه شے خرڅ کړو ۔ او په دے بیعه کښې خرڅونکی یا اخستونکی له خیار ایخ شوے وو۔ مثلاً خرڅونکی وئیلی وو ۔ چه په دے بیعه کښې ساله دړے ورځے خیار دے ۔ که په دے دړے ورځو کښې مې اجازه وکړه ۔ نو بیعه به په ځائے وی ۔ او که مې رد کړه ۔ نو ماته به شی) بیا موده دَ خیار لا پاتے ده ۔ چه دواړه مختلف شو ۔ په اجازه کولو ۔ او په ماتولو کښې ۔ مثلاً خاوند دَ خیار وئیل ۔ چه ما دا بیعه ناخوښه کړے وه ۔ او هغه بل وئیل چه تا اجازه کړے وه ۔) نو کوم یو له چه خیار ایخ شوے وو ۔ خبره دَ هغه معتبره ده ۔ که دعوه دَ اجازے کوی ۔ او که دَ ماتولو ۔ او که شاهدان وو

[1] که دَ یو جانب شاهدانو تاریخ دَ اجازے یا دَ رد داسے خولے دی ۔ چه هغه دَ هغے بل تاریخ نه وړومبے وی ۔ نو بیا په دے صورتونو کښې شاهدان دَ وړومبی تاریخ غوره دی ۔ دارنګ وئیلی وی: په هندیه کښې ۔ او که دَ خیار دَ مسئلو تفصیل غواړے نو اوګوره دوئیم کتاب مسئلے دَ خیار ۱۲ مترجم

نوشاهدان دَ هغې بل غوره دی ۔ اوکه موده دَ خیار تیره شوی وی ۔ بیا دَ دے دواړو اختلاف را غلے وی ۔ (مثلاً خاوند دَ خیار وئیل چه په موده دَ خیار کښې ما دا بیعه رد کړے وه ۔ او هغه بل وئیل ۔ چه تا په موده دَ خیار کښې اجازه کړے وه ۔) نو کوم یو چه دَ اجازے دعوه کوی ۔ دَ هغه خبره معتبره ده ۔ هر یو چه وی خاوند دَ خیار وی ۔ اوکه هغه بل ۔ اوکه شاهدان وو ۔ نو شاهدان دَ هغه یو غوره دی ۔ چه دَ بیعے دَ ماتولو دعوه کوی ۔

**مسئله** :۔ اوکه په بیعه کښې دواړو له خیار ایښے شوے وو ۔ او موده دَ خیار لا باقی وه ۔ چه دواړه مختلف شو ۔ په اجازے او ماتولو کښې ۔ نو کوم یو چه دَ بیعے ماتولو دعوه کوی ۔ خبره دَ هغه معتبره ده ۔ اوکه شاهدان وُو ۔ نو شاهدان دَ هغه بل غوره دی ۔ ځکه چه په دے دواړو کښې هر یو تن یوازے بیعه رد کولے شی ۔ او اجازه نه شی کولے ۔ (یعنے دَ یو په ماتولو سره هم ماتیږی لکن دَ یو په اجازے سره ترکوره پورے چه هغه بل اجازه نه وی کړی ۔ بیعه په حال نه پاتے کیږی ۔) اوکه مُده دَ خیار وُتے وه ۔ پس دَ دے نه دَ دے دواړو دا اختلاف راغے ۔ نو کوم یو چه دَ اجازے دعوه کوی ۔ خبره دَ هغه معتبره ده ۔ اوکه شاهدان وو ۔ نو شاهدان دَ هغه بل غوره دی ۔

"وجیز په باب دَ اختلاف فی المبیع کښې"

---

# دَ سلم مسئلے

که خاوند[2] دَ سلم او هغه څوک چه دهٔ ورسره معامله دَ سلم کړے دواړه مختلف شو ۔ په اندازه دَ هغه څیز کښې چه دا معامله ئے پکښې

---

[1] که زمیں ونکیں ه مثلاً بکر له ئے دَ فصل پریکیدلو نه مخکښې شلو یښت روپئ ورکړے چه دا واخله ۔ او دَ دوؤ میاشتو نه وروستو به په فلانئ میاشت په فلانی تاریخ زه ستا نه دَ دے روپو غنم واخلم ۔ او نرخ ئے ورسره په دغه ځائ مقرر کړلو ۔ چه په شل روپئ ستمه ۔ او بکر دا خبره قبوله کړه ۔ نو دا بیعه صحیح ده ۔ او دَ کومے میاشتے چه میعاد ایښے شوے دے ۔ په هغه میاشت کښې په هغه تاریخ به زید له دوه څټے غنم په هغه نرخ ورکوی ۔ برابره خبره ده ۔ چه په دغه مقره تاریخ غنم ګران وی ۔ اوکه ارزان ۔ بکر به ورله په هغه نرخ ورکوی ۔ چه کوم ورسره زید تړلے وو ۔ او دے قسم بیعے ته بیع سلم وئیلے کیږی ۔ دَ بیع سلم دَ پاره نورے ضروری خبرے هم شته ۔ خو دا ځائ دَ تفصیل نه دے ۔ مترجم

[2] دَ خاوند دَ سلم نه مراد هغه څوک دے ۔ چه مثلاً روپئ ئے په سلم ورکړے دی ۔ مترجم

کړے ۔ ( مثلاً خاوند دَ سلم وئیل ۔ چه مونږ دَ جوارو لس څټے مقرر کړے وے او هغه بل وئیل ۔ پنځه څټے ) یا دواړه مختلف شول په جنس دَ هغه څیز کښ چه دا معامله ئے پکښ کړے وه ۔ ( مثلاً خاوند دَ سلم وئیل چه مونږ لس څټے جوار یاد کړی وو ۔ او هغه بل وئیل ۔ لس څټے وُربشے ۔) یا دواړه مختلف شول ۔ په صفت دَ هغه څیز کښ چه معامله ئے دَ سلم ورپکښ کړے ( مثلاً خاوند دَ سلم وئیل چه مونږ ښه غنم دَ وښ یاد کړی وُو ۔ او هغه بل وئیل ۔ چه مونږ زَدی غنم دَ میرے یاد کړی وُو ) یا دواړه مختلف شو په اندازه دَ ګزونو کښ ۔ مثلاً خاوند دَ سلم ورلره څه روپئ ورکړے وے ۔ چه ددے په عوض کښ به ماله دو مره او داسے توکے په فلانی تاریخ راکوے اوس دَ دواړو اختلاف راغے ۔ نو خاوند دَ سلم وائی ۔ چه مونږ شل ګزه توکے وئیلے وو ۔ او هغه بل وائی چه لس ۔ او دا رنګ دواړه که مختلف شو په راس المال کښ ۔ یعنے په هغه نقد یا بل مال کښ ۔ چه خاوند دَ سلم پرے دغه معامله دَ سلم کړے ۔ نو حکم دا دے ۔ چه دواړه به قسم اوکړی ۔ او پس دَ قسم نه به دغه معامله ورانه کړی ۔ کوم چه ئے کړے ده ۔ او که په دے دواړو کښ یو تن په خپله دعوه شاهدان وُدرول ۔ نو دَ هغه دَ پاره به حکم وکړے شی ۔ او که دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان ودرول نو شاهدان دَ خاوند دَ سلم غوره دی ۔ جوړه

---

سے په فتح القدیر کتاب کښ ئے وئیلی دی ۔ چه دواړو که په خپله خپله دعوه شاهدان ودرول نو دَ خاوند دَ سلم شاهدان غوره دی ۔ جوړه دَ هغه دَ پاره به په یو سلم سره حکم وکړے شی ۔ او دَ امام ابویوسف صاحب قول دے بیا ئے وئیلی دی چه دا مسئله په دری قسمه دَ حُکم چه راس المال به یا روپئ اشرفئ وی یا څه بل شے ۔ په دے کښ بیا دری دری صورتونه دی ۔ یا به دَ دواړو په راس المال کښ اتفاق وی ۔ او اختلاف به صرف په هغه څیز کښ وی ۔ چه معامله دَ سلم ئے په کښ کړے ده ۔ او یا به ئے په هغه څیز کښ اتفاق وی او اختلاف به ئے صرف په راس المال کښ راغلے وی ۔ او یا به ئے اختلاف په دواړو کښ راغلے وی ۔ نو که راس المال دَ روپو اشرفو نه علاوه بل څه شے وو ۔ مثلاً توکے وو ۔ او دَ دواړو اختلاف صرف په هغه څیز کښ راغے ۔ چه په کوم کښ ئے سلم کړے ۔ مثلاً خاوند دَ سلم وئیل چه ما دا توکے درکړے ۔ یو څټه غنم به در ته اخلم ۔ او هغه وئیل ۔ چه نه ۔ تا دا توکے راکړے ۔ او یو من غنم دِ را سره کړی ۔ یا ئے وئیل چه رَدی غنم دِ را سره کړی ۔ نو که دواړو شاهدان ودرول نو حکم به کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ سلم ۔ او په دے حکم اتفاق دَ او که اختلاف یواځے په راس المال المال کښ وو ۔ مثلاً خاوند دَ سلم وئیل چه دا مرئے م درکړے او یو لس څټے غنم م درسره کړی ۔ او هغه وئیل چه نه دا بل مرئے دِ راکړے او لس څټے غنم دِ را سره کړی ۔ او یا دَ دواړو اختلاف په دواړو کښ راغے ۔ مثلاً خاوند دَ سلم وئیل چه ما دا توکے درکړے او څټه غنم م درسره کړی ۔ او هغه وئیل چه نه ۔ تا دا بل توکے راکړے او څټه وربشے دِ را سره کړی ۔ نو په دے دواړو صورتونو کښ به حکم کیږی چه دده معامله دَ سلم شوی دی ۔ هله که دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول ۔ او که راس المال روپئ یا اشرفئ وے ۔ نو په دے کښ هم دوه صورته دی ۔ که په راس المال کښ دَ دواړو اتفاق وو ۔ او اختلاف ئے راغلے وو په هغه څیز کښ چه معامله دَ سلم ئے پکښ کړے ده ۔ مثلاً خاوند دَ سلم وئیل چه ما شل روپئ درکړی او څټه غنم م درسره کړی او هغه وئیل چه شل روپئ دِ راکړی ۔ څټه وُربشے دِ را سره کړی ۔ او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول نو حکم به کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ سلم په یو سلم سره ۔ او دا دَ امام ابویوسف صاحب رح قول دے ۔ امام محمّد صاحب [illegible] مخالف دے ۔ او که دَ دواړو اختلاف یواځے (پاتے په [illegible] بانډی)

حکم به کیږی دَ دهٔ دَ پاره۔ اوکه دَ دواړو اختلاف راغی په راس المال کښې (یعنے په هغه مال کښې چه خاوند دَ سلم پرے ورسره دغه معامله کړے۔اوورکړے دَے) اودواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ توحکم به کیږی دَ پاره دَ هغه یوچه سلم ورکړے شوے دے۔ ځکه چه دَ هغه شاهدان په راس المال کښې زیاتوالے ثابتوی۔ نو په اثبات کښې زیات شول۔ اوکه دَ دواړو اختلاف دَ سلم دَ مودے (نیټه) په تیریدلو کښې وو۔ (یعنے خاوند دَ سلم وئیل۔ مثلاً چه موږ درے میاشتے نیټه مقرر کړے وه۔ هغه تیره شوے ده۔ او هغه بل وئیل۔ چه نه ده تیره شوے اوکه دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ نو شاهدان هم دَ مطلوب غوره دی۔ (یعنے دَ هغه چاچه دَ هغه سره دغه معامله کړے شوے ده) ځکه چه دَ هغه شاهدان په نیټه کښې زیاتوالے ثابتوی (نو په اثبات کښې زیات شول۔ دَ دے وجهِ نه غوره شو)" وجیزپه باب دَ اختلاف دَ سلم کښې۔

# دَ شفعې مسئلې

**مسئله**:۔ که خاوند دَ شفعے او اَخستونکے مختلف شو په اندازه دَ قیمت کښې (مثلاً اَخستونکی وئیل۔ چه دا پټے ما دَ زید نه په دومره اخستے دے۔ او دَ کوم سړی چه پرے دَ شفعے دعوه ده۔ هغه وئیل۔ چه دا تا په دومره قیمت اخستے) نو خبره دَ اَخستونکی قبوله ده سره دَ قسم نه۔

(پاتے حاشیه دَ ړومبی مخ) په راس المال کښې وو۔ نوهم دغه حکم دے۔ اوکه دَ دواړو اختلاف په دواړو کښې وو۔ مثلاً خاوند دَ سلم وئیل چه ما لس روپئ درکړی دی۔ ځنته غنم رِم درسره کړی دی۔ او هغه وئیل پنځلس دِ راکړی اومن غنم دِ را سره کړی۔اودواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ نودَ امام ابویوسف صاحب رح به نزدبه حکم کیږی۔چه یوسلم شوے دے۔ نوراس المال پنځلس روپئ دے اوغنم یوه ځته۔ اودَ امام محمّد صاحب رح په نزد به حکم کیږی۔چه دوه سلمه شوی دی۔ دا بیان ما دَ فتح القدیرنه راخستے۔ او فتح القدیر دَ خلاصے نه نقل کړے دے۔ او فتح القدیر نه په بحرکښې هم نقل کړے۔لکن هلته ئے دَامام ابویوسف صاحب رح قول په خصوصیت سره امام اعظم صاحب رح ته منسوب کړے۔ اودا بیان نه په مختصره طریقه سره شامی هم را خستے دے ۱۲ مترجم

اوکه دواړه په خپله خپله دعوه شاهدان وړاندې کړي. نو په نزد د طرفینو رح شاهدان
د خاوند د شفعې غوره دي. او په نزد د امام ابو یوسف رح صاحب شاهدان
د قیمت اخستونکي غوره دي.

**مسئله** :- فرض کړه. یو سړي یو کور په بیعه واخسته. بیا ئې ودانۍ ونړوله
بیا دې اوچاچه پرې د شفعې دعوه کړې. دواړه د دغه آبادۍ په قیمت کښ
مختلف شول. (نو ده ویل. چه د دغه آبادۍ مناسب قیمت دومره وو. او خاوند
د شفعې ویل چه نه دومره وو.) نو خبره د ده معتبره ده. او شاهدان
هم د ده غوره دي. په طریقه د قول د امام صاحب رح دارنګ ویلي دي.
امام محمد صاحب رح. او وجه ئې داده. چه شاهدان د نش میدان په قیمت
کښ زیاتوالې ثابتوي. (یعنې دا شاهدان قیمت د ودانۍ لږ خئي. او قیمت
د خالي زمکې زیات خئي د هغې نه چه خاوند د شفعې ئې دعوه کوي) او ویلي
دي امام ابو یوسف صاحب رح په طریقه د قول د امام صاحب رح چه شاهدان
د خاوند د شفعې غوره دي. ځکه چه دا شاهدان په اخستونکي باندې سپارل
لازمه وي. (یعنې دا لازمه وي. چه په دغه آخستونکي باندې دا لازمه ده
چه دغه ځائې خاوند د شفعې ته په دې قیمت وسپاري.) او شاهدان د
آخستونکي څه شې نه لازمه وي. په خاوند د شفعې باندې. (نو د دې وجې
نه شاهدان د خاوند د شفعې غوره شول)

**مسئله** :- که چا کور په بیعه واخست. بیا پرې بل د شفعې دعوه کوله.
دې اخستونکي ورته اوویل. چه ما مینه دا آبادې په بیعه آخستې دې. او
دغه میدان چه کوم پکښ آباد دې. په بیعه آخستې دې. نو په دې آبادۍ
کښ تا لره حق د شفعې نشته. او خاوند د شفعې اوویل چه داسې نه ده. بلکه
تا دا کور په هیڅ په بیعه آخستې دې. نو خبره د خاوند د شفعې معتبره ده

ملے په قاضیخان کښ د شفعې د پاره ډېرې طریقې خولې دي. یوه حیله ئې دا هم خودلې ده. چه سړې د
آبادي مخکښ په بیعه واخلي. یعنې بې زمکې. بیا وروستو په ګران قیمت سره هغه میدان هغه زمکه په بیعه واخلي
چه دغه آبادي پرې ودانه ده. نو که اوس خاوند د شفعې پرې دعوه د شفعې کوي. نو په آبادۍ کښ خو ئې حق نشته
ځکه چه هغه منقولي ده. او دعوه به ونه کړي. په میدان. ځکه چه قیمت دې ډېر ګران او دائې هم ویلي دي
چه اخستونکي له قسم نشته دې
او یوه بله حیله به د دویم کتاب په مسئلو د شفعې کښ هم ذکر شي. خو دا رنګ حیلې په بعض صورتونو
بعض وائي. چه مکروه دي - ۱۲ مترجم

قسمه په څېل علم باندے۔ اوکه شاهدان وو۔ نو دَ امام ابو یوسف صاحبؒ په نزد شاهدان دَ اخستونکی غوره دی۔ اودَ امام محمّد صاحب رح په نزد شاهدان دَخاوند دَ شفعے غوره دی۔

**مسئله**:۔ که اخستونکی اووئیل چه په دے زمکه کښ آبادے ما کړے دے یا دا وُنے ما نال کړی دی۔ یادا فصل ما کړلے دے۔ اودَ چا چه پرے دَ شفعے دعوه وه۔ هغه وئیل۔ چه ته دروغ وائے۔ دا دَ خسے وه۔ نو خبره دَ اخستونکی معتبره ده۔ اوکه دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ نو شاهدان دَخاوند دَ شفعے غوره دی۔

**مسئله**:۔ دَ زید په قبضه کښې یو کور دے۔ زید په دے خبره شاهدان وُدروی۔ چه دا کور ما ته خالد دَ امانت په طور ایخے دے۔ او بکر پرے دَ شفعے دعوه کوی۔ او شاهدان وُدروی په دے خبره چه دا کور زید دَ غانم نه په بیعه اخستے په ز ر روپئ۔ نو دَ بکردَ پاره به په شفعه سره حکم کیږی۔ ځکه چه زید خصم (جګړه کُونکے) کرزیدلے دے دَ بکر۔ وجه داده۔ چه بکر پرے دَ یو فعل (بیئے دَ یو کار) دعوه کړے (او هغه په بیعه اخستل دی) نو اوس چه زید دے کار حواله په بل ودکوی۔ (داوائی۔ چه ما ته خالد امانتً ایخے) نو په دے سره دے دَ جګړے نه نه خلا صیږی۔" وجیز"

---

# دَ اجارے مسئلے

**مسئله**:۔ چا چه څاروے دَ سورلئے دَ پاره په کرایه آخستے وی۔ که هغه دعوه کوی چه دا ما په لس روپئے کرایه دَ فلانی ځائ پورے دَ سورلئے دَ پاره آخستے دے۔ او چا چه په کرایه ورکړے هغه وائی۔ چه ما دَ دغه ځائے دَ نیمے پورے په لس روپئ کرایه درکړے۔ او دواړه په خپله خپله دعوه شاهدان وُدروی۔ نو چا چه په کرایه آخستے دے۔ دَ هغه شاهدان غوره دی "درالبحار"

**مسئله**:۔ که دَ شپیکی نه پیزه هلاکه شوه۔ نو خاوند دَ پیزے ورته اووئیل

چه ما په تا دا خبره ايښے وه - چه ته به ئے په دغه ځائے کښې (کوم ځائے چه اوس هلاک شوے دے) نه څروه وے - بلکه بل ځائ به ئے څروه وے - او شپيکى ورته او ويئيل چه دا سے نه ده - بلکه تا ماته دغه ځائے دَ څرولو ويئيلى وُو - نو خبره دَ خاوند دَ بيزے غوره ده سره دَ قسمه - او که دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول - نو شاهدان دَ شپيکى غوره دی - " تتمه الفتاوی "

**مسئله** :- دَ زيد په قبضه کښې يو کور دے - نور دوؤ تنو پرے دعوه وکړه هر يو په دے خبره شاهدان وُدرول - چه دا ځما کور دے - ما زيد له دَ يو مياشتے دَ پاره په لس روپئ په کرايه ورکړے - او زيد پکښې اوسيالے دے او حال دا وی - چه زيد منکر وی - دَ دواړو دَ دعوے نه - بلکه وائی " چه دا کور ځما دے " نو کور به دَ دے دواړو مدعيانو شی - نيم دَ يو - او نيم دَ بل - او لس روپئ (کرايه) به هم دَ زيد نه واخلی - پنځه به دَ يو شی - او پنځه به دَ بل - او دا مهربانى ور سره دَ هغه دليل ده - کوم ته چه استحسان وئيلے شی - که نه وی نو قياس خو دا غوښته - چه په دے دواړو کښې به هر يو تن دَ زيد نه لس روپئ (ځان ځان له) اخلی " قاضيخان په دعوه دَ ملکيت يسبب کښې "

**مسئله** :- يو سړی په بل باندے دعوه وکړه - چه دهٔ زهٔ مجبوره کړے وُم په وُلے وُم - چه تا که ځما دوکان په کرايه واخست - نو زهٔ به درے اوچ بوم او دَ حاکم په ذريعه به درے قيد ته وُغورزوُم - او په دے ئے شاهدان وُدرول او چاچه دغه دوکان په کرايه ورکړے - هغه په دے خبره شاهدان وُدرول " چه دے په دے آخستو راضى وو - په خوښه ئے آخستے دے - نو شاهدان دَ لوښے او دَ رضا غوره دی - " مشتمل الاحکام په اکراه کښې "

**مسئله** :- يو سړی دَ بل نه مکان يا دوکان وغيره په کرايه آخستی وو - دَ هغے دَ دروازے يوه تخته غورزيدلے ده - نو کرايه دار دعوه کوی - چه دا ځما ده او مالک دعوه کوی - چه دا ځما ده - نو خبره دَ دغه ځائ دَ مالک غوره ده - او که دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول - نو شاهدان دَ کرايه دار غوره دی " وجيز "

**مسئله** :- چاچه څه شے بل له په اجاره ورکړے - که هغه په دے خبره شاهدان وُدرول - چه دا ما دهٔ ته دَ کوم وخت نه چه په اجاره ورکړے سپارلے

دے ۔او په اجاره آخستونکی شاهدان وُدرول ۔ په دے خبره ۔ چه دا دومره موده دَدهٔ په لاس کښې وو ۔(ما ته ئے نه دے سپارلے) او په ما ئے اجرت نه دے لازم شوے ۔ نو شاهدان دَ هغه یو غوره دی ۔ چه دغه شے ئے په اجاره ورکړے ۔" خلاصه په دعوی کښې "

**مسئله** :- زید وائی ۔ دَ بکر نه ئے یو کور یا غاروے یا یو مرکب په اجاره واخست ۔ او زید پکښې لا تر اوسه څه تصرف نه وو کړے ۔چه دَ دواړو اختلاف راغے ۔ نو زید وائی چه دا اجاره په پنځه روپئ شوے ده ۔او بکر وائی ۔ چه په لس روپئ ۔ نو حکم دادے چه زید او بکر دواړه به قسم کوی ۔او کوم یو چه دَ قسم نه انکار واوړ ۔ په هغه به دَ هغه بل دعوه لازمه شی ۔او اول به زید قسم کوی ۔ پس که دواړو قسمونه وکړل ۔ نو قاضی به دَ اجارے دغه معامله دَ دواړو په منځکښې ورانه کړی ۔ او کوم یو چه شاهدان وُدرول دغه شاهدان قبول دی ۔او که دواړو شاهدان وُدرول ۔ نو شاهدان دَ بکر غوره دی ۔ ځکه چه بکر خپل حق ثابتوی ۔ اوکه په اجاره اخستونکے او ورکونکے دواړه مختلف شو ۔ په موده کښې ۔ مثلاً زید وائی ۔تا دا کور ماله دَ دوؤ میاشتو دَ پاره په لس روپئ کرایه راکړے ۔او بکر وائی ۔چه داسے نه ده ۔ بلکه دَ یوے میاشتے دَ پاره م په لس روپئ کرایه درکړے ۔نو په دے دواړو کښې کوم یو چه شاهدان وُدرول ۔ دَ هغه شاهدان قبول دی ۔او که دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول ۔نو شاهدان دَ زید غوره دی اوکه دَ دواړو اختلاف په اُجرت او په موده دواړو کښې وو ۔مثلاً زید وائیل چه دا کور تا ماله دَ دوؤ میاشتو دَ پاره په پنځه روپئ کرایه راکړے وو ۔او بکر وئیل چه نه ۔ بلکه ما دَ یوے میاشتے دَ پاره په لس روپئ درکړے وو ۔) او یا دَ دواړو اختلاف په اجرت او په مسافت (یعنے په ځائے دَ منزل ) په دواړو کښې وو مثلاً بکر وئیل ۔ چه ما تا له آس په لس روپئ کرایه درکړے وو ۔ ( دَ بغداد نه تو بصرے پورے ۔ او زید وئیل ۔چه نه ۔ بلکه تا په پنځه روپئ کرایه راکړے وو ۔ تر کوفے پورے ۔ نو حکم دادے چه دواړه به قسم کوی ۔او پس دَ قسم نه به دا معامله دَ دوئ په منځکښې ورانه کړے شی ۔او که سپه دے کښې یو تن شاهدان وُدرول ۔ نو قبول دی ۔او که دواړو په خپله خپله

دعوه شاهدان وُدرول - نو حکم به کیږی په دوارو شها دتونو سره - نو حکم به
کوی قاضی په زیاتوالی دَ اجرت - په سبب دَ دے چه دَ بکر شاهدانو پرے شاهدی
کړے - او حکم به کوی په زیاتوالی[1] دَ مسافت - (او دا رنګ په زیاتوالی دَ مُودے)
په سبب دَ دے چه دَ زید شاهدانو پرے شاهدی کړے - او (که قسم ورکول
وو - نو) کوم یو چه مخکښ دعوه کړے ده - (دَ هغه نه مخکښ به هغه بل له
قسم ورکیږی - دا حکم هله دے - چه دَ دوارو اتفاق وی - په اجرت
کښ - چه تولے روپئ وے - یا اشرفئ وے - او که په جنس دَ اجرت
کښ ئے اختلاف وو - مثلاً بکر وئیل چه دا خاروے ما تا له دَ بصرے ښهره
پورے په یوه اشرفئ کرایه ورکړے - او زید اووئیل - چه نه - بلکه تا دا ما له
دَ کوفے ښهره پورے په لس روپئ راکړے - نو په دے صورت کښ کوم یو چه
شاهدان ودرول - نو دَ هغه شاهدان به قبول وی - او که دوارو شاهدات ودرول
نو حکم به کوی قاضی چه اجرت ئے (دَ بغداد نه) دَ کوفے ښهره پورے یوه اشرفئ
او پنځه روپئ دے - چه بصره ښهر دَ کوفے او دَ بغداد په نیمه کښ واقع
دے - نو حکم به کوی چه دَ بصرے ښهره پورے ئے اجرت یوه اشرفئ دے
په سبب دَ شاهدی کولو دَ شاهدانو دَ بکر - او دَ بصرے نه دَ کوفے پورے
پنځه روپئ دی - په سبب دَ شاهدی کولو دَ شاهدانو دَ زید -

**مسئله** :- که چا رنګوګی له څه جامه ورکړه - دپاره دَ دے چه سور رنګ
ورله ورکړی - په کسم سره - چوړ هغه رنګ ورکړه - بیا دَ دوارو اختلاف راغے - په
اجرت کښ - نو رنګریز (رنګوګی) اووئیل - چه ما په یوه روپئ رنګ کړے ده -
او دَ جامے مالک اووئیل - چه نه - تا په دریمه حصه دَ روپئ رنګ کړے ده -
نو دے مسئلے حکم دا دے - چه کوم یو شاهدات وُدرول - دَ هغه شاهدان
قبول دی - او که دوارو په خپله خپله دعوه شاهدان ودرول - نو شاهدان دَ
رنګریز غوره دی -

**مسئله** : زید په پنځه روپئ کرایه دَ بل په کشتئ تللے وو - دَ ترمذ
ښهر نه دَ آمد پورے - (بیا سره دوارو مختلف شو) نو (خاوند دَ کشتئ
اووئیل - چه نه ځما په کشتئ کښ په پنځه روپئ کرایه دَ آمده پورے تللے وے -

[1] نو مطلب دا شه چه په اوله مسئله کښ کور دَ دوو میاشتو دَ پاره په لس روپئ کرایه ورکړے شوے دے - او
په دویمه مسئله کښ آس په لس روپئ ورکړے شوے دے په کرایه دَ کوفے ښهره پورے ۱۲ مترجم ❊ ❊

نوزه در ته کرایه غواړم - او) زید اووئیل - چه تا زهٔ دَ آمده پورے دَ کشتئ
دَ دنبالے تهینکولو دَ پاره په لس روپئ کرایه په مزدورئ نیولے وُم - ( نو
زهٔ در ته خپله مزدوری غواړم - ) نو حکم دادے چه دواړه په قسم کوی - که
دواړو قسم اوکړلو - نو یوله هم اجرت نشته - بلکه دواړه دَ یو بل نه آزادی شو
اوکه دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان ودرول - نو شاهدان دَ زید "کوم چه
کشتئ بان دے" غوره دی - نو مالک دَ کشتئ ته به حکم کیږی - چه زید له
خپله مزدوری ورکړه - او په زید باندے مالک له هیڅ کرایه نشته -

**مسئله** :- یو سړی په زید باندے دعوه وکړه - چه ما زید له خپل قچر
دَ ترمذ ښهر نه دَ بلخ پورے دَ سورلئ دَ پاره په لس روپئ کرایه ورکړے وه - او
زید اووئیل چه داسے نه ده - بلکه زهٔ ده په پنځه روپئ مزدورئ نیولے وُم - دَ پاره
دَدے چه ئے وُدسوم هغه فلانی سړی ته چه په بلخ کښ دے - نو حکم دادے - چه
په دے دواړو کښ به هر یو هغه بل له قسم ورکوی - نو که دواړو قسم وکړلو -
نو هیڅ به لازم نه شی - ( او خبره به هسے خلاصه شی ) اوکه دواړو په خپله
خپله دعوه شاهدان وُدرول - نو شاهدان دَ قچروالا ( یعنے دَ مالک ) غوره دی
" دا مسئله قاضیخان راوړی دی په اختلاف دَ آجر او مستاجر کښ "

# باب دَ زنا

**مسئله** :- ( خدائے دِ نکړی ) که ښځے زنا وکړه - یا ئے غلا وکړه - نو خاوند
ئے اراده وکړه - چه زهٔ دِ لاس خپه یا بل اندام پریکوم - هسے دِ نه پریږدم
لکن که دَ مال په عوض کښ مِ طلاق کړے - نو بیا درته نور څه نه وایم - جوړ
ښځے ورته خپل مال هبه که - ( یعنے ورکړه ) پس هغه طلاق کړه - نو دا
طلاق رجعی واقع شه ( یعنے دَ خاوند رجوع پکښ صحیح ده ) او دَ ښځے په ذمه
څه مال لازم نه دے - ځکه چه دا په واقع کښ مجبوره کول دی ( او په جبر سره
هبه صحیح نه ده - ) اوکه ( په دے صورت کښ دَ ښځے او خاوند اختلاف راغے
ښځے وئیل - چه تا زهٔ دَ مال په ښځو مجبوره کړے وُم - ( او ) خاوند ئے د دے ده

انکار وکړی۔ نو خبره دَ خاوند معتبره ده ۔ اوکه دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ نو شاهدان دَ ښځے غوره دی " جامع الفتاوی "

---

## مسئلے دَ هبے (یعنے چا ته څه شے بخل)

**مسئله** :۔ یو سړی دعوه وکړه ۔ چه دا هبه په ما په زوره او په جبر کړے شوے ده (یعنے دا شے په ما باندے په زور بخلے شوے دے ۔) نو چا ته چه هبه شوے ۔ هغه شاهدان ودروی ۔ په دے خبره ۔ چه دے هبه کونکی دَ دے هبے عوض مُا نه په خوشئ آخستے دے ۔ نو په دے سره دعوه دَ جبر دفعه شوه " لسم فصل دَ فصولین "

**مسئله** :۔ دَ زید په قبضه کښ یو شے دے ۔ بکر پرے دعوه وکړه چه دا ماته زید بخلے او ما توے قبض کړے دے ۔ او خالد پرے دعوه وکړه چه دا ماته زید کانړه ایخے دے ۔ او ما ترے قبض کړے دے ۔ او بکر او خالد دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول ۔ نو شاهدان دَ مدعی دَ کانړے (یعنے دَ خالد) غوره دی ۔ دا حکم هله دے ۔ که په هبه کښ دَ عوض څه شرط نه وی ۔ او که وی[1] ۔ نو بیا شاهدان دَ هبے غوره دی " دا مسئله دَ شرح المجمع په دعاوی کښ مذکوره ده "

زه وایم چه دَ دے مسئلے نه حکم دَ هغه صورت هم معلوم شه ۔ چه یو دعوی کوی چه دا ما زید نه په بیعه اخستے دے ۔ او بل دعوه کوی ۔ چه دا ماته زید کانړه یخے دے ۔ او هغه حکم دا دے ۔ چه شاهدان دَ بیعے غوره دی ۔ نو فکر پکښ وکړه !)

**مسئله** :۔ که چا دعوه وکړه چه دا شے ماته زید بخلے دے ۔ او ما ترے قبض کړے دے ۔ او بل سړی پرے دعوه وکړه ۔ چه دا شے ما دَ زید نه په بیعه آخستے دے ۔ او دواړو تاریخ وُنه خوو ۔ یا دواړو یو تاریخ وُخوو ۔ نو خبره دَ قیمت آخستلو غوره ده ۔ او که هغه یو تاریخ وُخوو ۔ او هغه بل

---

[1] دَ هبے په شرط دَ عوض دا مطلب دے ۔ چه یو تن بل ته څه شے اوُبخی په دے شرط سره چه دغه بل به ورله دَ دے شے عوض ورکوی ۱۲ مترجم

وُنه خوُو ـ نو خاوند دَ تاریخ غوره دے ـ اوکه دواړو تاریخ وخوُو ـ اودَیو تاریخ
ړومبے وو دَ هغه بل نه ـ نو ړومبے تاریخ والا غوره دے ـ اوکه دَ دعوے
دغه شے دَ دواړو مدعیانو په قبضه کښ وی ـ نودَ دواړو به شی په شریکه
سره ـ لکن که دواړو تاریخ خوولے وی ـ او دَ یو تاریخ ړومبے وی نودَ ړومبی
تاریخ والا به شی ـ اوکه دوؤ تنو دعوه کوله دَ صدقے او دَ قیمهٔ آخستلو
ریعنے یو مدعی وئیل چه دا شے ماله زید خیراتی راکړے دے ـ اوهغه
بل مدعی وئیل ـ چه دا ما دَ زید نه په بیعه آخستے دے ـ) نو ددے حکم
په شان دَ حکم دَ هغے مسئلے دے ـ چه یو مدعی دعوه دَ هبے کوی ـ او بل
مدعی دَ قیمهٔ اخستلو دعوه کوی ـ (لکه چه اوس ذکرشوی دی) او که
جمع شوے دوه هبے (یعنے یو مدعی دعوه کوله چه دا شے ماته زید بخلے دے ـ او
بل مدعی دعوه کوله چه دا ماته زید بخلے دے) نو دَدے حکم په شان دَحکم
دَ هغه مسئلے دے ـ چه دوه تنه دَ یو شیز دعوه کوی ـ او هر یو وائی ـ چه دا ما
دَ زید نه په بیعه آخستے دے ـ او هغه حکم دا دے ـ چه دَ دعوے دغه شیز
کهٔ دَ دواړو په قبضه کښ وی ـ او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان گوروں ـ
او دواړو تاریخ وُنه خوو ـ اویاسے یو تاریخ وخوو ـ نو دغه شیز به دَ دواړو شی ـ
رنیم دَ یواو نیم دَ بل ) اوکه یو تاریخ وخوؤ او هغه بل وُنه خوؤ ـ نو تاریخ والا غوره
دے ـ اوکه دواړو تاریخ وخوؤ ـ او تاریخ دَ یو وُړمبے وو ـ او دَ بل وُروستے ـ نو
وړومبے تاریخ والا غوره دے ـ اوکه دَ دعوے دغه شیز دَ یوتن په قبضه کښ
وو دَ دے دواړو نه ـ نو دَدے حکم په شان دَ هغه مسئلے دَ حکم دے ـ چه مدعی
یے قبضه او خاوند دَ قبضے دواړه دعوه کوی ـ اوهریو وائی ـ چه دا شے ما دَزید نه
په بیعه آخستے دے (اودا حکم دے کتاب په مسئلو دَ بیعے کښ دَ مرئی په مسئله
کښی تیرشوے دے ـ) اوکه جمع شوه هبه سره دَ قبض نه ـ او صدقه سره دَقبض
نه (مثلاً یو دعوه کوله چه دا شے ماته زید بخلے دے ـ او ما ترے قبض کړیدے ـ
اوبل دعوه کوله چه دا ماله زید دَ خدای په نامه راکړے دے ـ او ما ترے قبض
کړے دے ـ) نو دَ دے حکم دا دے لکه چه دوه تنه دَ یو شی دَ قیمهٔ اخستلو
دعوه کوی ـ دَ یو سړی نه (لکه چه اوس اوس بیان شه) اوکه جمع شوه نکاح
او هبه ـ یا نکاح او گانړه ـ یا نکاح او صدقه (مثلاً یو دعوه کوله چه دا وینزه

زید مالہ پہ نکاح راکڑے دہ - او بل دعوہ کولہ - چہ دا ماتہ زید بخلے دہ - یا دا چہ مالہ ئے دَ خدائ پہ نامہ راکڑے دہ - یا دا چہ ماتہ ئے گانڑہ کڑے دہ -) نو نکاح غورہؒ دے -

زۀ وایم - کہ جمع شو نکاح او ھبہ ( یعنے یو دَ نکاح دعوہ کولہ او بل دَ ھبے) او شاھدان دَ دواڑو برابر وو - نو دَ دواڑو جانبو پہ شہادت عمل کیدے شی پہ طریقہ چہ دغہ ونیځہ یو لہ پہ نکاح ورکڑے شوی وی - او بل تہ بخلے شوی وی - لکہ چہ یو سڑے چاتہ ھغہ خپلہ وینزہ اوبخی - کومہ ئے چہ یو بل سڑی لہ پہ نکاح ورکڑی وی -( نو دا کیدے شی ) نو ښائیږی چہ شاھدان دَ ھبے ونہ غور زیږی - دَ پارہ دَ دے چہ مسلمان تہ دَ دروغو نسبت رانہ شی او دَ ھغہ دَ خبرے اِصلاح اوشی - او دا رنگ بیان دے پہ ھغہ صورت کښے چہ جمع شی نکاح او صدقہ یا نکاح او گانڑہ - کوم کوم صورتونہ چہ ذکر شول پہ دے ټولو کښے دا حکم دے چہ دواړو مدعیانو کہ تاریخ خولے وی - او تاریخ دَ یو وړوبے وی - نو ھغہ غورہ دے - او کہ دَ دعوے ھغہ څیز پہ دے دواړو کښے دَ یو تن پہ قبضہ کښے وو - نو خاوند دَ قبضے غورہ دے - مگر کہ دواړو تاریخ خولے وی - او تاریخ دَ مدعی بے قبضے تر وړومبے وی - نو بیا بہ دغہ څیز دَ مدعی بے قبضے شی - او کہ دغہ څیز دَ دواړو مدعیانو پہ قبضہ کښے وو نو بیا بہ دَ دواړو پہ شریکہ شی - مگر کہ دَ یو تاریخ څکښے وو - نو بیا وړومبے تاریخ والا غورہ دے - خو دا حکم ( چہ دَ دواړو بہ پہ شریکہ شی ) پہ صورت دَ دعوے دَ قیمۃً اخستلو او دَ ھبے او دَ صدقے کښے صحیح دے - ځکہ چہ دَ ھبے یا دَ صدقے پہ څیز کښے کوم شراکت چہ وُړ رستو راشی - فتوہ پہ دے دہ چہ ھغہ نہ باطلہ وی - یعنے نہ ماتہ وی ھبہ او صدقے لرہ -( مثلاً زید چاتہ یو کور ھبہ کڑے وو - یا ئے صدقہ کڑے وو - او ھغہ قبض کڑے وہ - بیا پیکښے دَ بکر څہ حق ثابت شہ - نو پہ دے سرہ ھبہ او صدقہ نہ باطلیږی.

لہ صاحب دَ جامع الفصولین کتاب دا خائ دَ نکاح نہ خپلہ ظاھری معنے مراد اخستے دہ - نو کوم صورت دَ جمع کیدلو دَ نکاح سرہ دَ ھبے یا دَ صدقے یا سرہ دَ گانڑے چہ ما لیکلے دے - دا دَ ھغہ پہ رائ بانڈے بنا دے - خو پہ دے عبارت بحرالرائق پہ دے شان سرہ اعتراض کڑے دے - چہ دلتہ دَ نکاح نہ ظاھری معنے مراد نہ دہ - بلکہ دَ فقھاؤ مراد دا خائے دَ نکاح نہ مہر دے - نو دَ جمع صورت بہ ئے دا وی - مثلاً دَ زید ښځہ دہ - ھغہ دعوہ کوی چہ دا وینزہ مالہ زید پہ مہر کښے راکڑے دہ - او بل سڑے پرے دعوہ کوی - وائی چہ دا وینزہ ماتہ زید بخلے دہ - یا وائی چہ دا مالہ زید خدائ پہ ناصہ راکڑیؒ - یا وائی چہ دا ماتہ زید گانڑہ کڑیؒ - حارنگ دَ بحرالرائق کتاب پہ اوم جلد کښے مذکوردی او دَ بحرالرائق دا اعتراض او بیان شامی ھم نقل کڑیدے ۔

بلکه هغه دَ زید په حصه کښې صحیح پاتے ده) لکن دا حکم په صورت دَ دعوے دَ کانړے کښې صحیح نه دے۔ ځکه چه کوم شرکت چه ورو ستو راشي۔ په کانړه شوی څیز کښې هغه باطل وی۔ کانړے لره (لکه چه کانړه دَ یو شریک ناویشلی څیز فاسد ده۔ دا دَنګ که شرکت وروستو پیدا شه نوهم پرے کانړه فاسد یگی) نو په کوم صورت کښې چه یو دعوه دَ بیع کوی۔ اوبل دَ کانړے (یعنے یو مُدعی وائی چه دا ما دَ زید ته په بیعه آخستے دے۔ اوبل وائی چه دا ما دَ زید ته کانړه کړے دے۔ او حال دا وی چه دَغه څیزدَ دواړو په لاس کښې وی۔ نو) په دے صورت کښې بنا ټیږی چه حکم وکړے شی په دغه ټول څیز سره دَ پاره دَ هغه مُدعی چه دعوه دَ بیعے ئے کړے ده۔ ځکه چه مُدعی دَ کانړے ثابته کړے ده دا سے کانړه چه فاسده ده۔ دَ وجهِ دَ شرکت نه۔ یعنے نیم چه دَ مدعی دَ کانړے شی او نیم دَ مدعی دَ بیعے۔ نو شرکت پکښې راځي۔ او دا فاسده وی کانړه نو مدعی دَ کانړے دا سے کانړه ثابته کړے ده چه فاسده ده) نو دَ هغه شاهدان به رد شی۔ او دا سے به شی۔ لکه چه یوازے مدعی دَ بیعے شاهدان وُدرولی وی۔ په خپله دعوه باندے۔ (نو هغه څیز به ټول دده شی۔) او دغه شان کړزولے ده۔ شیخ الاسلام خواهر زاده رح هبے لره سره دَ بیعے نه۔ (یعنے چه یو دعوه وکړی چه دا څیز ما ته زید هبه کړے دے۔ او بل دعوه وکړی۔ چه دا ما دَ زید نه په بیعه آخستے دے) وئیلی ئے دی چه په دے صورت کښې دَ دواړو مدعیانو دَ پاره دَ دغه څیز په شرکت سره حکم کول هله صحیح کیږی۔ چه دغه څیز قابل دَ ویش نه وی (لکه مرئے شه یا غاروے شه) اوکه قابل دَ ویش وی۔ (لکه کور شه یا زمکه شوه) نو بیا به حکم کیږی۔ په دغه ټول سره۔ دَ پاره دَ هغه مدعی۔ چه دعوه دَ قیمةً آخستلو ئے کړے ده۔ اودَ دے دلیل تیر شوے دے۔ په بیان دَ کانړے کښې۔ بیا ئے وئیلی دی چه صحیح خبره په صورت دَ دعوے

---

سله هغه دادے چه دغه څیز دَ نیمے حصے حقدار شوے دے۔ هغه مدعی چه دعوه ئے کړیده دَ قیمةً آخستلو۔ او کوم څیز چه هبه شوے وی۔ او قابل دَ ویش وی۔ په هغه کښې چه دَ نیمے حصے حق دَ بل ثابت شی نو په دے سره فاسدیږی هبه۔ نو چا چه دعوه کړے ده دَ هبے۔ دَ هغه شاهدان ردَ شول۔ او څیز ټول ټال هغه بل مدعی ته پاتے شه۔ لیکن صحیح خبره هغه ده چه وروستوئے ذکر کړیده۔ مترجم

دَ هبے اودَ بیعے کبں دادہ۔ چہ حکم وکړے شی۔ په شرکت دَ دغه شیز سره په
منحکبں دَ دواړو مدعیانو۔ برابره خبره ده۔ چه دغه شیز قابل دَ ویش وی۔
اوکه نه وی۔ ځکه چه کوم شرکت چه وُروستو ثابت شی دَ هبے یا دَ صدقے په
یو شیز کبں۔ صحیح خبره داده۔ چه هغه نه فاسده وی هبے او صدقے لره
او فاسده وی کاتړے لره۔ دا ټول حکمونه چه ذکرشو۔ هاله دی۔ که دواړه
مدعیانو دعوه کوله دَ حاصلولو دَ ملکیت دَ جهته دَ یو سړی نه په جدا جدا
شهادتونو سره۔ اوکه چرے دواړو مدعیانو په جدا جدا شهادتونو سره دَ
جدا جدا سړی دَ جهت نه دَ ملکیت دَ حاصلولو دعوه کوله۔ لکه یو ئیل چه دا
شیز ماته زید هبه کړے دے۔ او هغه بل وئیل چه دا ما دَ بکر نه په بیعه آخستے
دے۔ (او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول) اوحال دا وی۔ چه
دَ دعوے دغه شیز دَ بل په لاس کبں وو۔ یا ددے دواړو په لاس کبں وو۔ یا په
دے دواړو کبں دَ یوتن په لاس کبں وو۔ نو ددے حکم په شان دَ حکم دَ هغه مسئلے
دے۔ چه دوه تنه دعوه کوی دَ ملک مطلق (یعنے یو مدعی وائی چه دا شیز ځما
دے۔ او بل وائی چه دا ځما دے۔ او دواړه سبب دَ ملکیت وُنه ښائی) ځکه چه په دے
دواړو مدعیانو کبں هر یو ملک مطلق ثابتوی دَ پاره دَ هغه سړی چه دَئے مالک کړزولے
دے۔ او بیا دا ثابتوی چه دغه ملکیت دَ هغه نه ماته نقل شوے دے۔ (یعنے یو مدعی دا
خبره ثابتوی چه ددے شیز مالک زید وو۔ هغه زهٔ په هبے سره دَ دے مالک کړزولے
یَم۔ او هغه بل مدعی دا ثابتوی۔ چه دَ دے مالک بکر وو۔ زهٔ ئے مالک کړے یم قیمتًا) نو
داسے شوه۔ لکه چه دغه زید او بکر په خپله حاضر وی۔ او دواړه دَ ملک مطلق
دعوه کوی۔ (یعنے هر یو وائی چه دا شے ځما دے۔) او دواړه په خپله خپله دعوه
شاهدان وُدروی۔ نو کوم کوم ځائے چه ما ذکر کړے دے۔ په دعوه دَ ملک
مطلق کبں چه حکم به کیږی دَ پاره دَ دواړو مدعیانو۔ دلته به هم په
هغه طریقه حکم کیږی۔ (نو اوګوره دعوه دَ ملکیت)

**مسئله**:۔ دَ چا په قبضه کبں یو شے دے۔ بل پرے دعوه کوی۔ او
شاهدان وُدروی په دے خبره چه دا شے ما په بیعه آخستے دے۔ دَ زید نه
او بل سړے پرِ هم دعوه کوی۔ او شاهدان وُدروی په دے خبره
چه دا شے ماته بکر هبه کړے۔ (یعنے بخلے) دے۔ نو حکم دا دے چه دغه

شے په نیم دَ یومدعی شی - او نیم دَ بل - اوکه دواړو شاهدان وُدرول په ملکیت حاصلولو باندے دَ یو جهت نه - یعنے یو مدعی په دے خبره شاهدان وُدرول - چه داشے ما دَ زید نه په بیعه آخستے دے - او بل په دے خبره شاهدان وُدرول چه داما ته زید هبه کړے دے ) نو شاهدان دَ بیعے غوره دی - ځکه چه دواړو مدعیانو یو بل دَ رښتینے کړید ے - ( یعنے دَ یو بل تصدیق ئے کړے دے - ) په دے خبره کښ چه داشے مینه دَ زید وو - نو جګړه په دے کښ پاتے شوه - چه آیا هبه ړومبئ شوے ده - اوکه بیعه نو بیعه ړومبئ ده - ځکه چه په دے دواړو کښ دَ یو ړومبیوالے معلوم نه شه - نو موتږ دواړه داسے وګرزول - لکه چه دواړه په یو وخت کښ شوی وی - اوکه دواړه ( یعنے هبه او بیعه ) په یو وخت کښ شوے وے - نو بیعه به ړومبئ وه - ځکه چه بیعه زر تاثیرېږی په نسبت سره هبے ته - ځکه چه هبه خو هله صحیح کیږی چه چا ته هبه شوی وی - هغه دَ هبے دَ غه شے قبض کړی - او دَ بیعے دَ صحیح والی دَ پاره دا قبض کول شرط نه دی " دا مسئلے راوړی جامع الفصولین په اتم فصل کښ "

**مسئله** :- که دوؤ تنو دَ یو شی دعوه کوله - نو یو شاهدان وُدرول - او بل په دے خبره چه داشے ما ته زید هبه کړیدے - او ما ترے قبض کړیدے او بل شاهدان وُدرول په دے خبره - چه داشے ماله زید دَ خدائے په نامه راکړیدے او ما ترے قبض کړیدے - نو دا دواړه مدعیان برابر دی - ( یعنے دغه شے به نیم دَ یو شی او نیم دَ بل ) ولے هله که دغه شے قابل دَ ویش وو - او دَ امام صاحبؒ په نزد به حکم نه کیږی په هیڅ شی سره او بعضو ویلی دی چه حکم نږد دَ تولو اماما نو رح په نزد به په هیڅ شی سره حکم نه کیږی - او ځینے وائی چه کیږی به دَ پاره دَ دواړو په نزد دَ تولو اما ما نو " قاضیخان په شروع دَ فصل ملکیت بسبب کښ "

---

له بحرالرائق دَ خلاصے کتاب نه داخبره نقل کړیده چه دواړه دعوے که دَ هبے وی - یا دَ صدقے یا یوه دَ هبے او بله دَ صدقے - او دواړو شاهدانو ذکر دَ قبض کولو کړے وی - او تاریخ ئے نه وی خووُلے - یا دواړو یو تاریخ خودلے - نو دغه شے به نیم دَ یومدعی شی او نیم دَ بل - ولے هله چه قابل دَ ویش نه وی - لکه مریئے شه - اوکه قابل دَ ویش وو - لکه کور - نو حکم به نه کیږی دَ پاره دَ دواړو - په هیڅ شی سره - دا قول دَ امام صاحب رح دے - او دَ صاحبینو رح په نزد به حکم کیږی دَ پاره دَ دواړو مدعیانو - اوکه په دے دواړو کښ یو تن دَ قبضے وو - نو بیا به حکم نږد دَ تولو اما مانو رح په نزد دَ ده دَ پاره حکم کیږی ۱۲ مترجم رح ÷ ÷ ÷ ÷ ÷

**مسئله**:- زید مړشه - مال ئے پرېښو - نو دَ هغه میراث خوردَ هغه دَ میراث نه په یوشی دعوه وکړه - چه دا شے ماته زید په حالت دَ جوړ والی کښ هبه کړے دے - (رابخښلے دے) او ما تړے قبض کړے - او دَ زید نورو میراث خورو اووئیل چه داهبه دَ زید په حالت دَ مرض موت کښ وه - نو په دے صورت کښ خبره دَ هغه چا معتبره ده - چه دعوٰی کوی دَ دے خبرے چه داهبه په حال دَ مرض کښ شوے - او که دواړه ډلے گواهان وړاندے کړل، نو شاهدان دَ هغه میراث خور غوره دی - چه دعوه ئے کړیده - چه داهبه په حالت دَ صحت کښ شوے " قاضیخان په آخر دَ هغه فصل کښ - چه په کوم کښ دَ نکاح دَ متعلقاتو بیان دے -

# مسئله دَ عاریت

(یعنے دَ چانه څه شے دَ یو وخت دَ پاره په طریقه دَ سوال اخستل)

**مسئله**:- (یو سړی دَ یل نه دَ عاریت په طریقه یو څاروے بوتلے وو - بیا دوئ دواړه دَ هغے په واپس ورکولو کښ مختلف شو - نو) چا چه په طریقه دَ عاریت بوتلے وو - هغه شاهدان وړاندے کړل په دے خبره باندے چه هغه څاروے ما دے راکونکی ته واپس کړے دے - او ورکونکے شاهدان وړاندے کړل په دے خبره - چه هغه دَ فلانی ځائے نه اوختلے وو - پس دَ هغے نه مړشوے دے - (یعنے دَ چه ځمانه کوم ځائے ته دَ بوتلو دَ پاره غوښتلے وو - ده هغه څاروے دَ هغه ځائے نه نور وړلے وو - پس دَ هغے نه مړ دے - نو دے په ماله تاوان راکوی -) نو چا چه دغه څاروے ورکړے وو - دَ هغه شاهدان غوره دی - " خلاصه "

# دَ امانت مسئلے

**مسئله**:- دَ زید په لاس کښ دَ بکر یو امانت وو - نو یو سړے راغے - او دعوه ئے وکړه - چه زه دَ بکر وکیل یم - یو کال کیږی چه زه ئے وکیل کړے یم - په

دے خبرہ کښ چه زهٔ دغه امانت دَ زید نه واخلم - او په دے خبرہ شاهدان وُدروی - او زید په دے خبرہ شاهدان وُدروی - چه دا وکیل بکر دَ خپل وکالت نه ایستلے دے - دَ کوم وکالت چه دے دعوہ کوی - نو دَ زید شاهدان قبول دی - او دا رنګ حکم دے - که زید په دے خبرہ شاهدان وُدرول - چه دَ دے وکیل دا شاهدان چه دی - دوئ مریونه دی - ( نو دَ دوئ شاهدی قبوله نه ده ) نو هم دَ زید شاهدان قبول دی۔

**مسئله** :- دَ یو سړی په قبضه کښ یو کور وو - بل سړی پرے دعوہ وکړہ چه دا زما دے - نو مدعا علیه په جواب کښ او وئیل - چه دا کور نیم زما دے او نیم را ته فلانی سړی په طور دَ امانت پریخے دے - او شاهدان ئے وُدرول په دے خبرہ چه دا نیم امانت دے - او مدعی خپله دعوہ شاهدان وُدرول پس دَ هغے نه مدعا علیه دَ دغه نیم کور په امانتوالی شاهدان وُدرول - نو دَ مدعی دعوہ دَ دغه نیم کور په بابت کښ باطله شوہ - ( یعنے بیکارہ شوہ ) باقی دا خبرہ چه په بابت دَ دغه ټول کور کښ بالکل باطله شوہ او که نه - نو بعض عالمان وائی چه باطله شوہ - لکن مصنّف رح وائی - چه په دے کښ اعتراض دے - امام محمّد صاحب رح په جامع (کبیر) کښ دے خبرے ته اشارہ کړے دہ - چه دعوے دَ ټول کور په بابت کښ بالکلیه نه باطلیږی۔

**مسئله** :- یو سړی دعوہ وکړہ دَ یو داسے کور - چه وو په قبضه دَ بل سړی کښ " چه دا زما دے " نو مدعا علیه شاهدان ودرول په دے خبرہ باندے " چه دا ما ته امانت دے - دَ زید چه غائب دے " نو دے دَ دغه مدعی دَ دعوے نه خلاص شه - پس که چرے زید راغے - او مدعا علیه ورته کور وسپارلو او مدعی اول په زید باندے دعوہ سر دوبارہ کړہ - او زید ورته په جواب کښ او وئیل - چه دا کور ما ته دَ یو فلانی سړی امانت دے - او په دے ئے شاهدان وُدرول - نو دا شاهدان قبول دی - او دے هم دَ دغه مدعی دَ دعوے نه دَ خیرہ سرہ خلاص شه " قاضیخان دَ دعاوی په باب دَ ما یبطل دعوی المدعی قبل القضاء کښ "

**مسئله** :- که خاوند دَ قبضے او وئیل - چه دا شے زما په قبضه او تصرّف کښ دے - او نور ئے څه وُنه وئیل - نو مدعی شاهدان وُدرول په دے په دے خبرہ باندے

چه داځما دے۔ پس دَ هغے ته خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په امانت والی باندے (چه داماځخه پردے امانت دے) نو قاضی به دَدهٔ دا خبره نه آوری۔ اوکه ده مینه وئیلی وی۔ چه دا ځما په قبضه کښ دے۔لکن پردے امانت دے۔ نو بیا به ئے آوری" جامع الفصولین"

**مسئله**:۔که چا شاهدان وُدرول په امانت باندے۔ چه ما دَ دے سړی سره فلانے شئے په طور دَ امانت ایخے دے۔ اوحال داوی چه دغه سړی انکار کړے وی۔ او اوس چه مدعی شاهدان وُدروی۔ نو دے شاهدان اُودروی په دے خبره چه هغه امانت ماځخه ضایع شوے دے۔ نو دا مسئله په دوه قسمه ده۔اول قسم دادے۔چه دَ چاځخه امانت ایخے شوے وی۔ هغه مَیته دَ امانت ایخودلو نه انکار کړے وی۔ وئیلی ئے وی۔چه تا ځما سره امانت نه دے ایخے (نو چه مدعی په خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ بیا دے شاهدان وُدروی۔ په دے خبره چه هغه ضایعه شوے دے) نو په دے صورت کښ دے ضامن دے۔ اودَ امانت په ضایع کیدلو باندے دَ دهٔ شاهدان چه دی۔ هغه نا منظوره دی برابره خبره ده۔که دا شاهدان شاهدی کوی په دے خبره چه هغه امانت دَ انکار کولو نه مخوا ضایعه شوے وه۔یا شاهدی کوی۔په دے خبره چه هغه دَ انکار کولو نه وُرستو ضایعه شوے دے۔ او دویم قسم دادے چه دَ چاځخه امانت ایخلے شوے دے۔هغه دَ امانت کیخودلو نه انکار نه وی کړے۔خو انکار ئے کړے وی دَامانت نه۔ وئیلی ئے وی ؎ چه ستا امانت ما ځخه نشته دے۔نو چه مدعی شاهدان ودرول۔اوس دے شاهدان وُدروی۔ په دے خبره چه هغه ځما دَ انکار کولو نه مخوا ضایعه شوے دے۔ نو دے ئے ضامن نه دے۔" مشتمل الاحکام"

**مسئله**:۔که امانت ایخودونکی ته اووئیل۔ هغه سړی چه امانت ورځخه ایخلے شوے وو۔چه ما تاته ستا امانت واپس کړے دے۔یائے ورته اووئیل۔ چه هغه ما ځخه ضایعه شوے دے۔او امانت ایخودونکی ددے نه انکار وکړلو۔اودے وئیل چه داسے نه ده۔ بلکه هغه تا په خپله ضایعه کړے دے۔ نو چه دَ چاځخه امانت ایخلے شوے وو۔دَ هغه خبره معتبره ده سره دَ قسمه۔ اوکه شاهدان وی نو شاهدان هم دَ هغه غوره دی۔ ځکه چه شاهدان دَ مالك دَ امانت وددیل لی دی۔ په نه واپس کولو دَ امانت باندے۔ او شهادت په نشتوالی قبول نه دے۔ دار تلهٔ ذکر دی۔ په وجیز کتاب

کبنی - او بعضو ویلی دی - چه شاهدان دَ مالك غوره دی - ځکه چه هغه تابتوی تاوان نوشو تابتونکی دَ یوشی - اودا قول جامع الفصولین ذکرکړے دے -

**مسئله** :- دَ یو سړی په قبضه کښں څه شے دے - دوه تنه بهرانی مدعیان پرِ دعوه کوی - نوخاوند دَ قبضے ته هغه یو مدعی وائی - چه دا شے تاځمانه په زور آخستے دے - او هغه بل ورته وائی - چه دا ما تاته په طور دَ امانت ایخلے دے - اودواړه مدعیان په خپله خپله دعوه شاهدان وُدروی - نو دغه شے به نیم دَ یو مدعی شی اونیم دَ بل په سبب دَ دے چه دواړه برابر دی - ځکه چه خاوند دَ قبضے که دَ امانت نه انکار وکړلو - نو په زور نیونکے شه - (نو دَ دواړو دعوے برابر شوے)" صدرالشریعة په باب دَ دعوے دَ دووکسانو کښں "

**مسئله** :- که یو مدعی بے قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره چه فلانے شے چه دَ زید په قبضه کښں دے - دا ورڅخه ما امانتًا ایخلے دے - او بل مدعی بے قبضے په دے خبره شاهدان وُدرول - چه دغه شے ځما دے - (او سبب دَ ملکیت ئے وُنه خوو) نو حکم به کیږی دَ پاره دَ مدعی دَ امانت -" وجیز په باب دَ ترجیح البینات دَ دعوو کښں "

**مسئله** :- دَ زید په قبضه کښں یو کور دے - بل سړی پرے دعوه وکړه - چه دا ما دَ زید نه په دومره قیمت آخستے دے - او قیمت م ورلره ورکړے دے - او کورم تر قبض کړے دے - او زید په دے خبره شاهدان ودرول - چه دا کور دَ فلانی غائب سړی دے - هغه ما سره په طور دَ امانت ایخے دے - نو دا شاهدان قبول دی - او زید دَ دغه مدعی دَ جګړے نه خلاص شه " قاضیخان دَ دعاوی په فصل دَ دعوے دَ ملکیت بسبب کښں "

# مسئلے دَ غصب

(یعنے دَ چا نه څه شے په زور آخستل)

**مسئله** :- یو سړی دَ بل نه څه شے په زور آخستے وو - اوس شاهدان ودروی په دے خبره باندے - چه هغه ما دے مالك ته واپس ورکړے دے - او دَ هغه شی مالك شاهدان ودروی په دے خبره باندے - چه دے دروغ وائی - بلکه هغه دهٔ ضائع کړے دے - نو چا چه په زور آخستے دے - هغه ئے ضامن دے

**مسئله** :- یو سړی یوځای ورسره د مالک نه په زور بوتلے وو۔ نو دوه کسه شاهدي
مالک شاهدان ؤدروی په دے خبره باندے چه هغه ځای ورسره سړی ځنی چه په
زور ئے بوتلے وو۔ مړ شوے دے۔ او دغه سړے شاهدان ودروی په دے خبره
چه هغه دے مالک ځنی مړ شوے دے۔ نو چا چه زور اخستے دے۔ د هغه
شاهدان غوره دی۔" وجیز په بیان د غصب کښې ۔"

**مسئله** :- د زید په قبضه کښې یو شے دے۔ نو دوه تنه ئے دعوه کوی
نو یو خو په دے خبره شاهدان ؤدروی۔ چه دغه څیز ځما نه زید په زور اخستے
دے۔ او هغه بل په دے خبره شاهدان ؤدروی۔ چه دغه څیز ځما دے۔ (او
سبب د ملکیت نه بیانه وی) نو چا چه دعوه کړے۔ چه دا ئے ځما نه په زور اخستے
دے۔ د هغه شاهدان غوره دی۔ جوړ د هغه د پاره به حکم کیږی " وجیز
د دعاوی په باب د ترجیح البینات کښې "

**مسئله** :- د زید په قبضه کښې یو مرئے وو۔ نو دوو تنو ئے دعوه وکړه
نو یو شاهدان ودرول په دے خبره۔ چه دا مرئے ځما نه زید په زور اخستے
دے۔ او هغه بل په دے خبره شاهدان ؤدرول۔ چه دا مرئے ما زید ته په
طور د امانت ایښے دے۔ نو حکم به کیږی د پاره د دواړو مدعیانو په
شریکه سره۔ ځکه چه دواړه یو شان دی په مستحقوالی کښې۔" هدایه په باب
د دعوے د دوو کسانو کښې۔

**مسئله** :- که چا دعوه وکړه" چه دا ځما وینزه ده۔ او ځما نه خاوند د
قبضے په زور آخستے ده۔ نو خاوند د قبضے شاهدان ؤدرول په دے خبره باندے
چه دا خود د بکر وینځه ده۔ او هغه آزاده کړے ده۔ او بیا ئے په نکاح اخستے ده۔ او اوس
ورسره ما نکاح[1] کړے دے۔ نو په دے سره رد کیږی دعوه د مدعی" لسم فصل
د فصولین"

**مسئله** :- یو سړی شاهدان ؤدرول په زید باندے چه ده دا وینزه ځما نه
ن په زور آخستے ده۔ او یو بل مدعی پرے شاهدان ؤدرول۔ چه زید دا وینزه
یو میاشت کیږی چه ما نه په زور آخستے ده۔ نو امام محمدؒ صاحبؒ ویلی دی
په طریقه د قول د امام صاحب رح چه دغه وینزه به د هغه یوشی۔ کوم چه

---

[1] یعنے بکر بیا مړ شوے وو۔ یا ئے دغه طلاقه کړے وو ۱۲ مترجم

شاهدان ودرولی دی په دروستی وخت باندے۔ اوزید ضامن دے۔ دَ دغے وینزے دَ قیمت چه ورکوی به ئے هغه مدعی له کوم یوچه په وروستی وخت شاهدان ودرولی دی۔ او دَ امام ابو یوسف صاحب رح دَ قول په بنا باندے به وینزه دَ هغه مدعی شی۔ کوم یوچه په وړومبی وخت شاهدان ودرولی دی۔ اوزید هغه بل مدعی ته دهیڅ شی ضامن نه دے " قاضیخان په دعوے دَ منقول کښی "

**مسئله** :۔ قاضیخان په دغه فصل کښی دا مسئله هم راوړی ده۔ چه یو سړی دَ بل نه څه شے په زور واخست۔ تو هغه پرِ دعوه وکړه۔ اوشاهدانئے ودرول۔ په دے خبره چه دهٔ ځما نه دا شے په زور اخستے دے۔ او دَ دے شاهدانو تعدیل وُشه (یعنے معلومه شوه چه دا شاهدان کره دی۔) نو په زور اخستو نکی دعوه وکړه چه دے سړی چه ما ترِ دا شے په زور آخستے دے۔ اقرار کړے دے۔ ځما په حق کښی چه دا شے دده دے۔ نوچاچه په زور اخستے وو۔ اے دَ هغه دا شاهدان قبول دی۔ په دا سے حال کښی چه کوم شے ئے په زور اخستے وو۔ هغه پرئے په لاس کښی پاتے وی۔ اوکه نه قاضی په ورته حکم کوی۔ چه ته دغه شے مدعی له ورکړه۔ بیاپس ددے نه به ترے شاهدان طلبه وی۔ په هغه دعوه دَ اقرار باندے چه دهٔ کړے ده۔ نو (په دے بابت کښی) امام محمّدؒ صاحب وئیلی دی۔ چه دهٔ که دعوه کوله چه ځما شاهدان حاضر دی۔ نو قبول به کړے شی۔ او هغه شے به دَ دهٔ په لاس کښی پاتے کړے شی (یعنے دے به دَ مدعی په اقرار باندے شاهدان تیرکړی۔ او هغه شے به دَ دهٔ په لاس کښی پاتے وی۔

**مسئله** :۔ که چا دَ بل نه یو کور تیولے وی په زور۔ بیا مالک ئے شاهدان ودروی په دے خبره باندے۔ چه دے په زور اخستونکی دغه کور تړولے دے او په زور اخستونکے شاهدان ودروی په دے خبره باندے۔ چه دغه کور ما دے مالک ته واپس کړے دے۔ نوشاهدان دَ مالک دَ دغه کور غوره دی۔

**مسئله** :۔ که مالک دَ یوے داسے وینزے چه مړه وی شاهدان ودرول په دے خبره باندے۔ چه هغه وینزه چه ځما نه دے زید په زور اخستے وه۔ دے زید څخه مړه شوے ده۔ اوزید شاهدان ودرول په دے خبره۔ چه هغه ما دے مالک ته واپس ورکړے وه۔ نو بیا دهٔ څخه مړه شوے ده۔ نو امام ابو یوسف صاحبؒ وائی۔ چه په دے صورت کښی شاهدان دَ مالک دَ دغه وینزے غوره دی۔ او

امام محمّد صاحب رح وائی - چه دَ زید په شاهدانو سره به حکم کیږی - (یعنی شاهدان دَ زید غوره دی)

**مسئله** :- که خاوند دَ یوے زمکے اودبَل خاوند دَ قبضے نه چه تا دا زمکه ځما نه په زور نیولے وه په داسے حالت کښ چه آبادی پکښ وه - اوخاوند دَ قبضے اودبَل - چه دا ما ستا نه په زور نیولے وه - په داسے حال کښ چه آبادی پکښ نه وه - بلکه آبادی پکښ ما وُرستو کړیده - او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول - نو شاهدان دَ غاصب غوره دی - (یعنی چاچه په زور نیولے وه - دَهغه شاهدان غوره دی -) "قاضیخان"

## مسئلے دَجنایتونو

(یعنی دَ جرمونو)

**مسئله** :- که یو سړے ولګیده - بل ئے زخمی کړه - بیا هغه زخمی مړشو - نو دَهغه خپلوانو شاهدان وُدرول په دے خبره بانڈے چه هغه دَ دغه زخم په سبب مړ شوے دے - او وهونکی په دے خبره شاهدان وُدرول - چه هغه دَ دغه زخم نه جوړ شوے وو - او بیا لس ورځے پس مړشوے دے - نو شاهدان دَ خپلوانو دَ مقتول غوره دی اوعامه قاعده په دے کښ داده - چه کوم شاهدان شاهدی کوی - په دَ خبره چه دَ زید مرګ په سبب دَ زخم سره شوے دے - دا غوره دی دَ هغو شاهدانو نه چه شاهدی کوی په دَ خبره چه زید دَ دغه زخم نه جوړ شوے وو - بیا ورستو مړ شو بیا ئے "درر غرر" په شهادتو کښ: او دا خبره پټه نه ده چه دا بیان موافق دے دَ هغه بیان سره چه کوم صاحب دَ قنیے کتاب: دوو متعارض شهادتونو په باب کښ ذکر کړی دی - او بعض عالمانو دے (غوره والی) وجه داخوښے ده - چه شاهدان دَ خپلوانو دَ مړی چه دی هغه ثبوت راوستونکی دی (دَ قصاص) او شاهدان دَ وهونکی چه دی - هغه نفی راوستونکی دی (دَ هغے او شاهدان وی دَ پاره دَ اثبات - نو په دے وجه غوره شول) لیکن دا بیان مخالف دے دَهغه بیان نه کوم چه صاحب دَ خلاصے په اخیر دَ کتاب الدعوی کښ ذکر کړے دے - او هغه دادے چه یو سړی په بل بانڈے ددے خبرے دعوه وکړه - چه دهٔ ځما دَ وینزے په کیږه ګذار کړے وو - او هغه دَ دغه ګذار نه مړه شوے ده - نو دَدهٔ په جواب

کښې مدعاعلیه او وئیل۔ چه هغه وینزه دَ دغه وهلونه وُرستو بازار ته وتلې وه نو دا: فعه صحیح نه ده۔ (په دے سره دعوه دَ مدعی نه رد کیږی) او که مدعا علیه په دے خبره شاهدان وُدرول۔ چه هغه وُرستو دَ دغه وهلونه جوړه شوے وه۔ نو بیا دا دفعه صحیح ده۔ او که دواړو شاهدان وُدرول۔ دَ خوپه دے خبره چه هغه جوړه شوے وه۔ پس دَ دغه وهلونه۔ او هغه په دے خبره چه هغه مړه شوے ده۔ په سبب دَ دغه وهلو۔ نو شاهدان دَ جوړوالی غوره دی دارنګ و ئیلی دی۔ په فتاوی بزازیه کښې۔ او په کتاب مشتمل الاحکام کښې او فاضل کامل ابوسعود صاحب هم په دے سره فتوٰے ورکړے ده۔

**مسئله**:۔ یو سړی په بل باندے دعوه وکړه۔ چه دَه ځما رور قصداً وژلے دے۔ او شاهدان ئے وُدرول۔ بیا قاتل دعوه وکړه۔ دَ دے خبرے چه دَ دغه مقتول یو ځوئ دے۔ هغه ماته دَ دے قتل بخانه کړیده۔ نو حکم دا دے۔ چه قاضی به دغه قاتل ته حکم کوی۔ چه نه دَ مقتول ځوئ را حاضر کړه۔ او شاهدان دِ راولړ۔ نو که قاتل ولګیس ه۔ یو سړے ئے راحاضر که۔ او دوه شاهدان ئے راوستل او دوئ په دے خبره شاهدی ورکړه۔ چه دا سړے دَ مقتول ځوئ دے۔ او دے قاتل ته ئے څپوتي په مخکښې دَ دے قتل عفوه کړے ده۔ نو مصنفؒ وائی۔ چه دَ دوئ شاهدی قبوله ده۔ او ثابت به شی دَ مقتول نه نسب دَ دغه سړی۔ چه شاهدی پرے دَ ځوئ والی شوے۔ اګر که دے ئے نه منی۔ او باطل به شی قصاص۔ " قاضیخان په باب دَ ما یبطل دعوی المدعی قبل القضا کښې "

**مسئله**:۔ یو سړی په بل باندِ دعوه وکړه۔ چه ده په فلانئ وُرځ (په فلانی تاریخ) ځما پلار وژلے دے۔ نو مدعا علیه شاهدان وُدرول۔ په دے خبره چه دَه پلار خو دَ دغه ورځ نه ورومبی مړ شوے دے۔ نو دا شاهدان دَ مړوالی قبول نه دی۔ " لسم فصل دَ فصولین "

**مسئله**:۔ چا په بل باندے دعوه وکړه۔ چه ځما خر دَ دَه دَ انګورو باغ ته ننوتے وو۔ نو ده یو ډبوکی ته او وئیل چه دا خر او وهه او دَ باغ نه ئے او باسه۔ نو هغه داسے او وهلو چه ترِ مړ شو۔ او په دے دعوه ئے شاهدان وُدرول۔ او مدعا علیه په دے خبره شاهدان وُدرول۔ چه هغه خر ژوندے دے۔ مړ شوے نه دے۔ نو دا شاهدی قبوله نه ده۔ ځکه چه دا شاهدی ده په نشتوالی

دَ مړک باندې ـ (اوشاهدی په نشتوالی قبوله نه وی) " قنیه په تواتر دَ شهاداتو کښې "

# دَ اقرارکولو مسئلې

**مسئله** :- که چا دَ پاره دَ خپل میراث خور په یوشی سره اقرار وکړ ـ بیا اقرار کوُنکے مړشه ـ نو دَ چا دَ پاره چه ئے اقرار کړے وو ـ هغه اووئیل ـ چه دغه مړی ځما دَ پاره اقرار کړے وو ـ په حالت دَ جوړ والی کښې ـ او دَ دغه مړی نورو میراث خورو اووئیل ـ چه داسے نه دہ ـ بلکه دغه اقرار ئے کړے وو په حالت دَ مرض کښې ـ نو خبره دَ میراث خورو معتبره دہ ـ اوکه دواړو شاهدان وُدرول ـ نو دَ چا دَ پاره چه اقرار شوے دے ـ دَ هغه شاهدان غوره دی " مشتمل الاحکام په شهاداتو کښې "

**مسئله** :- دَ چا دَ پاره چه اقرار کړے شوے وی ـ که هغه دعوه وکړه ـ چه دا اقرار په رضا او په خوشئ شوے دے ـ او هغه بل دعوه وکړه ـ چه داسے نه ده ـ بلکه په زور او په جبر شوے دے ـ نو شاهدان دَ جبر غوره دی ـ " مشتمل الاحکام "

**مسئله** :- که چا دَ داسے سامان یا دَ یو داسے کور دعوه وکړه ـ چه هغه دَ بل په قبضه کښې وو ـ چه دا ځما دے ـ او په دے دعوے ئے شاهدان وُدرول ـ او قاضی دَ دهٔ دَ پاره حکم وکړو ـ بیا دهٔ لا دغه سامان نه وو قبضه کړے چه خاوند دَ قبضے یعنے مدعا علیه شاهدان وُدرول ـ په دے خبره چه دے مدعی دَ قاضی په حضور کښې خونه ـ دَ بل چا په مخکښې ئے اقرار کړے دے وئیلی دی ـ چه په دے سامان یا په دے کور کښې ځما هیڅ حق نشته دے نو دَ دے مسئلے حکم دا دے ـ چه دے شاهدان که داسے شاهدی وکړه ـ چه دے مدعی دَ قاضی دَ حکم نه مینه وارنګ اقرار کړے وو ـ نو دَ قاضی حکم به مات شی ـ اوکه داسے شاهدی ئے کوله ـ چه دا اقرار ئے دَ قاضی دَ حکم نه ورستو کړے دے ـ نو بیا به دَ قاضی حکم نه ماتیږی ـ " قاضیخان په فصل دَ تکذیب

شهود کښې ؟

**مسئله** :- یو سړی په بل باندے دَ زرو روپو دعوه وکړه- او شاهدانو ورول او قاضی ورله حکم وکړو په دے روپو سره- بیا دغه مدعا علیه شاهدان وړاندې په دے خبره باندے- چه دے مدعی مخوا دَ حکم دَ قاضی نه اقرار کړے دے- وئیلی ئے دی- چه ځما په ده باندے هیڅ حق نشته دے- نو دَ دهٔ دَ ذمے نه به مال پورته شی- (یعنے دے آزاد شه) " قاضیخان په دعوے المنقول کښې "

**مسئله** :- دَ یو سړی په قبضه کښې یو کور دے- بل پرے دعوه وکړه- چه دا کور ماته دَ خپل پلار نه په میراث کښې پاتے شوے دے- او خاوند دَ قبضے شاهدان وړاندې په دے خبره باندے- چه دَ دے مدعی پلار (چه مړ دے) هغه کړے وو- وئیلی ئے وو- چه دا کور ځما نه دے- یا وئیلی ئے وُو- چه دا کور ځما نه وو- نو په دے سره دَ مدعی شاهدان دَ میراث او دَ هغه دعوه بے فایدے کیږی " قاضیخان په باب دَ ما یبطل دعوے المدعی قبل القضاء کښې "

**مسئله** :- یو سړی دعوه وکړه چه دا شے ماته دَ خپل پلار نه میراث پاتے شوے دے- او دَ دهٔ خصم (یعنے دَ چاچه ورسره دَ دغه شی په بابت کښې جګړه وه- هغه) شاهدان وړاندې په دے خبره- چه ستا پلار ځما دَ پاره اقرار کړے وو- چه دا شے دَ دهٔ ملک دے- نو دَ خصم دَ طرف نه دا دفعه قبوله ده- پس که دے مدعی دَ میراث دعوه وکړه- چه تا ځما په حق کښې اقرار کړے دے- چه دا دَ دهٔ دَ پلار دے- نو دا دفعه هم قبوله ده- ځکه چه څرنګه دَ دعوے دفعه صحیح ده- دارنګه دَ دفعے دفعه هم صحیح ده- نو دواړه دفعے یو ترمله وجنګیږے جوړ دَ دواړو اثر پاتے نه شو- نو قبول به شی شاهدان دَ میراث بے دَ څه معارضه نه- پس که مدعا علیه بیان وکړه- چه دَ دے مدعی پلار په فلانی تاریخ اقرار کړے وو- او مدعی دَ مدعا علیه دَ اقرار تاریخ بیان نکه- نو دَ مدعی شاهدان به قبول شی " اسم فصل دَ فصولین "

**مسئله** :- دَ زید په قبضه کښې څه شے وو- بل پرے دعوه وکړه- چه دا ځما دے او زید هم ځما دَ پاره په دے سره اقرار کړے- او په دے دعوے ئے شاهدان وړاندې او مدعا علیه په دے خبره شاهدان وړاندې- چه دے مدعی ماته وئیلی دی- چه

داشے ماته هبه کړه - (یعنے راؤبخه) نو دَ مدعی شاهدان بے فائدے شو۔ او زید دَ هغه دَ جګړے نه خلاص شه - ځکه چه په دے دواړو مدعیانو کښ هر یو شاهدان وُدرولی دی - په اقرار دَ هغه بل[1] باندے - دَ پاره دَ دهٔ - نو دَ دواړو جانبو شاهدی بیکاره شوه - ځکه چه هغه یو تر بله معارضے دی۔ نو دَ جګړے دغه شے به دَ زید په قبضه کښ پاتے کړے شي "قاضیخان په باب دَ ما یبطل دعوی المدعی قبل القضاء کښ"

**مسئله** :- دَ زید په قبضه کښ څه شے وو - بل چا پرے دعوه وکړه - چه دا حماد دے - نو زید شاهدان وُدرول په دے خبره چه دے مدعی اقرار کړے دے - وئیلی ئے دی چه دا شے دَ زید دے - نو دا دفعه صحیح ده - او که هر یو دَ دے دواړو نه شاهدان وُدرول په اقرار دَ یو بل باندے دَ پاره دَ یو بل - (یعنے زید او وئیل چه دے مدعی حماد دَ پاره اقرار کړے دے - او دغه مدعی او وئیل چه زید حماد دَ پاره اقرار کړے دے) نو دَ دواړو شهادتونه به او غورزیږی - او قاضی به حکم کوی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے (چه زید دے) " جامع الفتاوی په دعاوی کښ"

**مسئله** :- یو سړی په بل باندے دَ شپږو اشرفو دعوه وکړه - نو مدعاعلیه دَ دهٔ په جواب کښ او وئیل - چه دے مدعی ماته دَ دے نه ابرا کړیده - (دا دعوه ئے ماته پریخے ده) او شاهدان ئے وُدرول - او مدعی په دے خبره شاهدان وُدرول چه حماد دَ ابراء وُرستو دهٔ اقرار کړے وو حماد دَ پاره په شپږو اشرفو سره - نو ځنے عالمان وائی چه دَ مدعاعلیه دَ جواب په رد کښ شاهدان دَ مدعی قبول دی او ځنی عالمان وائی چه قبول نه دی - نو مطلب دا شه - چه بعض عالمان وائی چه دَ اقرار کونو دا دویمه دعوه صحیح ده - او بعضے وائی چه صحیح نه ده - او بعضے عالمان دا وائی - چه مدعاعلیه که دَ ابراء په دعوے کښ ذکر دَ قبلولو یا دَ تصدیق کړے وو - (چه ما دا ابراء قبوله کړے وه) نو بیا پرے دعوه دَ اقرار صحیح نه ده - او که نه ئے وی کړی - نو بیا صحیح ده " قنیه په باب دَ دوو متعارض شهادتونو کښ "

**مسئله** :- یو سړی په بل باندے دَ زمکے دعوه وکړه - او شاهدان ئے وُدرول او دَ فیصلے کیدلو نه ئے مینه دا دعوه وکړه - چه دے مدعاعلیه دَ دغے زمکے دَ

---

[1] مدعی خو دَ زید په اقرار شاهدان ودروی - او زید په دے خبره شاهدان وُدروی - چه دے مدعی حماد نه دا شے غوښتلے دے - نو ګویا دهٔ حماد په ملکیت سره اقرار کړے دے - ۱۲ مترجم

نیمے حصے ځما د پاره اقرار کړے دے۔ جو ړ شاهدان ئے پړے وُدروُل۔ او قاضی ورلوه په دغه نیمه حصه سره حکم وکړو۔ او دغه نیمه ئے ورته اُسپارله۔ بیا یو بل سړی شاهدان وُدروُل په دے خبره چه ما دغه ټوله زمکه د مدعا علیه نه په بیعه آخستے ده دړے کاله وړومبیه د هغے نه چه ستا د پاره ئے اقرار کړے وو۔ نو قاضی لاځه حکم نه ووکړے۔ او مدعی شاهدان وُدروُل په دفعه باندے۔ یعنے په دے خبره باندے چه کوم وخت تا دغه زمکه په بیعه آخستله۔ د هغے نه یو کال مخکښں دے مدعا علیه اقرار کړے وو۔ چه په دے زمکه کښں ځما هیڅ حق نشته۔ نو قاضی حکم وکه۔ چه دا دعوه د بیعے باطله ده۔ نو د کومے نیمے حصے حکم چه قاضی کړے دے د مدعی د پاره هغه حکم نه باطیږی۔ (او د قاضی دا حکم صحیح دے) او د مدعی دا دفعه قبوله ده۔ او امام باقوینی صاحب رح او ممیرو بری صاحب رح ویلی دی۔ چه دا دفعه نه ده۔ ځکه چه ممکنه ده۔ چه په دغه زمکه کښں د مدعا علیه حق د اقرار کولو په وخت کښں نه وی۔ او بیا وُرستو ئے په څه ذریعه سره مالک کړے بیا لے دی۔ " قنیه په باب د دفع د دعوی کښں " او په دغه کتاب کښں ئے دا مسئله هم راوړے ده۔ چه یو سړی دعوه وکړه په بل باندے۔ چه د ده ته ځما دومره روپیٔ دی۔ او مدعا علیه شاهدان وُدرول په دے خبره باندے۔ چه دے دعوه کونکی اقرار کړے دے۔ دائی ویلی وو۔ چه ما د دغه روپونه دومره روپیٔ وصول کړی دی۔ نو په دے سره نه بیکاره کیږی دعوه د دغه مدعی په بابت د دغه پاتے روپو کښں۔

**مسئله** :- د زید په قبضه کښں یو کور وو۔ نو راغے یو بل سړے دعوی ئے پرِ وکړه چه دا کور ځما دے۔ ما د زید د پلار نه په بیعه آخستے دے۔ نو زید ورته په جواب کښں او وئیل۔ چه دا کور هیچرے ځما د پلار نه وو۔ یا دا چه د هغه په کښں هرګز څه حق نه وو۔ نو چه مدعی په خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ جو ړ زید شاهدان وُدرول په دے خبره باندے۔ چه ځما پلار په حالت د صحت کښں اقرار کړے وو ویلی ئے وُو۔ چه دا کور ځما نه دے۔ نو دا شاهدان د زید قبول دی " قنیه باب ما یبطل دعوی المدعی قبل القضاء "

**مسئله** :- زید په بکر باندے د څه مال دعوه وکړه۔ نو بکر شاهدان وُدرول په دے خبره باندے۔ چه تا اقرار کړے دے په ابراء سره۔ (یعنے تا ویلی دی۔ چه ما بکر ته دغه حق پریخے دے۔) نو زید شاهدان وُدرول په دے خبره باندے

چه اے بکره! ما چه اقرار دَ ابراء کړے وو۔ دَ هغے نه وُروستو تا څما دَ دغه مال په شته والی اقرار کړے دے ستا په ذمه باندے۔ نو اے! په دے سره دَ بکر دعوه دفعه کیږی۔ اوکه نه؟ دَ دے تپوس په جواب کښ شیخ الاسلام مولنا برهان الدین صاحب رح ویلی دی۔ چه په دے سره دَ بکر دَ دعوے دفعه نه راځی۔ اوکه زید په دے خبره شاهدان وُدروی۔ چه اے بکره! تاچه په ما دعوه دَ اقرار کړے ده۔ په ابراء سره۔ دَ هغے نه وروستو دے څما دَ دغه مال په شته والی اقرار کړے دے ستا په ذمه باندے۔ نو بیا دَ زید دا شاهدان قبول دی۔ او دفعه کیږی په دے سره دعوه دَ بکر۔ او فرق په دے دواړو صورتونو کښې دا دے۔ چه کوم وخت زید دا اوویل " ما چه اقرار دَ ابراء کړے وو" نو په دے وینا سره ئے جوړ اوس اقرار دَ ابراء وکړلو اوزید چه په بکر دعوه دَ اقرار دَ دغه مال کوی۔ هغه اقرار روښیے دے۔ دَ زید دَ وُسنی اقرار ته۔ کوم چه ئے په ابراء سره وکړلو۔ او په دوؤ اقرار ونوکښې اعتبار وُروستنی اقرار له ورکیږی۔ نو په دے وجه سره شاهدان دَ زید بیکاره شو۔ او دَ بکر دعوه په ځائے پاتے شوه۔ په خلاف دَ هغے صورت نه چه زید اووائی "چه اے بکره! تاچه په ما دعوه دَ اقرار کړے ده په ابراء سره" په دے وینا سره دَ زید نوے اقرار نه ثابتیږی (نو دَ بکر دعوه دفعه شوه) دَ دے مسئلے سره شان دا مسئله هم ده۔ چه مثلاً زید په بکر باندے دَ یو کور دعوه کوی چه دا کور ماته دَ خپل پلار نه میراث پاتے شوے دے۔ نو بکر شاهدان وُدروی په دے خبره باندے چه اے زیدا! ستا پلار اقرار کړے وو۔ چه دا کور دَ بکر دے۔ اوزید په دے خبره شاهدان وُدروی۔ چه څما پلار چه ستا دَ پاره اقرار کړے وو۔ دَ هغے وُروستو تا اقرار کړیدے څما دَ پلار دَ پاره په دغه کور سره (یعنے تا ویلی وُو۔ چه دا کور دَ دَه دے) نو اے په دے سره دَ بکر دعوه کیږی اوکه نه؟ نو ښاریږی چه په دے کښ دے هم هغه تفصیل اوشی کوم چه په دے مخکښے مسئله کښی تیر شه۔

## دَ صُلح مسئلے

**مسئله**:- که یوتن دعوه کوله۔ چه دا صُلحه په رضا او په خوشئ شوے ده

اوبل دعوه کوله چه دا په زوراو په جبرشوے ده - نو شاهدان دَ مدعی دَ زور غوره دی - " قنیه په شهادا توکښ "

مسئله :- دَ زید میراث پاتے شوے وو - دَ هغه په میراث کښ یوسړی دَ څه شی دعوه وکړه (چه دا څما دے) اوشاهدان ئے پے وُدرول - بیا دَزید په کوم میراث خورچه شاهدان وُدریدلی شوی وو - هغه نه بلکه دَ زید یو بل میراث خوردَ هغه مدعی سره ددغه شی پۀ حصه بانږ صلحه وکړه - مثلاً مدعی دَ سلوا شرفو دعوه کړے وه اودهٔ ورسره په شلو صلحه وکړه - (چه دا به واخلے اوخپله دعوه به پریږدے) نوکوم وخت چه مدعی دَ دے صُلح بدل اوغوخت (یعنے شل اشرفئ) جو دَ زید میراث خوروڅکښی ه - شاهدان ئے راوستل - او دے وئیل چه زهٔ په دے خبره شاهدان تیروم چه زید تاله سنا دغه حق درکړے وو - او ستا دادعوه بے اصله ده - اودا صلحه نه ده صحیح شوے - نو حکم دادے - چه دا مدعی دَ ادا یئے که غیروی - دَ هغه میراث خورنه چه صلح ئے کړے وه - نو قاضی به ترے دادفعه آوری - اوکه هغه وی نو نه به ئے آوری - " مشتمل الاحکام "

# دَ کانړے مسئلے

مسئله :- که کانړه کړے شوے څیز ضایع شه - اوکانړه ورکونکے او ایخودونکے دَ هغه په قیمت کښ مختلف شو - نو خبره دَ هغه یو معتبره ده - چه دغه څیز ورسره کانړه وو - اوکه دواړو شاهدات وُدرول - نوشاهدان دَ هغه یو غوره دی - چه دغه څیز ئے کانړه ورکړے دے -

مسئله :- که اودئیل هغه چاچه دَ بل نه ئے یوشے کانړه کړے وو - چه ماخپل مال اخستے دے - او تا نه رِم ستا دَ کانړے هغه شے واپس کړے دے - او چاچه په کانړه ورکړے وه - هغه اوو ئیل چه تا مانه نه دے واپس کړے - او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول - نو چاچه دغه شے کانړه ورکړے وو - دَ هغه شاهدان غوره دی -

مسئله :- یوسړی زید ته څه شے کانړه کړے وو - اوس هغه زید ته وائی

چه ماتاته دا فلانے څیز ګانړه وتاراته قبض کړے دے - او حال دا دے - چه
هغه دَ زید په قبضه کښې موجود دے - خوزید دَ دینه انکار کوی - اووائی
چه دا نه - بلکه تا ماته یو بل شے ګانړه کړے دے - نو خبره دَ زید معتبره
دَه - اوکه دواړو شاهدان وُدرول - نو شاهدان هم دَ زید غوره دی - او
چاچه ورته ګانړه کړے دے - دَ هغه شاهدان قبول نه دی - هاں اکه
دَ ګانړے هغه څیز ضایعه شوے وی - نو بیا دَ هغه شاهدان قبول دی
ولے هله که قیمت دَ هغه څیز دو مره وی - چه دَ څومره هغه دعوه کوی
" وجیز "

**مسئله** :- دوه وُتنو دَ یو څیز دَ ګانړه کولو او دَ قبض کولو دعوه وکړه
رینے هر یو وئیل - چه فلانے څیز ما دَ فلانی نه ګانړه کړے دے - او قبض
کړے دے -) او هر یو شاهدان وُدرول - نوکه دغه څیز دُګانړه ورکونکی په
قبضه کښې وی - نو په دے دواړو مدعیانوکښې به دَ یو دَ پاره هم حکم نه کیږی
اودا جوړه دَ قیاس تقاضا ده - اوکه دواړو تاریخ خولے وی - او تاریخ دَ یو وړومبے
وی - نو وړومبی تاریخ والا غوره دے - اوکه دغه څیز په دے دواړوکښې دَ یو تن
په قبضه کښې وی - نو خاوند دَ قبضے غوره دے - لکن که هغه بل په دَ خبره
شاهدان وُدرول - چه څما تاریخ دَ ګانړے ترے وړومبے دے - نو بیا وړومبی
تاریخ والا غوره دے - " فصولین په دویم فصل کښې "

**مسئله** :- که مختلف شو ګانړه ورکونکے او اخستونکے - نو ورکونکی اووئیل
چه هغه څیز چه ما تاته ګانړه کړے وو - ستا په لاس کښې ضایعه شوے دے
او آخستونکی اووئیل چه داسے نه ده - بلکه هغه ستا په لاس کښې ضایعه شوے
دے - پس دَ هغے نه چه هغه ماتاته دَ ګانړے په سبب قبض کړے وو - نو خبره
دَ ګانړه ورکونکی غوره ده - او شاهدان هم دَ ده غوره دی - اوکه په ګانړه
اخستونکی اووئیل - چه هغه ستا په لاس کښې ضایعه شوے دے - په داسے
حال کښې چه مالا ستاته دَ ګانړے په سبب نه وو قبض کړے - نو خبره دَ
ګانړه اخستونکی غوره ده - اوکه شاهدان وی - نو شاهدان دَ ګانړه ورکونکی
غوره دی - " تتمه الفتاوی "

**مسئله** :- زید ګانړه کړے وو دَ بکر نه څه شے - نو اوس وائی چه دغه

شے دَ کانړے ضایع شوے دے۔ دَ بکر ځخه په داسے حال کښ چه مال نه دے قبض کړے۔ (او بکر وائی چه هغه دَ زید ځخه ضایع شوے دے پس دَ قبض کولو نه) نو خبره دَ زید معتبره ده۔ اوکه شاهدان وی نو شاهدان دَ بکر غوره دی۔

**مسئله** :۔ زید وئیل بکر ته چه تا ما ته دا دواړه توکی کانړه کړی دی۔ او ما درنه قبض کړی دی۔ او بکر ورته وئیل چه ما درته دَ دے دواړو نه صرف یو کانړه کړیں ے نو دا بل به دا کوے۔ نو خبره دَ بکر غوره دے۔ اوکه شاهدان وی۔ نو شاهدان دَ زید غوره دی۔

**مسئله** :۔ زید کانړه کړے وو بکر ته یو مرئے په ذر روپئی۔ نو دغه مرئے دَ بکر ځخه په یوه ستوکه روند شه۔ نو اوس زید وائی۔ چه کومه وُدرنه دا مرئے چه ما تا ته کانړه کاوو۔ دَ دهٔ قیمت ذر روپئی وو۔ نو دَ روند والی په سبب پنځه سوه روپئی شه۔ بیځے نیمه قرضه خلاصه شوه۔ او بکر وائی چه کومه وُدرنه دا مرئے تا ما ته کانړه کاوو۔ ددهٔ قیمت پنځه سوه روپئی وو۔ نو دَ روند والی په وجه دوه نیم سوه لاړے۔ بیځے څلورمه حصه دَ قرضے خلاصه شوه۔ نو خبره دَ زید معتبره ده۔ سره دَ قسم نه۔ ځکه چه ظاهره داده چه بکر به په زرو روپو کښ نه وی کانړه کړے۔ مګر هغه شے چه دَ زرو روپو سره برابر وی۔ یا ترے زیات وی۔ اوکه شاهدان وی۔ نو شاهدان هم دَ زید غوره دی "قاضیخان۔

**مسئله** :۔ که زید شاهدان وُدرول په دے خبره چه اے بکره! ما چه تا ته فلانے شے کانړه کاوو۔ نو دا بښه او بے عیبه وو۔ او قیمت ئے لس روپئی وو۔ بکر شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا تا ما ته کانړه کړے دے۔ عیب ژن او قیمت ئے پنځه روپئی وو۔ نو شاهدان دَ زید غوره دی۔" قنیه په باب دَ دوؤ مختلف شهادتونو کښ۔

**مسئله** :۔ دوؤ تنو دعوه وکړه دَ یو داسے ځیز چه هغه دَ یو دریم سړی په قبضه کښ وو۔ نو یو مدعی شاهدان وُدرول په دے خبره۔ چه دغه ځیز ما په بیعه اخستے دے دَ زید نه۔ او هغه بل مدعی شاهدان وُدرول په دے خبره۔ چه دغه ځیز ما کانړه کړے دے دَ زید نه۔ او دواړو تاریخ ونه خوو۔ یا دواړو یو تاریخ وخوو۔ نو شاهدان دَ بیع غوره دی۔ اوکه یو تاریخ وخوو۔ او هغه بل ونه خوو

نوخاوند دَ تاریخ غوره دے۔ اوکه دواړو تاریخ وخوو۔ او تاریخ دَ یو وړو مبے وو۔ نو وړو مبے تاریخ واله غوره دے۔ اوکه دغه څیز دَ دوے په دے دواړو مدعیا نو کښې دَ یوتن په قبضه کښې وو۔ نوهغه غوره دے۔ مګرکه تاریخ دَ هغه بل چه دغه څیزئے په قبضه کښې نه وو۔ وړومبے وو۔ نو بیا هغه مدعی بے قبضے غوره دے۔" انتهٰی فصل دَ فصولین۔"

**مسئله:**۔ که خاوند دَ قبضے شاهدان ګُدرول په دے خبره چه ما دا کوره په زیږ بانڊے دَ وړومبئے خورپه میاشت کښې په زرروپئی خرڅ کړے دے۔ او زیږ شاهدان ګُدرول په دے خبره چه دا کورما دده نه دَ دریمے خور په میاشت کښې په پنځه سوه روپئی کښې کانره کړے دے۔ نو په نزد دَ شیخینو رح شاهدان دَ بیعے غوره دی۔ او امام محمّد صاحب رح وائی چه شاهدان دَ کانړے غوره دی۔ " دره البحار والمجمع "

## مسئلے دَ مزارعت[1]

(یعنے بل له زمکه ورکول په خاصه برخه سره)

**مسئله:**۔ یو سړی بل له زمکه او تخم په برخه خوری سره په جائزه طریقه ورکړے وو۔ نو کارکونکی کروندہ وکړه۔ فصل وشه۔ او س کارکونکے مالک دَ زمکے ته وائی چه تا ماله دَ دے زمکے دَ پیداوار نیمه مقرر کړے وه۔ او مالک دَ زمکے وائی۔ چه دا ما تاله دریمه ورکړے وه۔ (یعنے تا له رم دَ پیداوار دریمه حصه مقرر کړے وه۔) نو خبره دَ مالک دَ زمکے معتبره ده۔ سره دَ قسم نه۔ ځکه چه دے منکر دے دَ زیاتوالی دَ اجرت نه۔ (او منکر له قسم دی) او څوک امامان صاحبانو وائی۔ چه دوئی دواړه په قسمونه کوی ځکه مدعی او مدعیٰ علیه دواړو له چه قسم ورکیدے شی۔ دَ هغے فائده داوی۔ چه کومه معامله ئے کړے وی۔ هغه وړانه کړے شی۔ او دلته چه کار تمام شوے دے کروندہ شوے او فصل پیدا شوے دے۔ اوس دَ برخه خورئ دَ دے معاملے وړانول ممکن نه دی۔ (نوځکه به دواړه قسم نه کوی۔) او په دے دواړو کښې کوم یو چه شاهدان ګُدرول په خپله دعوه بانڈے۔ هغه قبول دی۔ او که دواړو شاهدان

[1] دَ مزارعت دَ پاره اوګوره دَ دوییم کتاب حاشیه په شروع دَ مزارعت کښې ۱۲ مترجم

ودرول - په خپله خپله دعوه باندے - نو شاهدان دَ کار کونکی غوره دی - ځکه چه دوئ ثابتوی زیاتوالے دَ اجرت - اوکه چرے دَ دوی دا اختلاف دَ کرونددے نه ممکنیں وو نو بیا به دواړه قسم کوی - او پس دَ قسمونو نه به دا معامله دَ دوی په منځکښ وړانه کړے شي - اوکه یو شاهدان وُدرول په خپله دعوه باندے - نو هغه قبول دی - او که دواړو شاهدان وُدرول په خپله خپله دعوه باندے - نو شاهدان دَ کارندغوره دی - اوکه تخم د کارنده وو - او فصل شوے وو - او دوئ دواړه په دَ طریقه مختلف شو - نو خبره دَ کارنده غوره ده سره دَ قسم نه - او دواړه به نه کوی قسم یو تربله - او کوم یو چه شاهدان وُدرول په خپله خپله دعوه باندے - هغه به قبول شي - اوکه دواړو وُدرول شاهدان په خپله خپله دعوه باندے - نو حکم به کیږی په شاهدان دَ هغه سره چه تخم ئے نه دے ورکړے - (یعنے شاهدان دَ زمکے دَ خاوند غوره دی) اوکه چرے دا اختلاف دَ کروندے نه مخکښ وو - نو بیا به دواړه یو تربله قسم کوی - او پس دَ قسم نه به دا معامله دَ برخه خورئ وړانه کړی

**مسئله**:- یو سړی خپله زمکه بل له په برخه خورئ ورکړے وه - ورته ئے وئیلی وو - چه دا ته په خپلو غوایانو او په خپل تخم وکره - او دَ دے زمکے حاصل به دَ دواړو نیم نیم وی - نو چه فصل وشو - خاوند دَ تخم او ئیل - چه ما تاله دَ دے زمکے دَ حاصل شل پیمانے مقرر کړے وے - او هغه اووبیل چه نه - بلکه تا ماله نیمایه حاصل مقرر کړے وو - نو خبره دَ خاوند دَ تخم معتبره ده - اوکه شاهدان وی - نو شاهدان دَ هغه بل غوره دی - اوکه دَ کروندے وُرستو دَ زمکے نه ثمر پیدا او اوُنه شه - اوخاوند دَ تخم اووئیل چه ما تاله نیمایه حاصل مقرر کړے وو او خاوند دَ زمکے اووئیل چه تا ماله شل پیمانے مقرر کړے وے دَ حاصل نه - نو ماله به دَ زمکے اجرت راکوے - نو خبره دَ کارنده معتبره ده - ځکه چه خاوند دَ زمکے په ده باندے دعوه دَ اجرت کوی - او دے منکر دے - اوکه دواړو شاهدان اُودرول - نو شاهدان هم دَ کارنده غوره دی - "قاضیخان"

**مسئله**:- که دواړه مختلف شو په جایزوالی دَ معاملے دَ برخه خورئ کښ په فاسد والی کښ - نو یو دعوه کوله چه ما تاله دَ زمکے دَ حاصل نه مثلاً دریمه حصه مقرر کړے وه (نو دا معامله جایزه ده) او هغه بل وئیل - چه نه تا ماله مثلاً شل پیمانے مقرر کړے وے (نو دا معامله فاسده ده - او ماله به اجرت راکوے )

نوکه دا اختلاف پخوا دَ کرونډ ے نه وو۔ نوخبره دَ هغه یو معتبره ده۔ چه دعوه دَ فاسد والی کوی۔ اوکه وروستو دَ کروند ے نه وو۔ نو خبره دَ هغه یو معتبره ده۔ چه خاوند دَ تخم دے۔ که دعوه دَ فاسد والی کوی۔ اوکه دَ جایز والی۔ اوکه دواړو شاهدان وړاندی کړل نو شاهدان دَ هغه یو چه دعوه دَ جایز والی کوی۔ غوره دی۔ په دواړو حالتونو کښ۔ (یعنے پخوا دَ کروند ے نه وی اوکه وروستو وی۔)

**مسئله** :- که تخم دَ خاوند دَ زمکے وو۔ او چاله چه ئے زمکه په مزارعت ورکړے وه۔ هغه نه ئے اووئیل۔ چه ما تاله دَ پیداوار نیمه حصه او شل پیمانے زیاتے مقرر کړے وے۔ او مزارع (یعنے کارکونکی) اووئیل۔ چه نه بلکه تا ماله صرف نیمه حصه دَ پیداوار مقرر کړے وه۔ نو خبره دَ مزارع معتبره ده۔ اوکه شاهدان وی۔ نو شاهدان دَ خاوند دَ زمکے غوره دی۔ برابره خبره ده۔ چه دَ دواړو دا اختلاف پخوا دَ کروند ے نه وی۔ اوکه وروستو وی۔" وجیز"

**مسئله** :- که یو سړی دعوه وکړه دَ یوے داسے زمکے چه په هغے کښ فصل ولاړ وو۔ چه دا څما دی۔ او شاهدان ئے تیر کړه۔ او قاضی ورله حکم وکړه۔ چه دغه زمکه او فصل دواړه ستا شو۔ بیا مدعا علیه دعوه وکړه چه دغه فصل ئے څما دے۔ او شاهدان ئے وړاندے کړل په دے خبره چه دا فصل ما په خپل تخم کړلے دے۔ نو دا شاهدان قبول دی۔ اوکه یو سړی دعوه وکړه دَ یوے داسے زمکے چه په هغے کښ زمکے ولاړے وے۔" چه دا څما دی" او شاهدان ئے تیر کړل۔ او قاضی ورله حکم وکړه۔ بیا مدعا علیه شاهدان وړاندی کړل۔" چه دا ونے پکښ ما نالے کړی دی" او حال دا دے چه دَ مدعی شاهدانو شاهدی کړے وه۔ نو صرف دَ زمکے شاهدی ئے کړے وه۔ (چه دا زمکه دَ دے مدعی ده) او دَ ونو شاهدی ئے ورله نه وه کړے۔ نو دَ مدعا علیه دا دعوه به واورید ے شی۔ اوکه دَ مدعی شاهدانو شاهدی کړی وی۔ دَ زمکے او هم دَ ونو نالولو۔ نو بیا به قاضی دَ مدعا علیه دا دعوه نه آوری۔" جامع الفصولین په دعاوی کښ"

# مسئلے دَ مُضاربت[1]

(دَ نیم سودے)

**مسئله :-** یو سړی بل له څه روپئ ورکړے وے۔ اوس خاوند دَ روپو ورته وائي۔ چه هغه روپئ ما تاله قرض ورکړے وے۔ او دابل وائي۔ چه هغه تا ماله په طور دَ مضاربت راکړے وے۔ (یعنے تا راته وئیلی وو۔ چه تجارت پرے کوه۔ او نفعه به ځما ستا نیمه نیمه وی مثلاً) نو خبره ددے بل معتبره ده ځکه چه خاوند دَ روپو پرے دَ ضامن والي دعوه کوی۔ او دوئ دواړه دا خبره منی۔ چه دغه روپئ دَ خاوند دَ روپو په رضا او په اجازت اخستے شوی دی۔ (نو گویا خاوند دَ روپو ورته وائي۔ چه تا قرض اخستے وے۔ که ضایع شوے۔ نو ته ئے ضامن ئے۔ او دابل وائي چه قرض نه وے۔ نو زهٔ ضامن نه یم۔) او که دواړو شاهدان وُړاندے کړل۔ نو شاهدان دَ خاوند دَ روپو غوره دی۔ دا رنگ وئیلی دی۔ په قاضیخان کتاب کښې۔ او په وجیز کتاب کښې وئیلی دی چه خاوند دَ روپو که اووئیل۔ چه هغه روپئ ما تاله قرض درکړے وے۔ او روپئ آخستونکی اووئیل۔ چه هغه دِ ماله په طور دَ نیم سودا راکړے وے۔ او حال

---

[1] زهٔ کوم دا خبره چه مضاربت نیم سودے ته وئیلے شي۔ یعنے دے ته چه نه چاله دَ تجارت دَ پاره روپئ ورکړے او ورته اُوائي۔ چه ته په دے روپو تجارت کوه۔ هره څه منافعه چه وُشی۔ هغه به زهٔ او ته سره ویشو خو ددے دَ پاره یو څو شرطونه دی۔ که دا شرطونه موجود نه وو۔ نو دا معامله ناجایزه او فاسده ده یو شرط دادے چه څومره روپئ ورکول غواړے هغه ورته وخایه او وړاندے کړه۔ که هغه ته دِ حواله نه کړے نو دا معامله فاسده ده۔ دوئیم شرط دادے چه دَ منافعے دَ ویشلو خبره صافه کړئ چه ستا به څومره وی او ځما به څومره۔ که صرف دا مو اووئیل چه منافعه به ویشو۔ او خبره مو صافه نه کړه نو دا معامله فاسده ده۔ دریم شرط دادے چه دَ منافع ویش په دے طریقه مه مقرره وئ چه لس روپئ به ترے ځمائي باقی ستا یا لس روپئ به ترے ستاوی باقی ځما۔ دَ منافعے نه څه خاص رقم مه مقرره وئ۔ بلکه په دے طریقه مقرر کړئ چه دَ منافعے نیمه به دَ یو وی او نیمه دَ بل۔ یا یوه حصه دَ یو او دوه حصے دَ بل۔ یا یوه حصه دَ یو او درے دَ بل مثلاً۔ او که دَ منافعے خاص رقم مقرر کړے شه نو بیا دا معامله فاسده ده۔ دا ځکه که خبره دا سے طے شوه۔ چه په تجارت کښې که نفعه وُنشوه نو هم به زهٔ تاله دَ اصلی رقم نه دومره درکوم۔ نو دا فاسده ده۔ او دا ځکه که دِ اووئیل چه په تجارت کښې که نقصان مند شوے نو نقصان به تا دے۔ نو دا هم فاسده ده۔ دَ مضاربت حکم دادے۔ چه دا معامله که په صحیح طریقه شوی وی۔ نو په منافعه کښې دواړه شریک دی۔ چه څرنگ ئے طے کړی وی۔ نفع دِ او ویشی۔ او که نفع وُنشوه یا نقصان وُشه۔ نو کارکونکی ته به هیڅ نه ملاویږی۔ او زیان پرے هم نشته۔ او که دا معامله دَ څه شرط دَ وجے فاسده شوی وی۔ بیا کارکونکے په نفع کښې شریک نه دے۔ بلکه مناسبه تنخواه۔ یعنے مزدوری به ورته ملاویږی دَ یو نوکر په حیثیت که نفع شوی وی او که نه وی شوی لیکن که مناسبه مزدوری زیاته کیږی او کومه نفع چه مقرر کړے وه هغه کمه وه۔ نو بیا به ورله مقرره نفع ورکیدے شی۔ نه مزدوری۔ ۱۲ مترجم

داوو - چه دهٔ پسے تجارت شروع کړے وو - نو خبره دَ خاوند دَ روپو معتبره ده - او شاهدان هم دَدهٔ غوره دی - او روپئ اخستونکے ضامن دے - (ځکه چه دغه روپئ قرض وے -) اوکه روپئ اخستونکی په دغه روپو کښ لاڅه تصرّف نه وو کړے نو بیا خبره دَدهٔ معتبره ده - یعنے دَ روپو آخستونکی - او په دهٔ تاوان[۱] نشته -

**مسئله** :- که خاوند دَ روپو او هغه کارنده چه روپئ ئے په طریقه دَ نیم سوده آخستے وی - مختلف شو - په هغه اندازه دَ منافع کښ چه مقرر کړے شوے وه دَ پاره دَ کارنده - (مثلاً خاوند دَ روپو او وئیل چه ما درله دَ منافع دریمه حصه مقرر کړے وه - او کارنده وئیل چه تا ماله نیمه مقرر کړے وه) نو خبره دَ خاوند دَ روپو معتبره ده - سره دَ قسم نه - اوکه دواړو شاهدان وړول - نو شاهدان دَ کارنده غوره دی

**مسئله** :- که خاوند دَ روپو او وئیل - هغه کارنده ته چه روپئ ئے ورله په طریقه دَ نیم سوده ورکړے وے - چه ما تاته وئیلی وو - چه خاص دَ طعام تجارت کوه - او کارنده او وئیل - چه تا ماته دَ خاص تجارت نه وو وئیلی - نو حکم داد ے چه دَ دواړو دا اختلاف که دَ تصرف کولو نه مینه وو - (یعنے کارنده لا په دغه روپو کښ څه تصرف نه وو کړے - او دواړه په دے طریقه مختلف شول -) نو دَ کارنده خبره معتبره نه ده په عام والی دَ تجارت کښ - (بلکه خاص دَ طعام تجارت به کوی) اوکه دا اختلاف پس دَ تصرف نه راغے (یعنے کارنده په دغه روپو تجارت شروع کړے وو - پس دَ هغے نه دَ دواړو دا اختلاف راغے) نو خبره دَ کارنده معتبره ده - اوکه شاهدان وی - نو شاهدان دَ روپو دَ خاوند[۲] غوره دی - او که دَ دواړو په دے خبره اتفاق وو - چه موږ خاص تجارت (مثلاً دَ غلے کړے وو - خو مختلف شو په جنس دَ تجارت کښ (مثلاً خاوند[۳] دَ روپو

---

[۱] چا چه دَ بل نه دَ نیم سوده په طریقه روپئ اخستے دی - او بیا دغه روپئ نقصان شی - نو روپئ دَ خاوند دَ روپو ضایع شوے - او په اخستونکی تاوان نشته ۱۲ مترجم

[۲] که کارنده وئیل چه تا ماته په فلانی تاریخ په عامه طریقه وئیلی وو - چه تجارت کوه - او خاص قسم دِ نه وو خولے - او خاوند دَ روپو او وئیل چه ما تاته په فلانی تاریخ دَ خاص تجارت وئیلی وو - او حال داوی چه تاریخ دَ روپو دَ خاوند وروستو وی - نو بیا شاهدان دَ کارنده غوره دی - اوکه تاریخ دواړو نه وی ذکر کړے - یا تاریخ دَ دواړو یو وی - یا یو تاریخ ذکر کړے وی او بل نه وی ذکر کړے - نو بیا شاهدان دَ خاوند دَ روپو غوره دی - دا رنگ وئیلی شوی دی په هندیه کښ - مترجم

[۳] دا دلیل من کور دی په شپږم جلد دَ بدائع الصنائع کښ ۱۲ مترجم

ویُل۔ چه مادرنه خاص دَ غنمو تجارت وئیلے وو۔ او کارندهٔ وئیل۔ چه تا ماته غنم نه وو
خاص کړی) نو خبره دَ خاوند دَ روپو معتبره ده۔ او شاهدان دَ کارنده غوره دی۔

**مسئله**:۔ که او وئیل هغه کارندهٔ چه روپئی ئے اخستے وے۔ په طریقهٔ دَ نیم سوده
چه تا ماته وئیلی وو۔ نقد او نسیه دواړه کوه۔ او خاوند دَ روپو او وئیل۔ چه ما تاته دَ
نقد دَ معاملے کولو وئیلی دی۔ نو خبره دَ کارنده معتبره ده۔ او که شاهدان
وی۔ نو شاهدان دَ هغه یوه غوره دی۔ چه دَ خاص دعوه کوی (یعنے دَ خاوند دَ روپو)

**مسئله**:۔ که خاوند دَ روپو او کارنده او وپیشله منافعه دَ نیم سودے
بیا دَ دواړو اختلاف راغے۔ نو کارنده او وئیل چه مونږه منافعه وپیشلے ده۔
پس دَ هغے نه چه تا خپلے اصلی روپئی آخستے وے۔ او خاوند دَ روپو انکار کاوو۔ چه
ما خپلے اصلی روپئی نه دی آخستی۔ نو خبره[1] دَ خاوند دَ روپو غوره ده۔ او که
شاهدان وی۔ نو شاهدان دَ کارنده غوره دی۔

**مسئله**:۔ که خاوند دَ روپو او وئیل هغه کارنده ته چه هغه له روپئی په
طریقهٔ دَ نیم سوده ورکړے وے۔ چه ما تاله دَ منافعے دریمه حصه مقرر کړے وه
لیکن لس روپئے ترے کمے (نو دا معامله فاسده شوے ده۔ چو تاله به
مناسب مزدوری درکوم) او کارنده او وئیل۔ چه تا ماله دَ منافعے پوره دریمه
حصه مقرر کړے وه۔ (نو دا معامله صحیح ده۔ او ماله به دریمه حصه راکوے)
نو خبره دَ خاوند دَ روپو معتبره ده)۔ اگر که په دے کښ دَ معاملے فاسدولے
دے۔ (ولے خبره ئے معتبره ده) ځکه چه دے اِنکار کوی دَ هغه زیاتوالی نه
دَ کوم چه کارنده دعوه کوی۔ (یعنے لس روپئی) او که شاهدان وی۔ نو
شاهدان دَ کارنده غوره دی۔ ځکه چه دی ثابتوی زیاتوالے۔

**مسئله**:۔ که خاوند دَ روپو او وئیل هغه کارنده ته چه روپئی ئے ورله ورکړے

---

[1] او که شاهدان نه وی نو دواړه به قسم کوی۔ خاوند دَ روپو به دے خبره چه ما خپلے اصلی روپئی نه دی آخستے
او کارنده به دے خبره چه ما دغه اصلی روپئی نه دی ضایع کړی۔ نو چه اصلی زر روپئی وے۔ او نفعه هم زر روپئی
شوے ده۔ دوئ دواړو نیمه کړے وه نو مونږ به دا وایو چه کومے پنځه سوه روپئی چه دے خاوند دَ روپو اخستے دی
نو دا دَ هغه اصلی روپو نه حساب شوے۔ او پنځه سوه چه کارنده اخستے دی۔ هغه هم دَ اصلی روپو نه حساب
شوے۔ نو هغه به ترے ورکړو خاوند دَ روپو ته او دا به اووایو چه زر روپئی نفعه چه شوے ده هغه هلاک شوینه
او کارندهٔ دَ نورو پنځو سوو ضامن نه دے ځکه چه ده نه دی ضایع کړی۔ دغه شان ذکر دی په هندیه کښ ۱۲ مترجم

وے ۔ په طریقه دَ نیم سوده ۔ چه ما تا سره نیمه حصه دَ منافع کړے ده ۔ او کارنده او وئیل چه تا ماله سل روپئ مقرر کړے وے ۔ یا ئے او وئیل ۔ چه تا ماله هیڅ نه وو مقرر کړی ۔ نو ماله په مناسب مزدوری راکوے ۔ نو خبره دَ خاوند دَ روپو معتبره ده ۔ ځکه چه کارنده دعوه کوی ۔ چه ځما دَده په ذمه مزدوری ده ۔ او دے انکار کوی ۔ اوکه دواړه په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول ۔ نو شاهدان دَ کارنده غوره دی ۔ ځکه چه دوی ثابتوی اجرت په ذمه دَ روپو دَ خاوند بانرے دَ پاره دَ کارنده

**مسئله** :۔ که او وئیل هغه کارنده چه آخستے ئے وے دَ بل نه روپئ ۔ چه تا ماله دغه روپئ قرض راکړے وے ۔ او خاوند دَ روپو او وئیل چه ما په طریقه دَ نیم سوده درکړے وے ۔ او یا ئے ورته او وئیل چه په طریقه دَ بضاعت (یعنے په طور دَ مد۱۱[1]) درکړے وے ۔ نو خبره دَ خاوند دَ روپو معتبره ده ۔ اوکه دواړو شاهدان وُدرول نو شاهدان دَ کارنده غوره دی ۔'' قاضیخان په مضاربت کښ ''

**مسئله** :۔ که مختلف شو خاوند دَ روپو او هغه کارنده چه روپئ ورله ورکړے وے په طریقه دَ نیم سوده ۔ نو کارنده او وئیل چه کوم وخت مونږ منافعه او ویشله ۔ ما تا ته ستا اصلی روپئ واپس کړے (یعنے راس المال) او خاوند دَ روپو انکار وکړو ۔ چه تا نه دی واپس کړی ۔ نو خبره دَ خاوند دَ روپو معتبره ده ۔ اوکه خاوند دَ روپو په دے خبره شاهدان وُدرول ۔ چه دے کارنده اقرار کړے دے ۔ وئیلی ئے دی ۔ چه ما خاوند دَ روپو ته هغه اصلی رقم نه دے واپس کړے ۔ او کارنده شاهدان وُدرول په دے خبره چه دے خاوند دَ روپو اقرار کړے دے ۔ وئیلی ئے دی ۔ چه ده ماته ځما اصلی رقم واپس کړیں دے نو دَ دے مسئلے ډیر صورتونه دی ۔ که دواړو تاریخ دَ اقرار خولے وی ۔ او دَ یو تاریخ وړومبے وی دَ بل نه ۔ نو دَ اخیری تاریخ والا دَ پاره به حکم کیږی ۔ اوکه دواړو یو تاریخ خولے وی ۔ یا دواړو تاریخ نه وی خولے ۔ نو حکم به کیږی په شاهدانو دَ کارنده سره (یعنے شاهدان دَ کارنده غوره دی) ۔'' قاضیخان په دعوے دَ منقول کښ ''

---

[1] دَ کارنده مطلب دا دے چه دا روپئ دِ ماله قرض راکړے وے ۔ نو منافعه ئے ټوله ځما ده ۔ او خاوند دَ روپو ورته وائی چه نا ۔ دا م دَ نیم سودے دَ پاره درکړے وے ۔ نو چه کومه حصه دَ منافعه م درسره کړے ده ۔ ته به هغه اخلے ۔ باقی منافعه به ځما ده ۔ یا ورته خاوند دَ روپو وائی چه دغه روپئ درله ما په دے طریقه دَ بضاعت درکړے وے ۔ یعنے ما درته ویل وو چه ځما دَ پاره پرے تجارت کوه پر ما به دے احسان وی ۔ نو منافعه ئے ټوله ځما ده ۔ ستا په کښ یو پیسه هم نه رسی ۔ ستا صرف په ما مدادا او احسان دے ۔ ۱۲ مترجم

[2] که یو تاریخ خولے وی ۔ او بل نه وی خولے ۔ او معلومه نه وی چه کوم اقرار وړومبے دے ۔ نو بیا هم شاهدان دَ کارنده غوره دی ۔ لکه چه په هندیه کښ دی ۔ ۲ مترجم ۔

✲ ✲ ✲ ✲ ✲

# دَ شرکت مسئلے

**مسئله** :- کوم دوه تنو چه شرکت مفاوضه کړے وی - که په هغے کښې يو تن نورو دوو تنو ته حکم وکړ۔ چه تاسو څمونږ دَ پاره يو مرئے په بيعه واخلئ - او دَ مرئي قسم او قيمت ئے ورته وخوو - او دے وکيلانو ورله هغه شان يو مرئے واخست - او دغه دواړه شريکان جدا شوی وو - دَ شرکت نه - نو کوم شريک چه دَ مرئي دَ اخستلو حکم کړے وو - هغه اووئيل چه دے وکيلانو دا مرئے پس دَ هغے نه په بيعه آخستے دے چه مونږ دَ شرکت نه جدا شوی وو - نو دا مرئے يواځے څما دے - او هغه بل شريک وئيل چه دوئ دا مرئے په دا سے حال کښې آخستے - چه څمونږ شرکت لا په ځائ وو - نو دا مرئے څمونږ دَ دواړو شريک دے - نو حکم دا دے چه کوم شريک دَ دغه مرئي دَ آخستلو حکم کړے وو - دَ هغه وينا معتبره ده (سره دَ قسم نه) او که دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول - نو شاهدان دَ

---

سلو داځائے دَ شراکت نه مراد دا دے - چه دوه تنه په مال کښې په دے طريقه شراکت وکړی - چه په اصل او نفعه کښې دواړه شريک وی - دَ شرکت ډير قسمونه دی - ليکن داځائے صرف دوه قسمه ذکر دی - دَ دے وجے نه زه هم دَ دے دواړو په بيان صبر کوم :-

شرکت مفاوضه دے ته وئيلے شی - چه دوه آزاد بالغ هوښيار مسلمانان يا ذميان دَ يو بل سره په خپل ټول نقد مال کښې شراکت وکړی - او دَ شراکت په مال او په تصرف او په نفعه کښې برابر وی - او هر يو دَ بل وکيل هم وی - او ضامن هم وی - نو په دے کښې هر يو تن هر شے چه په بيعه واخستنه - سوا دَ يال بچ دَ خوراک او دَ جامے وغيره نه - نو هغه به دَ دواړو شريک وی او په کوم مال کښې چه شراکت جائز دے - دَ دا سے مال په بدله کښې که په يو څه قرضه راغله - نو هغه بل ئے ضامن دے خاوند دَ قرضے ئے دَ هغه نه غوښتلے شی - او که په دے کښې يو تن ته دَ چانه په ميراث کښې دا سے قسم مال پلتے شه چه شراکت پکښې جائز دے يا ورته چا ادبخلو - او ده ترے قبضه کړلو - نو شراکت مفاوضه وران شه - او شراکت عنان ذکر زيږه - په شرکت مفاوضه کښې دا ضروری ده چه په روپو سره وی - يا په اشرفو سره يا په رواجي پيسو سره - او شرکت عنان دے ته وائي - چه دوه تنه دَ يو خاص يا دَ عام تجارت دَ پاره څه روپئ يو ځائ کړی - او نفع مقرر کړی - خو په دے کښې دَ روپو او دَ نفع برابر والے ضروری نه دے - که دَ يو شل روپئ وی او دَ بل لس - يا دَ يو جانبه روپئ وی او دَ بل جانبه اشرفئ - نو هم خير دے - او که روپئ دَ دواړو برابرے - خو نفع ئے کمه زياته مقرر کړه - نو هم خير دے - خو په مفاوضه او په عنان دواړو کښې ضروری ده - چه خاص مقدار دَ نفع دے نه مقرره وی - نو که يو تن له دَ نفع نه پنځه روپئ مقرر کړے شوے - مثلاً نو دا شرکت فاسد دے -

او په شرکت عنان کښې هر يو دَ بل وکيل وی - ليکن ضامن نه وی - نو که يو شريک دَ ذيد څه شے په بيعه واخستو - نو ذيد به خاص دَ هغه نه قيمت غواړی - دَ دے بل نه نه شی غوښتلے - خو دومره ده چه هغه ورله قيمت ورکوی - نو هغه به نيم قيمت اخلی - دَ ده نه دَ شرکت مسئلے ډيرے دی - لکن دلته دَ زيات تفصيل ګنجائش نشته - ۱۲ مترجم -

هغه بل شریك غوره دی. (او په دے بابت کښې دَ دغه وکیلانو شاهدی معتبره نه ده.
ځکه چه دا شاهدی کول دی. دَ خپل ځان په بوګا دَ بانړے. او دا معتبره نه ده.)
او که حکم کوَلکی شریك ريعنی کوم شریك چه دَ دغه مرئی دَ اخستلو حکم کړے وو. هغه)
او وئیل. چه دا مریئے دے وکیلانو په دا سے حال کښې په دا سے حال کښې په بیعه
اخستے دے. چه څمونږ شرکت لا په خپل حال وو. او هغه بل او وئیل. چه دا مریئے
دوی دَ شرکت دَ ورانیدو نه وروستو اخستے دے. نو خبره دَ هغه بل معتبره ده
او که شاهدان وی نو شاهدان دَ حکم کونکی غوره دی. او که دا قسم اختلاف
په شرکت عنان کښې وو. نو هم دغه حکم دے. چه تیر شه.

**مسئله** :- یو سړی په بل باندے دعوه وکړه. چه دَ زه شریک کړے یم
په مال کښې. او مدعا علیه دَ دے نه انکار وکړو. او مال هم دَ مدعا علیه په
لاس کښې وو. نو مدعی شاهدان وُدرول. شاهدانوئے په دے خبره شاهدی
وکړه " چه دوی دواړه شریك دی. په مفاوضه سره. او کوم مال چه دَ دے
مدعا علیه په لاس کښې دے. دا دَ دے شرکت نه دے " بیائے او وئیل " چه
دا مال دَ دواړو نیم دے " یائے دا سے او نه وئیل. خو شاهدی ئے وکړه
په دے خبره " چه دوی دواړه شریك دی په شرکت مفاوضه سره " نو حکم به
کوی. قاضی په دغه نیم مال سره دَ پاره دَ مدعی. هرچه دے. په صورت کښې
چه شاهدانو شاهدی کړی وی. چه دوی دواړه شریک دی په شراکت مفاوضه
سره. او دا مال دَ دواړو نیم نیم دے. بیائے شاهدی کړی وی. چه دا مال دے
دَ دواړو دَ شرکت نه. نو ظاهره خبره داده. چه مفاوضه تقاضا کوی دَ برابروالی
په مال کښې. (نو دَ دے وجے نه مونږ او وئیل چه قاضی به حکم کوی په نیمولو
دَ هغه مال سره چه دَ مدعا علیه په لاس کښې دے.) او هرچه دے په هغه صورت
کښې چه شاهدانو شاهدی کړی وی. په دے خبره چه دوی دواړه شریك دی
په شرکت مفاوضه سره. او دَ دے نه ئے نور څه زیات نه وی وئیلی. نو امام
شمس الائمه سرخسی صاحب وائی. چه دا شاهدی او مختلفے شاهدی دواړه په حکم
کښې یو شان دی. قاضی به حکم کوی. چه دغه نیم مال دَ مدعی شه. او نیم دَ
مدعا علیه. ځکه چه شاهدانو او وئیل. چه دوی شریک دی په مفاوضے سره. او
خلاصه مطلب دَ مفاوضے برابر والے دے په مال دَ شرکت کښې. او بیا دا خبره

زده کړه چه) کوم وخت چه قاضي حکم وکړ۔ چه کوم مال دَ مدعا علیه په قبضه کښې دَے دَ دواړو نیم نیم دے۔ که پس دَ دے حکم نه مدعا علیه په دے خبره شاهدان ودړول چه دا مال خو ماته دَ خپل فلاني نسبي نه میراث پاتے شوے دے۔ یا ماته بل چا هبه کړے۔ (یعنے بخلے دے) یا ماته بل چا صدقه کړے (یعنے خیراتي ئې راکړے دے) او هبه کونکے او صدقه کونکے ئې داسے سړے وخوړ۔ چه غیر وو دَ مدعي نه۔ نو اوس به کورو۔ که دړومبیه دَ مدعي هغه شاهدانو شاهدي داسے کړے وه۔ چه دوئ دواړه شریک دي په مفاوضه سره۔ او کوم مال چه دَ مدعا علیه په قبضه کښې دے۔ دا دَ شرکت دے۔ یائې داسے شاهدي کړے وي۔ چه دا دواړه شریک دي په مفاوضه سره۔ او کوم مال چه دَ مدعا علیه په لاس کښې دے۔ دا دَ دواړو نیم نیم دے۔ نو اوس شاهدي دَ شاهدانو دَ مدعا علیه په میراث او په هبے او په صدقے قبول نه ده۔ او که دَ مدعي شاهدانو داسے شاهدي کړي وي۔ چه دوئ دواړه شریک دي په مفاوضه سره۔ او دَ دے نه زیات نور څه شاهدانو نه وي ویلي۔ نو شمس الائمة سرخسي صاحب رح په دے صورت کښې اختلاف ذکر کړیدے۔ دَ امام ابویوسف صاحب رح قول دا دے۔ چه دَ دے مدعا علیه چه په خلاف ئې فیصله شوے ده۔ شاهدان قبول نه دي۔ او دَ امام محمد صاحب رح قول دا دے۔ چه شاهدان ئې په هبے او صدقے وغیره قبول دي۔ او که دَ مدعي شاهدانو مخکښې داسے شاهدي کړے وي۔ چه کوم مال چه دَ دے مدعا علیه په قبضه کښې دے۔ دا دَ دوئ دواړو دَ شراکت دے۔ یا دَ دواړو نیم نیم دے۔ نو په دے صورت کښې شاهدان دَ مدعا علیه په میراث او په هبے وغیره قبول نه دي۔ او که مدعا علیه دَ یو خاص څیز دعوه وکړه۔ چه دا خاص زما دے۔ زما دے شریک ماته خپله حصه هبه کړے ده۔ (بخلے ده) او ما قبض کړے ده۔ او شاهدان ئې ودړول په هبه او په قبض باندے۔ نو دا شاهدان قبول دي۔ (ځکه چه په دے کښې دَ قاضي دَ دړومبئ فیصلے تائید دے)۔

**مسئله**:۔ یو سړي دعوه وکړه په بل باندے دَ مرئ۔ چه دا مرئ چه دَ دهٔ په قبضه کښې دے۔ زما او دَ دهٔ شریک دے۔ او په دے ئې شاهدان ودړول۔ نو قاضي حکم وکړلو دَ دے مدعي دَ پاره۔ په دغه مرئ سره چه دا نیم ستا دے۔ پس دَ دینه خاوند دَ قبضے دعوه وکړه۔ چه دا مرئ خو ماته په میراث کښې پاتے شوے دے دَ خپل پلار۔ نو قبول نه دي شاهدان دَ خاوند دَ قبضے۔ مګر که دعوه ئې کوله

دَ حاصلولو دَ ملکیّت دَ جهته دَ مدعی نه ـ ( مثلاً وبَیل ئې ـ چه دا دا نه دے مدعی هیه کړے دے ـ یا ئې دا ته خیراتی دا کړے دے ) نو بیا ئې شاهدان قبول دی ـ

**مسئله** :- کډیوتن دَ هغه دوؤ تنو نه " چه شراکت مفاوضه ئې سره کړے وو" مړ شه ـ اومال دَ هغه یو په لاس کښې وو ـ چه ژوندے پاتې شوے دے ـ او دَ دغه مړی میراث خور پرے دَ شراکت مفاوضه دعوه وکړه ـ او دغه ژوندی انکار وکړو دَ شراکت نه نو میراث خور شاهدان وُدرول په دے خبره چه خمونږ پلار (چه مړ دے هغه) ستا سره شریک وو ـ په مفاوضه سره ـ نو حکم به نه کیږی دَ پاره دَ میراث خورو ـ په هیڅ شی سره دَ هغه مال نه چه دَ دغه ژوندی په لاس کښې دے ـ لکن که شاهدان ئې په خبره ودرولی وی ـ چه کوم مال چه دے ژوندی په لاس کښې دے ـ دا خمونږ دَ پلار دَ شراکت دے ـ یا ئې په دے خبره ودرولی وی ـ چه دا مال خمونږ دَ پلار په قبضه کښې وو ـ په حال دَ ژوندانه کښې ـ نو بیا ئې شاهدان قبول دی ـ او که مال دَ میراث خورو په لاس کښې وو ـ او دوئ منکر وو دَ شراکت نه ـ او دغه ژوندی شاهدان وُدرول په شرکت مفاوضه باندے ـ او میراث خورو دَ مړی شاهدان وُدرول په دے خبره ـ چه خمونږ پلار مړ شوے دے ـ او دا مال ئې موته نه میراث پریخودے دے په دَ شراکت نه ـ ( یعنے ستا دَ هغه سره هیڅ شراکت نه وو ) نو قبول نه دی ـ شاهدان دَ میراث خورو ـ او حکم به کیږی ـ چه دا نیم مال دَ دے مدعی شه او دا قول دَ امام صاحب[1] رح دے ـ او دَ امام محمّد صاحب رح قول دا دے ـ چه شاهدان دَ میراث خورو په میراث باندے قبول دی ـ" قاضیخان "

[1] په قاضیخان کښې دلته دَ امام صاحب په ځائ امام ابویوسف صاحب رح ذکر دے ـ ۱۲ مترجم

# دوېش مسئلې

**مسئله** :- دوه تنه په یو لوئ کور کښې شریک وو ـ نو دوا پرو دغه کور سره او ویشه ـ او هر یو یوه حصه وا خستنه ـ بیا په دے کښې یو تن په هغه بل باندے دَ یوے دا سے کمرے دعوه وکړه چه دَ هغه بل په قبضه کښې وه ـ چه دا خما په برخه کښې رسیدلے ـ ( او خاوند دَ قبضے او وئیل چه دا خما رسیدلے ) او دوا پرو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول ـ نو شاهدان دَ مدعی بے

قبضے غوره دی ـ او که دواړه مختلف شو په یو داسے بوید ـ یا په یو داسے دیوال کښ چه د دواړو برخو په مینځ کښ واقع وو ـ او هر یو وئیل چه دا ځما دے ـ د دے بل په برخه کښ داغلے ـ او هر یو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول نو د هر یو د پاره به په هغه حصه سره حکم کیږی ـ کومه چه د هغه بل په قبضه کښ ده ـ " وجیز "

# مسئلے د دعوا و د کوټ نئی پیدائش

(مثلاً داوئیل چه اشاروے ځما کوره نی دے یعنے ځما د خپل شاروی نه پیدا دے)

**مسئله** :ـ دوه تنه دعوه کوی ـ او هر یو شاهدان وُدروی په دے خبره باندې چه دا بیزه (ځما ده) ځما کورنئ پیدا ده ـ (یعنے ځما د خپلے بیزے نه پیدا ده ـ) نو حکم به کیږی د پاره[1] د خاوند د قبضے ـ بیا که بل چا پرے دعوه وکړه ـ او شاهدان وُدرول چه دا بیزه (ځما ده) ځما کورنئ پیدا ده ـ نو حکم به کیږی د پاره د دے نوی مُدّعی ـ مګر هاں که خاوند د قبضے دوباره خپل شاهدان وُدرول د د غه بیزے په کورنی پیدائش باندے ـ نو بیا به حکم کیږی د پاره د خاوند د قبضے

---

[1] او په دے کښ تاریخ له اعتبار نشته ـ لکن که خاوند د قبضے د دغه بیزے د پیدائش داسے تاریخ وخوُدچه هغه د دغه بیزے د عمر نه بالکل مخالف وو ـ او تاریخ د قبضے برابر وو ـ د دغه بیزے د عمر سره ـ نو بیا شاهدان د مدعی بے قبضه غوره دی ـ دارنګ دیلی دی په بحرالرائق کښ بله مسئله دا ذده کړه چه مدعی بے قبضے که دعوه وکړه چه دا شاروے ځما ملکیت دے یائے داسے دعوه وکړه چه دا شاروے چه دده په قبضه کښ دے ـ دا ځما دے ـ ځما د خپل شاروی نه پیدا دے ـ او په دے ئے شاهدان تیر کړل ـ او قاضی د ده حکم وکړه ـ پس د هغه نه خاوند د قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا ځما دے ـ ځما د خپل شاروی نه پیدا دے ـ نو دا شاهدان قبول دی ـ جوړ قاضی به خپل حکم مات کړی ـ دارنګ ویلی دی صاحب د هدایئے ـ او صاحب د جامع الفصولین کتاب د دے نه خلاف نقل کړے دے ـ لکن غوره خبره هم داده ـ او بحرالرائق د فتاوے بزازئے او عمادئے نه دا خبره نقل کړے ده ـ چه د چا په خلاف په یوه مقدمه کښ فیصله شوی وی ـ قاضی به د هغه نه بیا دغه دعوه نه اوری ـ لکن که شاهدان ئے وُدرول په باطل والی باندے د حکم د قاضی ـ یا په دے خبره چه ما د دعوے د دے څیز ملکیت حاصل کړے دے ـ د دے مدعی نه چه په حق کښ ئے فیصله شوے ده ـ مثلاً ده ما بخلی دے ـ یا په دے خبره چه دا شاروے چه د دے مدعی د پاره ئے حکم شوے دے ځما د خپل شاروی پیدا دے ـ نو بیا به ئے اوری ۱۲ مترجم ـ

[2] حکه چه په مخکښ مقدمه کښ د هغه بل مدعی په خلاف حکم شوے وو ـ نه دده په خلاف ۱۲ مترجم ÷

**مسئله** :- که د یوے وینزے په بابت کبن د دوؤ تنو جګړه شوه - او هر یو دعو کوله او شاهدان ئے وُدرول په دے خبره - چه داوینزه زما ده) ځما په ملکیت کبن د وینزے نه پیدا شوے ده - نو د کوم مدعی په قبضه کبن چه دا وینزه وی - د هغه د پاره به حکم کیږی -

**مسئله** :- که یو سړی دعوه وکړه د یوے داسے وینزے چه د زید په قبضه کبن وی - چه ز داوینزه ځما ده - او) دے ځما په ملکیت کبن بچے راوړے دے - او په دے د خو ئے شاهدان وُدرول - او زید هم دارنګ شاهدان وُدرول - نو قاضی ؒ به حکم کوی چه دا وینزه او د دے بچے دواړه د مدعی بے قبضے شو.

**مسئله** :- د یو جانب نه شاهدان وُدریدل په مال باندے - (یعنے په د خبره باندے - چه بکر ته د زید روپئ پورے دی - مثلاً) او د بل جانب نه شاهدان وُدریدل په برائت باندے (یعنے په دے خبره - چه زید بکر ته د دغه روپو نه ابراء کړے ده - یعنے د دغه قرضے ئے ورته پریخے ده -) او دواړو تاریخ وخوو - (یعنے د زید شاهدانو ویئل - چه زید د غه مال بکر له په فلانی تاریخ ورکړ وو - او د بکر شاهدانو او ویئل - چه زید په فلانی تاریخ ابراء کړے ده) نو د به ګورو - که تاریخ د برات وړوستے وی - نو حکم به کیږی - چه د بکر په ذمه دغه مال شته دے - او که وړوستے وی - نو حکم به کیږی چه زید دغه مال بکر ته پریخے دے - او د بکر ذمه خلاصه ده - او که دواړو تاریخ نه وی خوولے - یو تاریخ خوولے وی - او هغه بل نه وی خوولے - یا تاریخ خو دواړو خوولے وی لکن تاریخ د دواړو یو وی - نو په دے درے واړو صورتونو کبن شاهدان د برائت غوره دی - ځکه چه برائت د دے د پاره لیکلے کیږی - چه دا د ضرورت په وخت کبن یو صحیح سند وګرزی - او د دے صحیح والے هله راتلے شی - چه مخکبن د قرضداری په ذمه مال واجب وی - او بیائے په دے بابت کبن خبرے اترے کړے وی - نو ظاهره دا ده - چه دا برائت به چرته هم د مال د واجیوالی نه وُروستو شوے وی -

**مسئله** :- که یو سړی د یو سړی د میراثے دعوه اوکړه - او شاهدان ئے

ﻪ په دے صورت کبن دواړو مدعیانو اګر که د دغه بچی د کورنی پیدائیش دعوه کړے - لکن په اصل کبن دواړو د وینزے د ملکیت مطلقه دعوه کړے ده - او د داسے ملکیت په دعوه کبن شاهدان د مدعی بے قبضے غوره دی - نو وینزه ئے شوه - او بچے مور پسے لاړ - دارنګ ذکر دے په جامع الفصولین کبن - ۱۲ مترجم ؛

وُدرول په دے خبره چه زهٔ دَ فلانی مړی دَ دا سے ترهٔ خوئ یم ـ چه هغه دَ دغه مړی دَ
پلار سره په مور او په پلار دواړو کښ شریک وو ـ (یعنے هغه دواړه آیئے دادا داوړی
وُو) او مدعا علیه دفعه وکړه (یعنے ردئے وکړه) او شاهدان ئے وُدرول په دے
خبره چه دا مدعی دَ دغه مړی دَ دا سے ترهٔ خوئ دے ـ چه هغه دَ دغه مړی دَ پلار
سره یوازے په مور کښ شریک وو ـ (یعنے هغه دواړه دَ یوے مور وُو ـ او پلار
ئے جدا جدا وو ـ) او حال داوی چه قاضی لا حکم نه وی کړے دَ پاره دَ مُدعی نو
دَ مدعی دعوه دفعه شوه ـ او دا رنګ حکم دے ـ که مدعا علیه په دے خبره
شاهدان وُدرول ـ چه دغه مړی دَ دے مدعی په بابت کښ اقرار کړے وو ـ چه
دے ځما دَ دا سے ترهٔ خوئ دے ـ چه ځما دَ پلار سره شریک وو په مور کښ نه
په پلار کښ ـ نو په دے سره هم دفعه راځی ـ

**مسئله** :- یو سړی دعوه اوکړه په زید باندے چه ځما تا ته دومره مال
پورے دے ـ نو دَ دے دعوے دَ دفعے دَ پاره زید اووئیل ـ چه تا اقرار کړے دے ـ چه
دَ دغه مال نه مِ زید ته ابراء کړے ده ـ (یعنے پریخے مِ دے) بیا مدعی دَ دے دفعے
په دفعه کښ اووئیل ـ چه تا اقرار کړیدے ـ په دے مال سره پس دَ هغے نه چه
ما اقرار دَ ابراء کړے وو ـ نو آیا په دے سره دَ زید دعوه دفعه شوه ـ او که
نه؟ نو شیخ الاسلام امام برهان الدین صاحبؒ وئیلی دی ـ چه په دی سره دفعه
نه راځی ـ او که مدعی دا سے اووئیل ـ چه تا چه په ما دَ براءت دَ اقرار کولو دعوه کړے
دَ دے نه دِ وُرستو اقرار کړے وئیلی دِ دی ـ چه دغه مال ځما په ذمه شته ـ او په دے
ئے شاهدان وُدرول ـ نو دا شاهدان قبول دی ـ او دَ زید دعوه[له] به دفعه شی
" مشتمل الاحکام "

**مسئله** :- دَ زید په قبضه کښ یو شے وو ـ یو مدعی پرے دعوه وکړه ـ او شاهدان
ئے وُدرول په دے خبره چه دا شے دَ شلو کالو نه ځما دے ـ او یو بل مدعی پرے
هم دعوه وکړه ـ او شاهدان ئے وُدرول ـ چه دا شے دَ پنځوسو کالو نه ځما دے
نو شاهدان دَ وُړمبی تاریخ واله غوره دی ـ (یعنے چا چه دَ پنځوسو کالو دعوه کړے
دَ هغه شاهدان غوره دی) او که دواړو تاریخ نه وو خوړلے ـ نو
بیا به دَ دواړو شی په شریکه سره ـ (یعنے نیم دَ یو مدعی او نیم دَ بل)

---

[له] دا مسئله دَ دے کتاب په مسئلو دَ اقرار کښی په تفصیل سره تیره شوے ده ـ ۱۲ مترجم

او دارنلې حکم دے که دواړو جګړه په څاروی یا په مرئ کښې وه - او هر یو شاهدان ؤدرول په دے خبره چه دا (څاروے یا مرئے) ځما دے - او ځما کورتے پیدا دے - او که یو مدعی په کورنی پیدائیښ شاهدان ؤدرول - او هغه بل ؤنه درول - نو خاوند دَ کورنی پیدائیش غوره دے - او که دواړو شاهدان ؤدرول په کورنی پیدائیش یا تدے - او دواړو دَ دغه څاروی دَ پیدائیش تاریخ اوخوو - او تاریخ دَ یو مخکښې وو - دَ بل نه - نو دَ کوم یوَ شاهدانو دَ تاریخ سره چه دَ دغه څاروی عمر برابر وی - څاروے به دَ هغه شي - او که دَ څاروی عُمر معلومیدل مشکل وو - (یعنے دَ پوهے خاوند انو هم دَ دغه څاروی عُمر معلوم نه کړے شو) نو بیا به دَ دواړو په شریکه شي -

مسئله :- دَ یو سړی په قبضه کښې څاروے دے - بل پرے دعوه وکړه - او شاهدان ئے ؤدرول په دے خبره چه دا (ځما دے) ځما په ملکیت کښې پیدا شوے دے - او خاوند دَ قبضے هم دارنګې شاهدان ؤدرول - نو حکم به کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے په قضاء ملک سره - نه په قضاء ترک سره - (یعنے قاضی به حکم کوی دَ ده په مالک والی سره - دا نه چه دَ ده څخه دِ پریخودے شي) لکه چه وئیلی دی - عیسے ابن ابان رح - او دارنګه حکم دے - که مدعی بے قبضے په دے خبره شاهدان ؤدرول چه دا څاروے ځما دے - یو کال کیږی چه ځما په ملکیت کښې پیدا شوے دے - او خاوند دَ قبضے شاهدان ؤدرول په دے خبره چه دا ځما دے - دوه کاله کیږی چه ځما په ملکیت کښې پیدا شوے دے نو دغه څاروے به دَ خاوند دَ قبضے وی -

مسئله :- که مدعی بے قبضے شاهدان ؤدرول په دے خبره چه دا ځما دے - او دَ پنځو کالو نه ځما په ملکیت کښې دے - او خاوند دَ قبضے شاهدان ؤدرول په دے خبره - چه دا ځما دے - او ځما په ملکیت کښې دے - او تاریخ دَ ملکیت ئے ؤنه خوو یا شاهدانو دَ خاوند دَ قبضے تاریخ دَ ملکیت وخوو - او شاهدانو دَ مدعی بے قبضے تاریخ دَ ملکیت ؤنه خوو نو حکم به کیږی دَ پاره دَ مدعی بے قبضے - نو خلاصه خبره دا شوه چه شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره دی - لکن که خاوند دَ قبضے دعوه کوله دَ کورنی پیدائیش (چه دا څاروے ځما دے - ځما دَ خپل څاروی نه پیدا دے - نو بیا شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره دی) "تتمة الفتاوی"

مسئله :- که مدعی بے قبضے شاهدان ؤدرول په دے خبره چه دا کور دَ فلانی

تاریخ نه ښکاره دے - او خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره - چه دا دَ فلانی
تاریخ نه ښکاره دے - او حال داوی چه دا تاریخ وړومبے وی دَ تاریخه دَ مدعی
بے قبضے نه - نو شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره دی - دا قول دَ امام اعظم
صاحبؒ او دَ امام ابویوسف صاحبؒ دے - او دَ امام محمّد صاحب نه هم دا روایت
شته - خو هغه بیا دَ دے قول نه راګرځیدلے دے - دے خبرے ته چه شاهدان
دَ خاوند دَ قبضے قبول نه دی - ځکه چه دَ دواړو جانبو شاهدان وُدریدلی دی -
په مطلق ملک باندے - (یعنے هر یو دَ دواړو نه شاهدان وُدریدلی دی په دے
خبره چه کور ښکاره دے) او سبب دَ ملکیت ئے نه دے ښودلے - (چه په بیعه ئے اخستے
یا ورته چا بخلے دے یا نور څه) نو ملکیت والے او وُدروستو والے برابر دے - (جو شاهدان
دَ مدعی بے قبضے غوره دی -) او شیخین رح په خپل دلیل کښے وائی - چه شاهدانو چه
شاهدی کړی سره دَ ذکره دَ تاریخه دَ ملکیت نه - په دے کښے دَ دفعے معنے پرته
ده - (یعنے دَ مدعی بے قبضے دعوه پرے دفعه کیږی) ځکه چه دَ یو شی ملکیت چه
دَ یو سړی دَ پاره په یو وخت کښے ثابت شی - نو دَ دے نه وروستو دَ بل چا دَ پاره دَ
دغه شی ملکیت نه شی ثابتیدلے - مګر دَ هغه سړی دَ جانبه نه چه هغه ئے
مالک دے - (یعنے که مالک پرے دغه شے ورخرڅ کړه - یا ئے ورته او بخلو مثلاً
نو بیا به دَ دغه بل ملکیت ثابت شی) او (دا قاعده ده چه) شاهدان دَ خاوند
دَ قبضے قبلیږی په دفعه باندے - (نو دَ دے وجه نه مونږ اوویل - چه شاهدان
ئے غوره دی -) او دا دَ ثلثه اختلاف دے په هغه صورت کښے چه کور دَ دواړو مدعیانو
په قبضه کښے وی - او دواړه پرے دعوه کړی - په دے صورت کښے هم دا مشکینے[1]
اختلاف او بیان جاری دے - او که مدعی بے قبضے او خاوند دَ قبضے شاهدان
وُدرول په ملکیت مطلقه دَ یو کور باندے (یعنے هر یو په دے خبره شاهدان وُدرول
چه دا کور ښکاره دے) او دَ یو جانبه شاهدانو تاریخ دَ ملکیت اوخود - او دَ
بل جانب شاهدانو تاریخ ونه خود - نو دَ امام اعظم صاحب رح او دَ امام محمّد
صاحب رح په قول بانی مدعی قبضے غوره دے - او ویلی دی امام ابویوسفؒ
صاحب - او دَ امام صاحب رح نه هم یو روایت دے ، چه خاوند دَ تاریخ غوره

[1] دَ شیخینو په نزد شاهدان دَ وړومبی تاریخ والا غوره دی - نو کور به دَ هغه شی - او دَ امام محمد صاحب رح
په قول دغه شاهدان غوره نه دی - نو کور به دَ دواړو مدعیانو شی په شریکه سره - یعنے دَ دغه کور
کومه کومه حصه چه دَ هر یو په قبضه کښے ده - هغه به دَ دغه بل شی - ١٢ مترجم ÷ ÷

دے۔ ځکه چه دے ورومبے دے (وخپه داده۔ چه دے دَ ځان دَ پاره ملکیت ثابتوی
په هغه وخت کښې چه خوُلے دے۔ اوکوم یو چه وخت نه دے خوولے۔ هغهٔ گویا دَ
ځان دَ پاره ملکیت ثابتوی۔ په حالی زمانه کښې۔ نو په دے وجه خاوند دَ تاریخ مخکښې
شه) اودا شوه۔ لکه دَ قیمةً اخستلو په دعوه کښې چه وی۔ کوم وخت
چه (یو دعوه کوی چه دا څیز ما دَ زید نه په بیعه آخستے۔ او بل هم دعوه کوی
چه داڅیز ما دَ زید نه په بیعه آخستے دے۔او دواړه شاهدان ورډوی په خپله
خپله دعوه باندے۔او) دَ یو جانب شاهدان تاریخ دَ بیعے ښئ۔او دَ بل جانب
شاهدان نه ښئ۔ نو هلته خاوند دَ تاریخ غوره دے۔ اودَ طرفینو رح دلیل دا دے
چه شاهدان دَ خاوند دَ قبضے هله غوره کیږی۔ چه دَ هغوپه شهادت سره دَ مدعی
بے قبضے دَ شاهدانو دفعه راځی۔ او دلته دا خبره نشته۔ ځکه (چه دفعه به هله
راتله۔ چه دا خبره خاصه شوے وے۔ چه مدعی بے قبضے دَ خاوند دَ قبضے دَ جهت
نه ملکیت حاصل کړے دے۔ مثلاً دَ خاوند دَ قبضے نه ئے په بیعه آخستے.
یا ورته هغه بخلے دے۔ وغیره وغیره۔ اودا خبره خودلته نشته۔ ځکه) چه په
دے کښې شک راغلے دے۔ چه اے دے مدعی بے قبضے دَ خاوند دَ قبضے نه
ملکیت دَ دے کور حاصل کړے دے۔اوکه نه؟ (نو شاهدان دَ خاوند دَ قبضے
غوره نه شو۔ بلکه شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره شو۔) او دادتلته اختلاف
او بیان دے په هغه صورت کښې۔ چه دَ جګړے دغه کور دَ دواړو مدعیانو په
قبضه کښې وی۔( او هریو شاهدان ورډوی په دے خبره چه داکور ځما دے۔اودَ
یو شاهدان دَ ملکیت تاریخ ښئ۔اودَ بل شاهدان تاریخ نه ښئ۔ نو دَ طرفینو
په قول باندے تاریخ له اعتبار نشته۔ او دَ امام ابویوسف صاحب رح په نزد
خاوند دَ تاریخ غوره دے) اوکه دَ جګړے دغه کور دَ یو دریم سړی په قبضه
کښې وو۔ او نوره مسئله په خپل حال وه۔ (یعنی دوه تنه بے قبضے وو۔ هریو
دَ دغه کور دَ ملکیت دعوه کوله چه دا ځما دے۔ او دواړو شاهدان ورډاول
او دَ یو جانب شاهدانو تاریخ خوو۔ او دَ بل جانب شاهدانو نه خوو۔) نو دَ امام
اعظم صاحب رح قول دادے چه دا دواړه مدعیان برابر دی۔ اودَ امام ابویوسف
صاحب قول دادے چه خاوند دَ تاریخ غوره دے۔ اودَ امام محمّد صاحب رح قول
دادے۔ چه کوم یو تاریخ نه دے خوولے۔ هغه غوره دے۔ ځکه چه دَ دعوه دَ ورومبی

والی دَ ملکیت کړے ده۔ دلیل ئے دا دے۔ چه دے مستحق کرځی۔ دَ هغه ذائید
څیزونو چه دَ دعوے دَ دغه څیز سره متعلق وی۔ او بعضے خوشوکی رجوع کوی
په بعضو باندے (مثلاً زید یوه وینزه په بکر خرڅه کړه۔ بیا بکر دغه وینزه په
خالد خرڅه کړه۔ بیا غانم راغے په خالد ئے دعوه وکړه۔ چه دا وینزه ځما ده
او شاهدان ئے اُودرول۔ نو غانم مُستحق شو دَ دغه وینزے۔ او که دَ دغه وینزے
سره بچے وی۔ نو غانم دَ هغه هم مُستحق شه۔ بیا خالد به خپل قیمت دَ بکر
نه واپس واخلی۔ او بکر دَ زید نه۔ نو مدعی دَ ملکیت مطلقه دعوه دَ ملکیت
کړے ده دَ اصله نه۔ او ملکیت دَ اصل غوره دے دَ هغه ملکیت نه چه دَ یو خاص
تاریخ نه وی) او دَ امام ابو یوسف صاحب رح دلیل دا دے۔ چه تاریخ خول دا خبره
لازمه وی۔ چه دَ دغه تاریخ نه ئے ملکیت ثابت دے په یقین سره۔ او دَ تاریخ نه خولو
په صورت کښې احتمال دے۔ چه دَ ده ملکیت دے دَ دغه تاریخ نه وُروستو وی۔ او
غوره والے راځی په یقین سره۔ (نو مونږ اوویل چه خاوند دَ تاریخ غوره دے)
نو دا سے شوه۔ لکه چه دوه تنه دعوه کوی دَ یو څیز دَ قیمةً اخستلو (یعنے هریو
والی چه دا څیز ما په بیعه اخستے دے دَ زید نه۔ او شاهدان اُودروی۔ او دَ یو
شاهدان تاریخ ښکی۔ او دَ بل نه ښکی۔ نو هغله خاوند دَ تاریخ غوره کیږی۔ نو دا
دلته حکم شه دلته) او دَ امام اعظم صاحب دلیل دا دے۔ چه خاوند دَ تاریخ خو
اګر که تاریخ خولے دے۔ لکن احتمال لری چه دَ دغه بل مدعی دَ ملکیت دَ تاریخ نه
دا تاریخ وړومبے نه وی۔ نو معتبر نه شه تاریخ (او دواړه پاتے شو۔ بے تاریخه)
نو دا سے شول۔ لکه چه دواړو شاهدان اُودرولی وی۔ په مطلق ملکیت باندے
(یعنے هر یو په دے خبره شاهدان اُودرولی وی۔ چه دا کور ځما دے۔ او تاریخ
دواړو نه وی خولے۔ په خلاف دَ قیمةً اخستلو نه لکه چه امام ابو یوسف صاحب
په مثال کښې ویلی دی۔ دا سے نه ده۔) ځکه چه قیمةً اخستل چه دی۔ دا یو نوے
کار دے۔ نو دا به منسوب کیږی نژدے وخت ته۔ او هغه تاریخ دے۔ نو هغله
خاوند دَ تاریخ غوره دے۔ (او دلته تاریخ له اعتبار نشته دے)" هدایه"

**مسئله**:۔ دوه تنو شاهدان اُودرول۔ هر یو په دے خبره۔ چه فلانے کور
ځما په قبضه کښې دے۔ او معلومه نه وه چه په دے دواړو کښې خاوند دَ قبضے کوم یو
دے۔ نو مونږ به وایو۔ چه دَ هر یو تن په قبضه کښې دَ دغه کور نیمه حصه ده۔

اوکه په دوئ کښې یوتن شاهدان ؤدرول (په قبضے دد غه کور باندے چه ځما په قبضه کښې دے۔) نوثابته به شی ورلره قبضه۔ او دے به جوړ مدعا علیه شی اوکه په دے دواړو کښې یوتن هم شاهدان ونه درول۔ نو په هریو باندے قسم دے۔ نوکه هریو قسم وکړه۔ نو دا کور به موقوف پاتے کړے شی۔ تر هغے پورے چه پته اولګی۔ اوکه یوتن په دوئ کښې د قسم کولو نه انکار وکه۔ نو کوم یو چه قسم کړیږے۔ د هغه په قبضه به حکم نه کیږی۔ لکن دواړه به منع کړے شی. د تصرف کولو نه په دغه کور کښې۔

**مسئله**:۔ که خاوند د قبضے شاهدان ؤدرول په دے خبره۔ چه دا کور ځما په قبضه کښې دے د دوؤ کالو نه۔ او مدعی بے قبضے شاهدان ؤدرول په دے خبره چه دا ځما دے د یو کال نه۔ نو حکم به کیږی د پاره د مدعی بے قبضے۔

**مسئله**:۔ مدعی بے قبضے او خاوند د قبضے شاهدان ؤدرول په مطلق ملکیت د یو کور باندے مثلاً (یعنے مدعی بے قبضے وئیل۔ چه دا کور ځما دے۔ او خاوند د قبضے وئیل چه ځما دے) او دواړو تاریخ وخوو د ملکیت۔ او تاریخ د دواړو یو وو نو حکم به کیږی د پاره د مدعی بے قبضے۔ اوکه دغه کور د دواړو په قبضه کښې وو او هریو شاهدان ؤدرول په دے خبره چه دا کور ځما دے۔ نو حکم به کیږی۔ د پاره د هریو په هغه حصه سره چه د هغه یل په قبضه کښې ده۔

**مسئله**:۔ که یو مدعی دعوه کوله د میراث۔ (چه دا شے ما ته د پلار نه میراث پاتے شوے دے) او بل دعوه کوله د ملک مطلق (چه دا ځما دے) او دواړو شاهدان ؤدرول په خپله خپله دعوه باندے۔ نو حکم به کیږی چه دغه شے د دواړو نیم نیم شه۔

**مسئله**:۔ یو مدعی شاهدان ؤدرول په میراث باندے۔ (مثلاً زید شاهدان ؤدرول په دے خبره "چه دا ما ته د پلار نه میراث پاتے شوے دے") او بل مدعی شاهدان ؤدرول په دے خبره۔ چه ما ملکیت حاصل کړے دے۔ د دے مدعی د مورث نه په یو صحیح سبب سره (مثلاً بکر شاهدان ؤدرول۔ چه دا شے ما د دے زید د پلار نه په بیعه اخستے دے۔) نو حکم به کیږی په ملکیت سره (یعنے حکم به کیږی د پاره د بکر)

**مسئله**:۔ دوؤ تنو دعوه د ملکیت مطلق وکړه۔ د یو دا سے شی۔ چه د دیم

سرې په لاس کښې وو. (یعنې هر یو دَ دے دواړو نه او وئیل چه دا څیز زما دے.) او دواړو دَ خپل ملکیت تاریخ هم وخوو. (چه دَ فلانې تاریخ نه دَ زهٔ مالک یم) او تاریخ دَ یو مخکښې وو. او دَ بل وُروستے. نو خاوند دَ وړومبی تاریخ غوره دے. لکن دَ امام محمّد صاحب رح نه یو روایت دا دے. چه دغه څیز دَ دعوے به دَ دواړو مدعیانو شي. او که یو تاریخ خوُلے وو. او بل نه وو خوولے. نو دَ امام صاحب رح په نزد به حکم کیږي دَ پاره دَ دواړو مدعیانو په شریکه سره. او اعتبار نشته تاریخ له او دَ امام ابو یوسف صاحب رح په نزد خاوند دَ تاریخ غوره دے. او دَ امام محمّدؒ صاحب په نزد هغه مدعی غوره دے. چه تاریخ ئے نه دے خوُلے. او که دغه څیز دَ دعوے دَ یو تن په لاس کښې وو دَ دے دواړو مدعیانو نه. او دواړو دَ خپل ملکیت تاریخ نه وو خوولے. یا دواړو یو تاریخ خولے وو. نو مدعی بے قبضے غوره دے. او که دَ یو تاریخ مخکښې وو. دَ بل نه. نو دَ شیخینو رح په نزد هغه غوره دے او امام محمّد رح صاحب وائي. چه په دے صورت کښې به دغه څیز دَ دواړو نیم نیم وي. او که یو تاریخ خوولے وو. بل نه وو خوُلے. یا مدعی بے قبضے وئیلي وو. چه دا زما دے دَ یو کال نه. او شاهدانو دَ خاوند دَ قبضے په شک سره تاریخ خوولے وو. یعنې دا ئے وئیلي وو. چه دا څیز دَ دے خاوند دَ قبضے دے دَ یو کال نه. یا دوو کالو نه یا خاوند دَ قبضے وئیلي وو. چه دا زما دے دَ دوو کالو نه. او شاهدانو دَ مدعي بے قبضے تاریخ خولے وو په شک سره. نو په دے صورت کښې به دَ طرفینو په نزد حکم کیږي دَ پاره دَ مدعي بے قبضے. او دَ امام ابو یوسف رح په نزد شاهدان دَ خاوند دَ تاریخ غوره دي. او که دغه څیز دَ دعوے دَ دواړو په لاس کښې وو. او دواړو تاریخ دَ ملکیت خپل خولے وو. خو تاریخ دَ یو مخکښې وو دَ بل نه. نو دَ شیخینو رح په نزد مخکښې تاریخ والا غوره دے. او دَ امام محمّد صاحب رح په نزد به دغه څیز دَ دواړو وي په شریکه او دا دلیل حکم دے. که چرے دواړو دعوه کوله دَ حاصلولو دَ ملکیت دَ دغه څیز دَ دوؤ تنو نه په میراث یا په قیمت اخستلو سره (یعنې یو وئیل. چه دا ماته دَ زید نه په میراث پاتے شوے دے. او بل وئیل چه ماته دَ بکر نه میراث پاتے شوے دے. یا یو وئیل. چه دا ما دَ زید نه په بیعه اخستے دے. او بل وئیل چه ما دَ بکر نه په بیعه آخستے دے.) او که دواړو دعوه کوله دَ حاصلولو دَ ملکیت دَ یو تن نه. (یعنې دَ دواړو مدعیانو نه هر یو وئیل. چه دا ما دَ زید

نه په پیعه آخستے دے۔ مثلاً) او حال داوو۔ چه دغه څیز دَ هغه په قبضه کښې وو (یعنې دَ زید) نو دَ دواړو مدعیانو په شی په شریکه۔ لکن که په دوی کښې یو تن تاریخ مخکښې وو۔ نو بیا هغه غوره دے۔ او دارنګ که یو تاریخ ذکر کړو۔ او بل ذکر نه کړ۔ نو تاریخ والا غوره دے۔ او په دے حکم څلوړو دَ اماما نو صاحبانو اتفاق دے۔ اوکه دغه څیز دَ یو تن په قبضه کښې وو دَ دوی دواړو نه۔ نو حکم به کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے۔ لکن که دواړو تاریخ ونخوؤ۔ او تاریخ دَ یو مخکښې وو۔ نو بیا دَ وړومبی تاریخ والا غوره دے۔

**مسئله**:- یو کور وو دَ دریم سړی په قبضه کښې دعوه پرے وکړه دوؤ تنو نو یو خو په دے خبره شاهدان وُدرول۔ چه دا کور ټول څما دے۔ او بل په دے خبره چه دا کور نیم څما دے۔ نو دَ امام اعظم صاحبؒ په نزد بانډی چا چه دعوه دَ ټول کور کړے ده۔ دَ هغه به دَ دغه کور دَ څلورو حصونه درے حصے ورسی۔ او چا چه دَ نیم دعوه کړے ده۔ دَ هغه به څلورمه حصه۔ او دَ صاحبینوؒ په نزد بانډی چا چه دعوه دَ ټول کړیده۔ دَ هغه به دَ دریو حصونه دوه حصے۔ او چا چه دَ نیم کړیده۔ دَ هغه به دریمه حصه ورسی۔ اوکه دغه کور دَ دواړو مدعیانو په قبضه کښې وو نو بیا به ټول کور ورسی دَ هغه یو چه دعوه ئے دَ ټول کړیده۔

**مسئله**:- یو سړی دعوه وکړه چه دا ټول کور څما دے۔ او بل دعوه وکړه چه دَ دے کور دوه دریمے ($\frac{2}{3}$) حصے څما دی۔ او بل دعوه وکړه چه دا کور نیم څما دے۔ او هر یو دَ دے درے واړو نه شاهدان وُدرول په خپله خپله دعوه بانډے نو دَ امام صاحبؒ په نزد به (کور دولس حصے کړے شی۔ نو) چا چه دعوه دَ ټول کړے ده۔ دَ هغه به دَ دولسو حصونه اووه حصے اُورسی۔ او چا چه دَ دوو حصو دعوه کړیده۔ دَ هغه به درے حصے۔ او چا دَ نیم کړے ده۔ دَ هغه به دوه حصے اُورسی۔ او دَ صاحبینوؒ په نزد به کور دیارلس حصے کړے شی۔ چا چه دعوه دَ ټول کړے ده۔ دَ هغه به شپږ شی۔ او چا چه دَ دوؤ حصو کړے ده دَ هغه څلور۔ او چا چه دَ نیم کړے ده۔ دَ هغه درے۔

**مسئله**:- مدعی بے قبضے او خاوند دَ قبضے دواړو شاهدان وُدرول۔ هر یو په دے خبره چه" دا څاروے څما دے۔ څما په ملکیت کښې یعنے څما دَ خپل څاروی نه پیدا شوے دے۔ نو حکم به کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے او اعتبار نشته تاریخ لره په دعوه دَ کورنی پیدائش کښې۔ مګر هاں که دواړو

تاریخ دَ پیدائیښ دَ دغه څاروی وخوږ - او دواړه تاریخونه دَ یو بل نه بدل وو - او مدعی بے قبضے چه کوم تاریخ خولے دے - هغه دَ دغه څاروی دَ عمر سره موافق وو - نو بیا به حکم کیږی دَ پاره دَ مدعی بے قبضے - او که عمر دَ هغه څاروی موافق دَ هغه تاریخ سره چه کوم خاوند دَ قبضے خولے دے - یا عمر معلومیدل ئے مشکل شوی وو - یا دَ دواړو تاریخ مخالف وو - دَ دغه څاروی دَ عمر نه - نو بیا به حکم کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے -

**مسئله** :- دوو تنو دعوه وکړه دَ یو داسے څاروی چه هغه دَ دریم سړی په قبضه کښ وو - او هر یو دَ دے دواړو نه شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا څاروے څما دے - څما دَ خپل څاروی نه پیدا شوے دے - نو حکم به کیږی دَ پاره دَ دواړو مدعیانو په شریکه - برابره خبره ده - چه دواړو دَ دغه څاروی دَ پیدائیښ تاریخ خولے وی - او که نه وی خولے - مګر هان که عمر دَ دغه څاروی مخالف وو دَ یو دَ تاریخ نه نو حکم به کیږی دَ پاره دَ هغه بل - او که عُمر دَ دغه څاروی معلومیدل مشکل وو - یا دَ دواړو تاریخ مخالف وو - دَ دغه څاروی دَ عمر نه نو بیا به حکم کیږی دَ پاره دَ دواړو مدعیانو په شریکه سره -

" وجیز په دعاوی کښ "

**مسئله** :- وئیلی دی په اتم فصل دَ جامع الفصولین کښ چه زده کړه دا خبره هر کله چه دوه تنه په یو څیز دعوی اوکړی - او دواړه شاهدان وُدروی په خپله خپله دعوه باندے - نو دوئ به دَ دریو حالتونه خالی نه وی - یا به دواړه دَ مطلقِ ملکیت دعوه کوی ( یعنی هر یو به وائی چه دا څما دے - او سبب دَ ملکیت به نه ذکر کوی - ) یا به دواړه دعوه دَ میراث کوی - ( یعنی وائی به - چه دا څما دے - ماته په میراث کښ پاتے شوے دے - ) او یا به دعوه کوی دَ قیمةً اخستلو ( چه دا ما په بیعه اخستے دے ) او په دے دریو صورتونو کښ هر یو صورت په دریے دریے قسمه دے - ځکه چه په کوم شی چه ئے دعوه کړے ده - هغه به دَ دریم په قبضه کښ وی - او یا به دَ دے دواړو مدعیانو په قبضه کښ وی - او یا به په دوئ کښ دَ یو تن په قبضه کښ وی ( نو دا نه صورتونه شو - ) او هر یو دَ دے صورتونو نه بیا په څلور څلور قسمه دے - ځکه چه یا به دواړو مدعیانو تاریخ نه وی ذکر کړے - یا به دواړو

بو تاریخ خولے وی - یا به دواړو تاریخ خولے وی - خو دَ یو تاریخ به مخکښ وی - او دَ بل وروستے - یا به په دوئ کښې یو تن تاریخ خولے وی - او هغه بل به نۀ وی خولے نو دا ټول شپږ دیرش (۳۶[1]) قسمه شول - راوس دَ هر یو قسم حکم په تفصیل او په ترتیب سره واوره -) که دواړو مدعیانو دعوه دَ مطلق ملکیت وکړه (هر یو اووئیل چه دا څیز زما دے) او حال دا وو چه دغه څیز دَ دریم په قبضه کښې وو - او دواړو مدعیانو دَ خپل ملکیت تاریخ وُنۀ خوو (دا نۀ وئ خوو - چه دَ کوم تاریخ نه ئے زه مالک یم -) یا دواړو یو تاریخ وخوو[2] - او دواړو شاهدان وُړړول په خپله خپله دعوه باندے - نو حکم به کیږی دَ پاره دَ دواړو مدعیانو په شریکه چه دغه څیز دَ دواړو نیم نیم دے -) ځکه چه دواړه برابر دی - په حجت (دلیل) کښې - (یعنے شاهدان دَ دواړو شته -) او که تاریخ دواړو وخوو خو[3] تاریخ دَ یو وړومبے وو دَ بل نۀ - نو حکم به کیږی دَ پاره دَ وړومبی تاریخ والا - ځکه چه ده ثابت کړے دے ملکیت دَ ځان دَ پاره په دا سے زمانه کښې چه په هغے کښې دَ چا جګړه ورسره نشته - (او دغه بل مدعی چه دعوی کوی نو هغه دَ خپل ملکیت تاریخ وُروستے خوُلے دے - نو حکم به کیږی - چه پر دے وړومبنی وخت کښې ئے مالک خاوند دَ وړومبی تاریخ دے - او دَ دغے نه وروستو به دَ بل دَ پاره په ملکیت سره هله حکم کیږی چه هغه دَ دۀ نه په څه ذریعه ملکیت دَ دغه څیز حاصل کړی - (مثلاً په بیعه ئے تر داخلی) او خاوند دَ وروستنی تاریخ چه دے - هغه ملکیت دَ دغه څیز نۀ دے حاصل کړے دَ دۀ نه - نو دَ هغه دَ پاره به حکم نۀ شی کیدا سے - په دغه څیز سره (بلکه حکم به کیږی دَ پاره دَ وړومبی تاریخ والا) او که یو مُدعی تاریخ دَ خپل ملکیت وخوو - او بل وُنه خوو - نو د امام اعظم صاحب رح په نزد باندے اعتبار تاریخ لره نشته او حکم به کیږی دَ پاره دَ دواړو مدعیانو په شریکه - ځکه چه تاریخ بیانول دَ یو مدعی چه دی - دَ دے نه نه معلومیږی چه ملکیت به ئے وړومبے وی - ځکه چه کیدا سے شی چه دَ هغه بل ملکیت ترے وړومبے وی - او کیدا سے شی چه وروستے وی - نو چه دواړه خبرے یکښی راتلے شوے - نو موږ دے دواړو خبرو لحاظ وکړلو - او موږ اووئیل چه گویا دَ دواړو تاریخ دَ ملکیت وړاندے

---

[1] په بحرالرائق کتاب کښې ئے دا تقسیم نقل کړے دے - او بیائے په خپل جوړ یو بل تقسیم دا سے جوړ کړے [illegible] نوی قسمونه پنځه سوه او دولس وغیره - که دَ چا شوق وی - نو دِ کوری ۱۲ مترجم

وُرِوسنو نه دے۔ بلکه یو دے۔ (نو ددے وجه نه به حکم کیږی دَ پاره دَدواړو په شریکه)
او په نزد دَ امام ابو یوسف رح به حکم کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ تاریخ ځکه چه ده ثابت
کړے دے دَ ځان دَ پاره په یقین سره ملکیت دَ دغه څیز په هغه وخت کښ کوم
چه ئے خوښے دے۔ او کوم مُدعی چه تاریخ دَ خپل ملکیت نه دے خوښے هغه خپل
وُسئے ملکیت په یقین سره ثابت وی۔ پاتے شوه دا خبره۔ چه دَ هغه ملکیت
دِ ثابت وی په هغه وخت کښ کوم چه خوښے دے دے خاوند دَ تاریخ
نو دا شکمنه خبره ده۔ دَ دے وجهِ نه ورسره مقابله نه شی کولے۔ (نو هغه خپل
وُسئے ملکیت ثابتوی اودے وړومبے۔ نو مونږ حکم وکړه دَ پاره دَ وړومبی۔
او دَ امام محمّد صاحب رح په نزد به حکم کیږی دَ پاره دَ هغه مدعی۔ چه تاریخ
دَ ملکیت ئے نه دے خوښے۔ ځکه چه دعوه دَ ملکیت دَ خاوند دَ تاریخ چه ده
هغه خاصه ده دَ تاریخ په وخت سره۔ او دعوه دَ مطلق ملکیت (کومه چه
بے تاریخه ده) هغه دعوه دَ ملکیت ده دَ اصل نه۔ او دغه وجه ده۔ چه
بعض خرخونکی په بعضو باندے رجوع کوی۔ او کوم زائد څیزونه چه دَ دعوی دَ
دغه څیز سره نښتی دی۔ یا تړے جدا دی۔ خو ورسره متعلق دی۔ حقدار
دَ هغے هم مستحق ګرځی۔ (دَ دے دواړو څیزو مطلب په تفصیل سره یو څو مسئلے
مخکښ تیرے شوے دی۔ ورته ګوره!) نو ملکیت به دَ هغه مدعی چه تاریخ
ئے نه دے خوښے مخکښ وی۔ دَ خاوند دَ تاریخ نه۔ په دے وجه هغه غوره
شه۔ دا (ټول تفصیل چه بیان شه) هاله دے۔ چه دَ دے دعوے څیز دَ دویم
په لاس کښ وی۔ اوکه دَ دے دواړو مدعیانو په لاس کښ وو۔ نو هم
دا رنګ حکم دے۔ (لکه چه مخکښنو څلورو قسمو وو) ځکه چه دَ دواړو قبضه ده
نو یو دَ بل نه غوره نه شه۔ په سبب دَ قبضے۔ او هغه بل ترے نه کم نه شه په
سبب دَ قبضے۔ اوکه دغه څیز په دے دواړو کښ دَ یو تن په قبضه کښ وو
نو که دواړو دَ خپل ملکیت یو تاریخ وخوو۔ یا دواړو ونه خوو تاریخ۔ نو دغه څیز
به دَ هغه مدعی شی۔ چه نه دے خاوند دَ قبضے۔ ځکه چه شاهدان ئے ډیر
ثابتونکی دی[1]۔ اوکه دواړو تاریخ وخوو۔ او تاریخ دَ یو وړومبے وو۔ نو بیا دغه
څیز دَ وړومبی تاریخ والا دے۔ او ددے دلیل په مخکښ تیر شوے دے۔ او بعضے

[1] په سبب دَ دے چه دوئ خپل مدعی له ثابتوی یو دا سے شے چه دَ بل په قبضه کښ دے۔ نو په اثبات کښ زیاته شو۔ ۱۲۔ مترجم

والیٔ چه امام محمّد صاحبؒ دَدے قول نه رجوع کړے ده ۔ او ویلی ئے دی ۔ چه شاهدان دَخاوند دَ قبضے غوره نه دی ۔ په شاهدانو دَ هغه مدعی بے قبضے ۔ چه تاریخ خوولے دے ۔ او نه په بل باندے ۔ ځکه چه دَ دواړو شاهدان په مطلق ملکیت ودریدلی دی او دواړو سبب دَ ملکیت نه دے خوولے ۔ نو وړومبیوالے او وروستیوالے برابر شه نو حکم به کیږی دَ پاره دَ هغه مدعی چه بے قبضے دے ۔ او شیخینؒ دا دلیل وائی چه کوم وخت چه دواړو مدعیانو تاریخ دَ خپل ملکیت اوخود ۔ او تاریخ دَ یو مخکښ وو دَ بل نه ۔ نو ) په دے وړومبیوالی سره دفعه راځی (یعنے دَ هغه بل مدعی دَ دعوے رد راځی) ځکه چه ملکیت دَ یو شیز چه دَ چا دَ پاره په یو وخت کښ ثابت شی ۔ نو بیا دَ بل دَ پاره دَ دغے نه وروستو هله ثابتیږی ۔ چه هغه ملکیت حاصل کړی دَ دغه مالک نه (مثلاً په بیعه ئے تر ے واخلی ۔ یا ئے ورته مالک اوبخی ) نو شاهدان دَخاوند دَ قبضے دَ تاریخ ذکر کولو په سبب دفعه کولے شول شاهدانو دَ مدعی بے قبضے لره ۔ په دے معنیٰ سره ۔ چه دا شاهدان قبول نه دی ۔ مگر هاله قبلیږی چه دوئ ثابت کړی حاصلول دَ ملکیت دَ دغه مالک نه چه خاوند دَ قبضے دے ۔ نو شاهدان دَخاوند دَ قبضے په دفعه باندے قبول دی ۔ او په دے بنا بانے ده که کور دَ جګړے دَ دواړو په قبضه کښ وو او دواړو په دَ ملکیت دعوه کوله ۔ او شاهدان ئے ودرول ۔ او تاریخ دواړو ذخود لکن تاریخ دَ یو وړومبے وو دَ بل نه ) نو دَ شیخینوؒ په نزد خاوند دَ مخکښ تاریخ غوره دے ۔ او دَ امام محمّد صاحبؒ په نزد به دغه کور دَ دواړو په شریکه شی ۔ او که یو تاریخ[۱۲] وخود ۔ او بل ئے نه خود ۔ نو دَ امام ابویوسفؒ په نزد به حکم کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ تاریخ ۔ ځکه چه شاهدان ئے وړومبی دی دَ شاهدانو دَ هغه یو نه ۔ چه تاریخ ئے نه دے خولے ۔ دَ دے مثال به داسے شی ۔ لکه چه دوه تنه دعوه کوی دَ یو شیز ۔ او هر یو وائی چه دا ما په پیسه آخستے دے دَ زید نه او یو تاریخ ښئ ۔ او بل نه ښئ ۔ نو خاوند دَ تاریخ غوره وی ۔ او دَ طرفینوؒ په نزد به حکم کیږی دَ پاره دَ مدعی بے قبضے ۔ او تاریخ له اعتبار نشته دے نو په کوم صورت کښ چه دَ مدعی بے قبضے تاریخ ذکر شوے وی ۔ او دَ خاوند دَ قبضے نه وی ذکر شوے ۔ په دے صورت کښ خو اتفاق دے ۔ چه شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره دی ۔ او که تاریخ دَ خاوند دَ قبضے ذکر شوے وی ۔ او دَ مدعی بے قبضے نه وی ذکر شوے ۔ په دے صورت کښ دَ طرفینوؒ په نزد هم

شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره دی -) ځکه چه شاهدان دَ خاوند دَ قبضے هله تبلیږی
چه په دے سره دفعه راځی . او داځائے دَ دفعے راتلل ثابت دی. په سبب دَ دے
چه شک پریوتے په دے خبره کښ چه خاوند دَ قبضے دا ملکیت خاص دَ مدعی
بے قبضے نه حاصل کړے دے . ځکه چه جایزه ده . چه شاهدان دَ مدعی بے
قبضے که تاریخ وخئی . هغه دے وړومبی وی . نو چه شک راغے په دے خبره
کښ چه دَ خاوند دَ قبضے په شاهدانو سره دفعه دَ شاهدانو دَ مدعی بے قبضے
راځی او که نه ؛ نو شاهدان دَ خاوند دَ قبضے قبول نه شول سره دَ شک او دَ احتمال
نه. ( بلکه شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره شو-)

**مسئله** :- که دواړو مدعیانو دعوه کوله دَ میراث - او هر یو شاهدان ودرول
په دے خبره چه دا ماته دَ خپل پلار نه میراث پاتے شوے دے - نو په کوم
څیز چه ئے جګړه ده - که چرے دغه څیز دَ دریم په قبضه کښ وی - او
دواړو مدعیانو[13] تاریخ نه وی خولے (چه په کوم تاریخ راته میراث پاتے شوے)
یا دواړو[14] یو تاریخ خولے وی . نو دغه څیز به دَ دواړو نیم نیم شی - ځکه چه
دواړه برابر دی په حجت (دلیل) کښ - او که دواړو تاریخ وخود. او تاریخ دَ یو
وړومبے[15] وو - نو بیا به دغه څیز دَ وړومبی تاریخ واله شی - او دا قول دے
دَ شیخینو رح - او امام ابو یوسف رح به وړومبیه داویل چه دغه څیز به په دے صورت
کښ دَ دواړو نیم نیم رسی - او دا یه ئے هم ویل - چه که دعوه دَ مطلق ملکیت
وه - ( هر یو ویل چه ځما دے -) او دواړو تاریخ خود - خو تاریخ دَ یو وړومبے وو
نو هم به دَ دواړو نیم نیم رسی - لکن امام ابو یوسف صاحب رح بیا رجوع وکړه
راو کړځیده هغه حکم ته کوم چه مخکښ تیر شوے دے - او دَ امام محمد صاحب
نه خپل شاګرد ابو حفص رح دَ دے مسئلے په حکم کښ چه کومه خبره نقل کړیده
هغه - هغه خبره ده - کوم چه امام اعظم رح کړے - او ابو سلمان شاګرد چه تر دے
کومه خبره نقل کړیده - هغه داده - چه دَ میراث په دعوه کښ تاریخ له اعتبار
نشته - نو دَ دواړو مدعیانو دَ پاره به حکم کیږی په شریکه سره چه نیم
دَ یو دے نیم دَ بل ) اګر که دَ یو تاریخ وړومبی وی - وجه داده چه دی
دواړه دَ خپل وړومبی ملکیت دعوه نه کوی . زه وایم پښا ئیږی چه دا حکم دے په

[13] یعنے دا دواړه کریا دا دعوه کوی چه دا دے مالک مونږ وارث کړو ګنی وو - او دا هغوی بیا ملکیت مونږ ته حاصل شویدے - نو دلته شوه لکه چه دواړه وارث کړو ونکی حاضر وی او په ده شی ئے دعوه کړے وی او هر یو په خپل ملکیت مطلقه شاهدان ودرولی وی - او دَ ملکیت تاریخ دواړو نه وی خولے - نو حکم به کیږی دَ پاره دَ دواړو - چو یو دا رنګ حکم شته دلته ۱۲ مترجم ؛

شان دَ حکمِ دَ هغه صورت شی چه دواړه مدعیان دَ یو شئ دَ قیمةً آخستلو دعوه کوی
دَ جدا جدا سړی نه - (مثلاً یو وائی چه داشے ما دَ زید نه په بیعه آخستے دے - او بل
وائی چه ما دَ بکر نه په بیعه اخستے) ځکه چه دَ کوم دوو تنو دَ میراثے چه دا دواړه
دعوه کوی - هغه داسے دی لکه خرڅونکی په دے خبره کښی - چه ملکیت دَ هغوئ نه
حاصل کړے شوے دے - لکه چه اخستونکے دَ خرڅونکی نه ملکیت حاصلوی - (نو
دَ میراث دعوه داسے شوه - لکه دعوه دَ قیمةً آخستلو -) نو چا چه تاریخ له اِعتبار
نه دے ورکړے په هغه صورت کښی چه دوه مدعیان دَ قیمة اخستلو دعوه کوی
دَ جدا جدا سړی نه - بنا ئیږی چه هغه دَ میراث په دعوه کښی هم تاریخ معتبر
نکړی - نو چا چه دَ دے نه خلاف کړے دے - پرِ اعتراض لازمیږی - او دَ دے
اعتراض نه خلاصے گران دے - لکن کہ موږ اووایو چه روایتونه دوه دی
(نو بیا دَ اعتراض نه خلاصے آسان دے) نو خلاصه خبره دا ده چه په صورت
دَ دعوه دَ قیمةً اخستلو کښی دَ جدا جدا سړی نه تاریخ له اعتبار شته او که نه؟
په دے کښی مختلف روایتونه دی - لکه چه وړوستو به ذکر شی - او دارنګ میراث
دے - نو دَ دواړو په حکم کښی فرق نشته - چرِ اعتراض لازم نرشه - (نو
گویا په کوم روایت کښی چه دَ قیمةً اخستلو په دعوه کښی چه خرڅونکے جدا جدا وی
تاریخ له اعتبار ورکړے شوے دے - دَ هغے روایت په بنا په صورت دَ دعوے
دَ میراث کښی هم تاریخ له اعتبار شته دے - او په کوم روایت کښی چه هلته تاریخ
له اعتبار نه دے ورکړے شوے دَ هغے په بنا دلته هم تاریخ له اعتبار نشته) او
که یو مدعی[۱۶] تاریخ وخوو (چه دا ما ته په فلانی تاریخ میراث پاتے شویدے
او هغه بل تاریخ او نه خوو - نو حکم به کیږی - چه نیم دَ یو شه - نیم دَ بل - ځکه چه
دوئ دواړو دعوه کړیده دَ ملکیت حاصلولو دَ جدا جدا سړی نه - نو په دے کښی
تاریخ معتبر نه دے - او بعض وائی چه دَ امام ابویوسف صاحب په نزد به دَ خاوند
دَ تاریخ دَ پاره حکم کیږی - او که دَ جگړے دغه شئ دَ دواړو مدعیانو په قبضه
کښی وو - نو هم دارنګ حکم دے[۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰] - (لکه چه په څلورو واړو قسمونو کښی تیرشو)
او که دَ یو مدعی په قبضه کښی وو - او دواړو تاریخ نه وو[۲۱] خولے یا دواړو یو تاریخ[۲۲] خولے
وو - نو حکم به کیږی دَ پاره دَ مدعی بے قبضے - او که دواړو تاریخ خولے وی[۲۳] - او
تاریخ دَ یو وړومبے وی - نو بیا به دغه شئ دَ هغه یو شی - چه تاریخ ئے وړومبے دے.

اوځ امام محمدؒ صاحبؒ په نزد د مدعي بے قبضے شي۔ ځکه چه دلته (د امام محمدؒ صاحبؒ په نزد) تاریخ له اعتبار نشته۔ اوکه یو تاریخ ځوله وی۔ او بل نه وی خوله۔ نو بیا به رسی د مدعي بے قبضے۔ او په دے حکم ځمونږ درے واړه اِمامان متفق دی۔ او بعض وائی چه د امام ابو یوسف صاحبؒ په نزد به دغه شیز رسی د خاوند د تاریخ۔ اوکه دواړو مدعیانو تاریخ اوخود د ملکیت د هغه چا چه دغه شیزورته د هغه نه میراث پاتے شوے دے۔ (مثلاً هر یو وئیل۔ چه دا ماته د خپل پلار نه میراث پاتے شویدے۔ او ځما پلار ئے مالك وو د فلانی تاریخ نه) نو په دے صورت کښ ورومبیوالے د تاریخ معتبر دے په اتفاق سره۔

**مسئله:**۔ کر دواړو مدعیانو د یو شیز د قیمۃً اخستلو دعوه کوله۔ (مثلاً هر یو وئیل چه دا شیز ما په بیعه آخستے دے د زید نه) او دواړو تاریخ و نه خود۔ یا ئے یو تاریخ وخود۔ نو دغه شیز به د دواړو مدعیانو نیم نیم وُرسی۔ ځکه چه دا دواړه برابر دی په حجت (دلیل) کښ۔ اوکه دواړو تاریخ وخود۔ او تاریخ د یو ورومبے وو۔ نو حکم به کیږی د پاره د ورومبی تاریخ والا په اتفاق سره ځمونږ د عالمانو په خلاف د هغه صورت نه چه دواړه مدعیان دعوه کوی د قیمۃً اخستلو د جدا جدا سری نه لیو وائی چه دا ما په بیعه اخستے دے د زید نه۔ او هغه بل وائی چه دا ما په بیعه آخستے دے د بکر نه۔ نو په دے صورت کښ تاریخ له اعتبار نشته) ځکه چه دا دواړه مدعیان په اصل کښ ثابتوی ملکیت د دغه شیز خپلو خرڅونکوله۔ (یعنے یو وائی چه زید ئے مالك وو۔ بل وائی چه بکر) او د خرڅونکو د ملکیت تاریخ نه دے خوله شوے (چه د کوم تاریخ نه ئے مالک شوی وو) نو مدعی چه د خپلے بیعے تاریخ خئ۔ د دے تاریخ اعتبار نشته۔ نو داسے شوه۔ لکه چه دواړه خرڅونکی (یعنے زید بکر) حاضر شوی وی۔ او دواړو شاهدان وړ رولی وی۔ په خپل ملکیت باندے بے د ذکره د تاریخ نه۔ نو شی بر د دواړو۔ او هرچه دے په دے مسئله کښ (چه دواړو مدعیانو دعوه کړے وی د قیمۃً اخستلو د یو سړی نه۔ مثلاً د زید نه) نو دواړه مدعیان متفق دی۔ په دے خبره۔ چه ملکیت مخکښ د زید وو۔ خو مختلف دی په ورو ستنی ملکیت کښ۔ نو خاوند د ورومبی تاریخ چه دے۔ هغه ثابت کړی دی حاصلول د ملکیت د زید نه (چه ما د زید نه په بیعه

---

له یعنے بیا ځمونږ دے درے واړو امامانو په نزد شاهدان د ورومبی تاریخ والا غوره دی۔ لکه چه ښکلی دی په هندیه کښ۔ ۱۲۔ مترجم

آخستې دی - په داسې وخت کښې چه په هغې کښې ورسره دغه بل مدعی جګړه نه کوي (یعنې په بابت د وړومبني تاریخ کښې - بلکه هغه چه دعوه کړې ده - خپل تاریخ ئې ورسته خولې دی) نو حکم به کیږي - په مالکوالي دخاوند د وړومبي تاریخ سره - په دغه وړومبني تاریخ کښې - بیا به دا دې نه وروستو حکم نه کیږي د پاره د بل مګر هغه چه ملکیت حاصل کړي د دې مالک نه (مثلاً د ده نه په بیعه واخلي - او دوئیم مدعی دده نه ملکیت نه دی حاصل کړی - بلکه هغه وائي چه ما د زید نه په بیعه آخستې دی - نو د دې وجې نه خاوند د وړومبني تاریخ غوره شه) او که یو تاریخ د بیعې اخوو - او بل اونه خوو - نو بیا دغه شیز د خاوند د تاریخ دی په اتفاق سره ځمونږ د عالمانو - ځکه چه خاوند د تاریخ ثابت کړیدی قیمة اخستل ځان لره په داسې وخت کښې چه بل ورسره په دغه وخت کښې جګړه نه کوي نو حکم به کیږي د پاره دده - تر هغې پورې چه معلومه شي - چه هغه بل چه قیمة اخستي وې د ده نه وړومبې اخستې دی - (یعنې د هغه بیعه د ده د بیعې نه وړومبۍ وه - نو بیا به د هغه د پاره حکم کیږي) په خلاف د هغې نه چه دوه تنه دعوه کوي د قیمة اخستلو د دوؤ تنو نه (یو وائي چه ما د زید نه په بیعه اخستې - او بل وائي چه ما د بکر نه په بیعه اخستې دی) او یو تاریخ د بیعې ښئي او بل نه ښئي - په دې صورت کښې به حکم کیږي - چه دا د دوارو مدعیانو نیم نیم شه - ځکه چه دواړه مدعیان د یو بل نه د وړومبي والي احتمال لري - (کیدې شي چه دوه وړومبیه په بیعه آخستې ئې - او کیدې شي چه دې بل وړومبیه په بیعه آخستې ئې) بیا هر یو د خپل خرڅونکي د طرف نه د هغه د ملکیت په ثابتولو کښې جګړه کونکې دی - (ګویا یو وائي چه مالک ئې زید وو - او بل وائي چه بکر وو) او دا یو مدعی چه د خپلې بیعې تاریخ ښئي - د دې نه دا خبره نه معلومیږي - چه کونې د ده د خرڅونکي ملکیت وړومبې وو - ځکه چه ممکنه ده چه د دغه بل مدعی خرڅونکې ځکښې مالک شوې وي - د دغه شیز - نو د دې وجې نه مونږ اووئیل چه حکم به کیږي د پاره د دوارو مدعیانو - او ځمونږ په دې مسئله کښې (یعنې په هغې صورت کښې چه دواړه مدعیان دعوه کوي د قیمة اخستلو د یو سړي نه - او یو مدعی تاریخ ښئي - او بل نه ښئي) دواړه مدعیان په دې خبره متفق دي - چه ملکیت د یو سړي وو - (مثلاً د زید وو - چه د دواړو دغه شیز ئې خرڅ کړې) نو په دې صورت

کښې دَ دوارو مدعیانو حاجت دِے خبرے تہ دے . چہ ثابت کړی هغه سبب چه په کوم سره ملکیت دَدغه څیز دَ زید نہ دهٔ ته رانقل شوے دے . او دے خبرے تہ ئے حاجت نشته چه ثابت کړی ملکیت خپل خرڅونکی لره . او دَ کوم مدعی شاهدان تو چه تاریخ خولے دے . دَ هغه په حق کښې سبب دَ ملکیت مخکښې دے . (یعنے بیعه ئے مخکښې ده) تو خاوند دَ تاریخ غوره شه . او که دغه څیز دَ جګړے دَ دوارو په قبضه کښې وو . نو بیا دَ دوارو نیم نیم دے . ۲۹-۳۰-۳۱ مګر که دوارو تاریخ وخود . او تاریخ دَ یو مخکښې وو ۳۲ . نو بیا به حکم کیږی دَ پاره دَ وړو مبی تاریخ واله . او که دَ یو مدعی په قبضه کښې وو . نو بیا دَ خاوند دَ قبضے دے . برابره خبره ده ۳۳-۳۴-۳۵ . که تاریخ ئے خولے وی . او که ئے نه وی خولے . مګر که دوارو تاریخ وخود . او تاریخ دَ مدعی بے قبضے مخکښې وو ۳۶ . نو بیا به دَ مدعی بے قبضے شی . نو خلاصه خبره دا ده . چه مدعی بے قبضے . سره دَ خاوند دَ قبضے نه دوارو که دعوه دَ مطلق ملکیت وکړه . (هر یو او وئیل چه دا څما دے) نو مدعی بے قبضه غوره دے . په ټولو حالتونو کښې . مګر که دوارو تاریخ خولے وی . او تاریخ دَ خاوند دَ قبضے وړومبے وی . نو بیا به حکم کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے . لکه چه حکم کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے په هغه صورت کښې چه دواړه دعوه دَ کورنی پیدائښت کوی . (مثلاً وائی چه دا څاروے څما دے . او څما دَ خپل څاروی نه پیدا دے) یا دعوه کوی دَ یو داسے سبب دَ ملکیت چه یو ځل وی . لکه پئ لوشل شو . (مثلاً وائی چه دا پئ څما دی . ما لوشلی دی دَ خپلے بیزے نه) دا دعوه هم په معنیٰ کښې داسے ده . لکه دعوه دَ کورنی پیدائښت (نو حکم به کیږی . دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے .) او که دعوه دَ یو داسے سبب ده . چه بار بار کیدے شوه . لکه ودانے (مثلاً خاوند دَ قبضے وئیل . چه دا څما دے . ما ودان کړے دے . او مدعی بے قبضے هم دا رنګ وئیل) نو بیا به حکم کیږی دَ پاره دَ مدعی بے قبضے .

**مسئله** :- که مدعی بے قبضے شاهدان ودرول په دے خبره . چه دا څیز دَ دوو کالونه څما دے . او خاوند دَ قبضے شاهدان ودرول په دے خبره . چه دا دَ دریو کالونه څما په قبضه کښې دے . نو حکم به کیږی دَ پاره دَ مدعی بے قبضے ځکه چه خاوند دَ قبضے په خپل ملکیت شاهدان نه دی ودرولی . (چه زه ئے کوتے مالک یم . خو په دے خبره ئے شاهدان ودرولی دی چه دا څما په قبضه کښې دے)

اودَ امام اعظم صاحب رح نه دا روایت دے ۔چه دغه څیز به دَ خاوند دَ قبضے شی.
ختم شه (یعنے مضمون دَجامع الفصولین)

**مسئله** :- په ایضاح الاصلاح کتاب کښې دَ ذخیرے کتاب نه داخبره نقل ده چه دَ یو شی په بابت کښې دَ دوؤ تنو جګړه شوه ۔ اوهر یو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول نوکه دَ یو تاریخ دَ بل نه وړومبے وی ۔ توهغه غوره دے ۔ اوکه نه وی ۔ یعنے یو تاریخ خولے وی ۔ اوبل نه وی خولے ۔ یا دواړو یو تاریخ خولے وی ۔(یا یو هم نه وی خولے) نوکه دواړه خاوندان دَ قبضے وی ۔ جوړ دواړه برابر دی ۔ او دارنګ که دواړه بے قبضے وو ۔ اودَ مطلق ملکیت دعوه ئے کړے وه ۔ ( یعنے سبب دَ ملکیت ئے نه وو خولے ۔ خو دائے ویلی وُو ۔ چه دا شے څما دے ۔ نو هم دواړه برابر دی) او دا رنګ که دعوه دَ ملکیت ئے کړے وی ۔ او سبب دَ ملکیت ئے هم خولے وی ۔(نو هم دواړه برابر دی) مګرکه دواړو ملکیت حاصل کړے وی دَ یو سړی نه (مثلاً هر یو دعوه کړی وی ۔چه دا ما زید نه په بیعه اَخستے دے) او یو تاریخ خولے وی ۔ او بل نه وی خولے ۔ نو خاوند دَ تاریخ غوره دے ۔ اوکه یو خاوند دَ قبضے وو ۔ اوبل بے قبضے نو بے قبضے غوره دے ۔ نو دعوه دَ مطلق ملکیت شامله ده ذکرشوؤ صورتونه له. مګرکه دواړو دَ ملکیت سره دعوه دَ یو فعل هم کوله ۔ مثلاً هر یو مدعی ویل چه دا مرئے څما وو ۔ او ما آزاد کړے دے ۔ یا ما مدبّر کړے دے (یعنے ما ورته ویلی دی ۔ چه نه څما دَ مرګ نه پس آزاد ئے ۔) نو بیا خاوند دَ قبضے غوره دے ۔ په خلاف دَ هغې صورت نه چه دواړه مدعیان دعوه کوی ۔ اوهر یو وائی چه دا څما مرئے دے ۔ ما مکاتب کړے دے (یعنے ما ورسره دومره روپئی کړی دی ۔ چه دا اداکړی نوآزاد به شی) نو په دے صورت کښې دواړه مدعیان برابر دی ۔ ځکه چه دوئ دواړه بے قبضے دی ۔ په سبب دَ دے چه مکاتب باندے قبضه نشته ۔ په خلاف دَ آزاد کړی شوی سړی نه ۔ ځکه چه هغه دَ مالک په قبضه کښې وی چه دروکے وی. اوکه یو مدعی ویل چه داځما مرئے دے ۔ ما مکاتب کړے دے ۔ اوبل ویل چه داځما مرئے دے ۔ ما مدبّر کړے یا آزاد کړے دے ۔ نو دا (دوئم) مدعی غوره دے ۔ نو قاعده داده ۔ چه کوم شاهدان یو شے زیات ثابتوی ۔ هغه غوره وی ۔ ختم شه مضمون دَ ایضاح الاصلاح ۔

**مسئله** :- دَ امام محمد صاحب رح نه دَ اوبنا نو دَ قطار په بابت کښې هشام دا

مسئله نقل کړے ده - که په مخکنی اوبن یو سړے سور وو - او په منځنی اوبن یو بل سړے سور وو - او په آخری اوبن یو دریم سړے سور وو - او هر یو دَدے دریواړو نه دَدے ټول قطار دعوه وکړه (یعنے هر یو اوویل چه دَ اوبنانو دا ټول قطار ځما دے -) نو دَ هر یو مدعی به هغه اوبن شی - چه په کوم سور دے - او دَ مخکینی اوبن او دَ منځنی اوبن په منځکښ چه څه اوبنان دی - هغه به دَ مخکینی سړی شی - او دَ میئځنی اوبن او دَ اخیری اوبن په منځکښ چه څه اوبنان دی - هغه به نیم دَ مخکینی سور شی او نیم دَ منځنی - او کوم سور چه دَ ټولونه وروستے دے - دَ هغه به صرف هغه اوبن ورسی - چه په کوم (دَ خیره سره) سور دے - پس که دے دریواړو مدعیانو شاهدان وړدرول په خپله خپله دعوه باندے - نو په کوم اوبن چه کوم یو سور دے دغه اوبن به دَ هغه نورو دوو مدعیانو شی - په شریکه - او دَ مخکنی اوبن او دَ منځنی اوبن په منځکښ چه څه اوبنان دی - هغه به دَ منځنی او دَ وروستنی سړی نیم نیم شی - او کوم اوبنان چه دَ منځنی اوبن او دَ اخیری اوبن په منځکښ دی - هغه به نیم دَ وروستنی شی - او پاتے نیم به نیم دَ منځنی شی - او نیم دَ مخکنی " وجیز په دعاوی کښ "

**مسئله** :- دَ یو سړی په قبضه کښ یو مریے وو - یل پرے دعوه وکړه چه دا مریے دَ فلانی وو - ما ترے لس ورځے کیږی چه قیمةً اخستے دے - او شاهدان ئے وړدرول - او خاوند دَ قبضے شاهدان وړدرول په دے خبره - چه دا مریے دَ یو بل سړی وو - یوه میاشت کیږی - چه ما ترے په دومره اخستے دے او قیمت ئے اوخوو - (چه په دومره روپئ رح اخستے دے مثلاً) نو امام ابو یوسف صاحب رح په خپل دوئیم قول کښ وئیلی دی - چه دغه مریے به دَ وړومبی تاریخ واله شی - یعنے دَ خاوند دَ قبضے - او امام محمد صاحب رح په خپل وروستنی قول کښ وئیلی دی - چه دَ مدعی به قبضے به شی - او دَ امام محمد صاحب رح دَ وړومبی قول په بنا به دَ خاوند دَ قبضے وی - ځکه چه تاریخ ئے وړومبے دے - او دَ امام ابو یوسف صاحب رح دَ وړومبی قول په بنا به دَ مدعی بے قبضے وی " بزازیه "

**مسئله** :- که کور دَ یو تن په قبضه کښ وو - او دعوه ئے وکړه نورو دوو تنو - یو دَ ټول کور دعوه وکړه - او بل دَ نیم - او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وړدرول

نو (کور به څلور حصے کړے شی) چه چا دَ ټول دعوه کړے ده - درے حصے به هغه واخلی - او چا چه دَ نیم دعوه کړے - یوه به هغه واخلی - دا دَ امام صاحب رح قول دے په دے کښې ئے دَ جګړے طریقے له اِعتبار ورکړے (کومے طریقے ته چه طریقه دَ منازعه وئیلے کیږی -) ځکه چه کوم مدعی دَ نیم کور دعوه کړے - هغه دَ دغه بل مدعی سره په نیمه حصه کښې جګړه نه کوی - او په نیمه کښې کوی - نو نیمه حصه خو دغه بل ته پوره پاتے شوه - او په دے پله نیمه حصه کښې دَ دواړو جګړه شوه جوړ دغه نیمه حصه موږ دَ دواړو په منځکښې تیمه کړه - (نو چا چه دَ ټول دعوه کړے - دَ هغه ټولے درے حصے شوے - او دَ هغه بل صرف څلورمه ورسیده) او صاحبین رح وائی چه دغه کور به درے حصے کیږی - نو صاحبینو رح طریقه دَ عول[1] او دَ مضاربت معتبره کړے ده - نو چا چه دَ ټول دعوه کړے - هغه به خپل ټول حق سره دوه حصے اَخلی - او چا چه دَ نیم دعوه کړے - هغه به یوه جوړ کور به درے حصے شی - صاحب دَ هدائے کتاب وائی - چه دَ دے مسئلے دَ پاره مثالونه هم شته - (په هغے کښې امام صاحب رح دَ منازعت طریقه معتبره کړے - او صاحبینو رح دَ عول او دَ مضاربت طریقه معتبره کړے) او دَ دے مسئلے دَ پاره ضدونه هم شته (په هغے کښې امام صاحب رح دَ عول طریقه معتبره کړے - او صاحبینو رح دَ منازعے طریقه معتبره کړے) خو دا مختصر کتاب (هدایه) دَ هغے مسئلو ګنجائیش نه لری - او هغه ما په زیادات کتاب کښې ذکر کړی دی -

او که صورت دَ مسئلے داسے وو - چه کور مثلاً دَ زید او دَ بکر دواړو په قبضه کښې وو - او زید ئے دَ ټول دعوه کوله - او بکر ئے دَ نیم دعوه کوله - او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول - نو کور به ټول دَ زید شی - نیم خو ئے هسے دے - او په نیم به ورله قاضی حکم وکړی - ځکه چه زید دَ دے نیمے حصے په بابت کښې مدعی بے قبضے دے - جوړ دَ ده شاهدان به غوره شی - او کومه نیمه حصه دَ کور چه دَ زید په قبضه کښې ده - بکر دَ هغے نیمے دعوه نه کوی - (نو دا اعتراض نه لازمیږی چه بکر خو هم دَ هغے نیمے په بابت کښې مدعی بے قبضے دے - نو ښائیږی چه په هغے

[1] عول په لغت کښې ظلم او زیاتی ته وئیلے شی - او دَ فقهے په اصطلاح کښې خاص زیاتی ته وائی - او مضاربت شرکت ته وئیلے کیږی - او دلته مراد دا دے - چه دواړه مدعیان دَ یو بل سره دَ دغه کور په هر جز کښې په خپله خپله حصه سره مقابله کوی ۱۲ - -

نیمه کښې دَ بکر شاهدان غوره شي) ځکه چه دَ بکر دعوه دَ نیمې ده. او دغه نیمه ئې په قبضه کښې ده. او که دَ بکر دعوه دغه نیمې ته (کومه ئې چه په قبضه کښې ده) وُنه ګرزولے شي. نو دے به ظلم کونکے شي. دَ دغه نیمې په نیوَ سره. (نو دَ دے وجے نه موتږ او وئیل چه دَ بکر دعوه دَ دغه خاصے نیمې ده. او دَ هغه بلې نیمې دعوه ئې نه ده کړے) او قاضي حکم نه شي کولے بے دَ دعوے نه. جوړ هغه بله نیمه دَ زید په قبضه کښې هسے پاتے شوه." هدایه"

**مسئله**:- که یو سړی په بل بانده دَ زرو روپو دعوه وکړه. او دَ دهٔ په جواب کښې مدعا علیه او وئیل. چه ستا ما ته هرګز څه نه وو. (نو چه مدعي پخپله دعوه شاهدان وُدرول) او س مدعا علیه شاهدان وُدروی په دے خبره چه هغه ما اداکړي دي. یا شاهدان وُدروی په دے خبره چه دَ هغه نر تا ما ته ابراکړیده (یعنې ما ته ئې پرېښې دي) نو دا شاهدي قبوله ده. او که مدعي دعوه وکړه دَ زرو روپو او مدعا علیه دَ ده په جواب کښې او وئیل. چه ستا ځما څخه یا ما ته هرګز څه شے نه وو. او زهٔ تا نه پیژنم. جوړ مدعي شاهدان وُدرول په مال بانده (چه قرض م درکړے دے. مثلاً) او س مدعا علیه شاهدان وُدروی. په دے خبره چه هغه ما اداکړي دي. یا په دے خبره چه تا ما ته دَ هغے نه ابراکړے ده. نو امام محمد صاحب په جامع صغیر کتاب کښې وئیلي دي چه دا شاهدي قبوله نه ده. او په قدوري کتاب کښې ځینو دَ عالمانو دَ طرف نه مذکور دي. چه قبوله ده.

**مسئله**:- که یو قرضداری په خپل غریبوالی شاهدان وُدرول. (چه زهٔ عاجز غریب یم) او خاوند دَ قرضے شاهدان وُدرول دَ هغهٔ په مالدار والی بانده. نو شاهدان دَ مالداری غوره دي.

**مسئله**:- یو سړی په زید بانده دعوه وکړه. چه دهٔ زما ته (۱۰۰۰) روپۍ آخستے دي. او دَ دے مال پوره پوره بیان ئې وکړو. نو زید شاهدان وُدرول. په دے خبره چه دے مدعي اقرار کړے دے. چه دغه مال کوم چه ده ئې پوره بیان کړے دے. دَ دهٔ نه یو بل سړی آخستے دے. چه فلانے وو. او مدعي دَ دے اقرار کولو نه انکار وکه. (چه ما دا اقرار نه دے کړے) نو امام محمد صاحب رح وائي. چه په دے سره دَ مدعي دعوه نه باطلیږي. (یعنې نه بے کاره کیږي) او شاهدان ئې نه بے فائدے کیږي. ځکه چه دَ دواړو جانبو په شهادتونو کښې دَ تاریخ ذکر نشته دَ

نو مونږ به وایو۔ چه گویا مینه دغه مال هغه فلانی دَ دے مدعی نه آخستے وو۔ نو بیا ئے دے مدعی ته واپس کړے وو۔ او بیا دَ دے مدعی نه زید آخستے وو۔ نو حکم به کیږی۔ دَ پاره دَ مدعی په زید باندے په دغه مال سره) او که دَ دے مدعی دلسے دعوه کړے وی۔ چه دے زید څمانه زر (۱۰۰۰) روپئ آخستے دی۔ او په دے ئے شاهدان وُدرول۔ بیا زید په دے خبره شاهدان وُدرول۔ چه دے مدعی اقرار کړے دے۔ وئیلی دی۔ چه دغه مال څمانه دَ زید فلانی وکیل آخستے دے نو په دے سره دَ مدعی دعوه بیکاره شوه۔ او شاهدان ئے بے فائدے شو۔

**مسئله** :- یو سړی دعوه وکړه۔ دَ یو داسے څیز چه هغه دَ بل په قبضه کښ وو۔ او په دے خبره ئے شاهدان وُدرول چه دا څما دے۔ بیا مدعاعلیه شاهدان وُدرول په دے خبره چه دَ مدعی دے شاهدانو (دَ ځان دَ پاره) دَ دے څیز دعوه کړے وه۔ نو (دَ مدعاعلیه) دا شاهدان قبول دی۔ او دَ مدعی شاهدان بیکاره شو۔

**مسئله** :- که دوه تنه دَ یو څیز په بابت کښ سره و نختل۔ یو په دے خبره شاهدان وُدرول چه دا څیز دَ یوے میاشتے نه څما په قبضه کښ وُو۔ او هغه بل په دے خبره شاهدان وُدرول۔ چه دا اوس څما په قبضه کښ دے۔ نو کوم یو چه دَ حالی قبضے دعوه کړے۔ قاضی به دغه څیز دَ هغه په قبضه کښ وکړوی او دا ئیلۍ حکم دے۔ که یو شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا دَ یوے میاشتے نه څما په قبضه کښ دے۔ او هغه بل شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا دَ جُمعے دَ وُرزے نه څما په قبضه کښ دے۔ نو قاضی به ئے دَ جمعے واله په قبضه کښ وکړی دی۔

**مسئله** :- دَ یو سړی په قبضه کښ یو مرئے وو۔ بل پرے دعوه اوکړه چه دا څما مرئے دے) نو خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا مرئے دَ شلو کالو نه څما دے۔ او مدعی گواهان وُدرول په دے خبره چه دا څما مرئے دے۔ او دَ یو کال نه څما په قبضه کښ وو۔ تر دے پورے چه خاوند دَ قبضے دانه په زوره واخستلو۔ نو دغه مرئے به دَ خاوند دَ قبضے وی۔

**مسئله** :- که سړے او ښځه په جگړه شو۔ نو سړی شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا کور څما دے۔ او دا ښځه مِ ویټره ده۔ او ښځے شاهدان وُدرول په

قیدی ۵ ساله فضل عبدالمطلب [illegible] حال سنٹرل جیل پشاور



دے خبره چه دا کور ځما دے اودا سړے ځما مرئے دے - او حال دا وو چه دغه کور دَ دواړو په قبضه کښې نه وو - ( یعنې دې دواړه بے قبضے وُو ) نو دغه کور به نیم دَ یو شي - او نیم دَ بل - او که کور په دے دواړو کښې دَ یو تن په قبضه کښې وو - نو دَ هغه په قبضه کښې به پریخودے شي - ځکه چه دَ دواړو شهادتونه دَ کور په بابت کښې تکراؤ شوی دی ( نو دواړه شهادتونه به او غورځیږی - او کور به دَ خاوند دَ قبضے په قبضه کښې پاتے شي ) او حکم به کیږی دَ پاره دَ هر یو په آزادوالی سره - ( یعنې سړے آزاد دے مرئے نه دے - ښځه آزاده ده - وینزه نه ده - ) او په دے دواړو کښې دَ یو شاهدان دَ هغه بل په مرئي توب باندے قبول نه دی - ځکه چه دواړه شهادتونه تکراؤ شوی دی - او بعض عالمان وائی چه ښا ئیږی چه دغه کور که په دے دواړو کښې دَ یو تن په قبضه کښې وی - نو حکم وکړے شي په شاهدانو دَ مدعی بے قبضے سره - ځکه چه دَ ملک مطلق په دعوه کښې شاهدان دَ خاوند دَ قبضے مقابله نه شي کولے دَ شاهدانو دَ مدعی بے قبضے سره - ( چه دواړه دعوه کوی - چه دا شے ځما دے - او سبب دَ ملکیت نه ښئی - نو شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره وی - )

**مسئله** :- دَ امام محمد صاحب رح نه منقول دی - چه دَ یو سړی په قبضه کښې یو مرئے وو - او بل پرے دعوه وکړه - او شاهدانو ئې اُودرول چه دا مرئے ځما دے - او ځما په ملکیت کښې ( یعنې ځما دَ وینځے نه ) پیدا شوے دے - بیا یو بل مدعی هم شاهدان اُودرول په دے خبره چه دا مرئے ځما دے او ځما په ملکیت کښې پیدا شوے دے - چه قاضی دَ دواړو مدعیانو دَ پاره حکم وکړ - په شریکه سره - بیا یو دریم مدعی شاهدان اُودرول په دے خبره چه دا ځما مرئے دے - او ځما په ملکیت کښې پیدا شوے دے - نوادر به قاضی حکم کوی - چه - چه دا مرئے دَ دے دریم مدعی شو - ولے هله که هغه دوؤ مدعیانو چه دَ کوم دَ پاره فیصله شوے وه - دوباره خپل شاهدان اُونه درول په دے خبره - چه دا مرئے ځموږ دے - ځموږ په ملکیت کښې پیدا شوے دے - او که دَ دغه دوؤ مدعیانو نه یو مدعی خپل شاهدان په دے خبره اُودرول - نو حکم به کیږی چه نیم مرئے دَ هغه دے - او نیم دَ دے دریم - " قاضیخان په دعوه دَ ملکیت بسبب کښی "

**مسئله:**۔ دَ بکر په قبضه کښې يوه بيزه وه۔ زيد پرے دعوه وکړه۔ اوشاهدان ئے وُدرول په دے خبره۔ چه دا څما ده۔ او څما په ملکيت کښې پيدا شوے ده نو قاضي حکم وکړو چه دا دَ زيد شوه۔ پس دَ هغے نه عمر دعوه وکړه۔ او شاهدان ئے وُدرول۔ چه دا بيزه څما ده۔ او څما په ملکيت کښې پيدا شوے ده۔ نو اوس به زيد ته حکم کيږي۔ چه ته خپل شاهدان دوباره اودروه ځکه چه وړومبي شاهدي په دے جګړه کونکي يعنے په عمر نه ده شوے او هغه دَ عمر په خلاف نه شي دليل کيدے۔ (نو اوس ضروري ده چه زيد خپل شاهدان دَ دهٔ په مقابله کښې وُدروي۔) نو که زيد دوباره شاهدان تير کړل۔ نو هغه غوره دي دَ شاهدانو دَ عمر نه۔ ځکه چه زيد خاوند دَ قبضے دے۔ او که زيد دوباره شاهدان وُنه درول۔ نو بيزه به دَ عمر شي۔ چه مدعي دے۔ او کوم وخت چه دَ عمر دَ پاره حکم وکړے شه۔ که پس دَ هغے نه زيد شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا بيزه څما ده۔ څما په ملکيت کښې پيدا شوے ده۔ نو بيا به قاضي حکم کوي۔ چه بيزه دَ زيد شوه۔ ځکه چه زيد په يو داسے شي شاهدان وُدرول۔ چه که په هغے ئے مينه شاهدان وُدرولے وے۔ نو زيد به غوره وو۔ نو دا رنګ وُروستو هم دے غوره شو۔

زهٔ وايم چه په دِے بِنا بانِدے که بکر وُروستو دَ هغے نه چه دَ زيد دَ پارهٔ دويم حکم وُشه۔ په دے خبره شاهدان وُدرول "چه دا بيزه څما ده۔ څما په ملکيت کښې پيدا شوے ده" نو بنا نيږي چه دَ بکر دَ پاره هم حکم وکړے شي۔ (چه بيزه دَ بکر شوه) ځکه چه زيد بے قبضے دے په نسبت سره بکر ته اګرکه زيد خاوند دَ قبضے دے په نسبت سره عمر ته۔ او دَ دے خبرے تائيد به وروستو هم ذکر شي۔

**مسئله:**۔ دَ چا دَ پاره چه حکم شوے وي په کورني پيدائيش سره۔ که چرے رد هغه سره په دغه شاروی کښې دَ بل مدعي جګړه شوه۔ او) هغه خپل شاهدان په کورني پيدائيش بيا تير کړه۔ نو هغه غوره دي۔ (مثلاً دَ زيد او دَ عمر جګړه وه۔ په يو شاروی کښې۔ او دواړو شاهدان وُدرول۔ چو قاضي دَ زيد دَ پاره په کورني پيدائيش سره حکم وُکه۔ بيا بکر دعوه وکړه په دغه شاروي

نو زید دوباره شاهدان تیر کړل ۔ نو بیا به هم شاهدان دَ زید غوره وی۔) او که
شاهدان ئے دوباره تیر نه کړل ۔ تو دے پورے چه قاضی حکم وکړلو دَ پاره دَ مدعی
(یعنے بیا زید شاهدان تیر نه کړل ۔ نو قاضی حکم اُوکه چه غاروے دَ بکر شه )
پس دَ دے نه ئے شاهدان اُودرول ۔ (یعنے پس دَ دے حکم نه بیا زید شاهدان
اُودرول ۔) نو بعضو وئیلی دی ۔ چه دا شاهدان (دَ زید) قبول دی ۔ او مات به
شی حکم دَ قاضی (کوم حکم چه ئے کړے وو دَ پاره دَ بکر) او بعضو وئیلی دی چه نه
(یعنے غاروے به دَ بکر وی ۔ او دَ زید شاهدان قبول نه دی ۔ پس دَ حکم
دَ قاضی نه ئے انتم فصل دَ فصولین "

**مسئله** :۔ که دَ یو سړی په خلاف په کورنی پیدائیش سره یا په ملکیت
مطلقه سره حکم وشه (مثلاً دَ زید او دَ بکر جګړه وه ۔ په یو غاروی کښ ۔ او زید
شاهدان اُودرول په دے خبره ۔ چه دا څما دے ۔ څما په ملکیت کښ پیدا
شوے دے ۔ یا په دے خبره چه دا غاروے څما دے ۔ جو ر قاضی حکم وکړ ۔
چه دا دَ زید شه) که چرے هغه (بکر) پس دَ دے نه شاهدان اُودرول ۔ په
خپل کورنی پیدائیش دَ دغه غاروی باندے ۔ یا په دے خبره چه ما ملکیت
حاصل کړے دے ۔ دَ دے مدعی نه (مثلاً دَ زید نه مې په بیعه اخستنے دے)
نو دا شاهدان (دَ بکر) قبول دی ۔

**مسئله** :۔ یو سړی شاهدان اُودرول په دے خبره چه (څما او دَ دے
مدعی په دے وینزه یا په دے بیزه کښ جګړه وه ۔ نو) فلانی قاضی صاحب
حکم کړے وو ۔ څما دَ پاره ۔ (چه دا ستا ده ۔) او خاوند دَ قبضے شاهدان اُودرول
په دے خبره ۔ چه دا څما ده ۔ څما په ملکیت کښ پیدا شوے ده ۔ نو حکم به
کیږی دَ پاره دَ مدعی ۔ او حکم به نه کیږی په شاهدانو دَ خاوند دَ قبضے
سره په کورنی پیدائیش باندے ۔ خو امام محمّد صاحب رح دَ دے ته خلاف
کړے دے ۔ هغه وائی چه شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره دی ۔ ځکه چه ممکنه
ده ۔ چه قاضی چه دَ مدعی بے قبضے دَ پاره حکم کړے وو ۔ وجه ئے دا وه چه
هغه دَ کورنی پیدائیش دعوه کړے وه ۔ تو او س چه خاوند دَ قبضے شاهدان
ودروی په کورنی پیدائیش باندے ۔ نو دا شاهدان قبول دی ۔

**مسئله** :۔ غاروے وو ۔ دَ یو سړی په قبضه کښ ۔ دعوه پرے وکړه دوو

تنو۔ یو مدعی نو شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا ځما دے۔ ځما کورنے پیدا
دے۔ (یعنے ځما دَ خپل ښاروی نه پیدا دے) او هغه بل مدعی شاهدان وُدرول
په دے خبره۔ چه دا ځما دے۔ زهٔ ئے مالک یم۔ نو خاوند دَ کورنی پیدائیش
غوره دے۔ که خاوند دَ قبضے وی او که بے قبضے وی۔ (یعنے دغه ښاروے ئے
که په قبضه کښ وی۔ او که نه وی۔)

**مسئله**:۔ که دوؤ تنو دعوه وکړه دَ کورنی پیدائیش دَ یو ښاروی۔ (یعنے هر
یو وئیل۔ چه دا ځما دے۔ او ځما کورنے پیدا دے۔) نو حکم به کیږی چه دا دَ دواړو
مدعیانو شریک دے۔ او که دَ دواړو جانبو شاهدانو تاریخ دَ پیدائیش دَ دغه
ښاروی او خوو۔ او عمر دَ دغه ښاروی موافق وو دَ یو تاریخ سره۔ (دَ دے دواړو
تاریخونه) او حال داوو چه دغه ښاروے دَ دواړو مدعیانو په قبضه کښ نه وو
یا صرف دَ یو په قبضه کښ وه۔ نو حکم به کیږی دَ پاره دَ هغه یو چه تاریخ
ئے موافق دے دَ دغه ښاروی دَ عمر سره۔ او که عمر معلومیدل ئے مشکل
وو۔ نو که دواړه مدعیان بے قبضے وی۔ جوړ حکم به کیږی دَ پاره دَ دواړو
او که یو خاوند دَ قبضے وی۔ نو حکم به کیږی دَ پاره دَ هغه۔ او که دَ دواړو
مدعیانو دَ تاریخ نه عمر دَ دغه ښاروی مخالف وو۔ نو یو روایت دادے۔ چه
حکم به کیږی دَ پاره دَ دواړو۔ او بل روایت دادے۔ چه شاهدات دَ دواړو به
او غورزیګی "قاضیخان په فصل دَ دعوی دَ منقول کښ"

**مسئله**:۔ په ایضاح الاصلاح کتاب کښ دَ زیلعی کتاب نه نقل دے۔ چه
دوؤ مدعیانو که شاهدان وُدرول په کورنی پیدائیش باندے (مثلاً هر یو وئیل
چه دا ښاروے ځما دے۔ ځما کورنے پیدا دے۔) او دواړو دَ پیدائیش تاریخ دَ دغه
ښاروی او خوو۔ نو حکم به کیږی دَ پاره دَ هغه یو چه عمر دَ دغه ښاروی دَ تاریخ
سره برابر وی۔ او نشته فرق په دے کښ په دے خبره کښ چه دغه ښاروے
دَ دواړو په قبضه کښ وی۔ یا دَ یو۔ یا دَ دریم په قبضه کښ وی۔ ځکه چه
په مغنے کښ اختلاف نه راځی۔ په خلاف دَ هغے صورت نه چه دواړه دعوه
دَ کورنی پیدائیش کوی۔ بے دَ ذکره دَ تاریخ دَ پیدائیش نه۔ ځکه چه
هلته حکم کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے۔ که چرے دَ یو مدعی په قبضه
کښ وی۔ یا حکم کیږی دَ پاره دَ دواړو مدعیانو که چرے وی دَ دواړو په

قبضه کښی یا دَ یو دریم په قبضه کښی . اوکه عمر دَ دغه څاروی معلومیدل کړان شوی وو . نو بیا دَ دواړو شریک دے . اوکه دَ دواړو تاریخ مخالف وو دَ دغه څاروی دَ عمر نه . نو بیا به دواړه شهادتونه باطل شی . ( او یه غورونیکی ) نو څاروے به پاتے شی . دَ هغه چا په قبضه کښی چه اوس ئے په قبضه کښی دے ختم شه دا مضمون دَ ایضاح .

بیا دا خبره ایزده کړه چه شاهدان دَ خاوند دَ قبضے دَ شاهدانو دَ مدعی بے قبضے نه په دعوه دَ کورنی پیدایښ کښی هله غوره کیږی . که مدعی بے قبضے په خاوند دَ قبضے باندے دَ یو فعل (کار) دعوه نه کوله . اوکه کوله ئے په دے شان سره چه خاوند دَ قبضے دعوه کوله " چه دا څما دے . څما کورنے پیدا دے " او مدعی بے قبضے دعوه کوله " چه دا څما دے . څما کورنے پیدا دے " خو دے خاوند دَ قبضے دا ته په زور اخستے دے . یا ده دا ته په اجاره یا په طور دَ عاریت اخستے دے . یا ماده ته امانت ایښے دے . او دواړو شاهدان وُدرول په خپله خپله دعوه باندے . نو بیا دَ مدعی بے قبضے شاهدان غوره دی . او دَ کورنی پیدایښ په شان دے هغه شے چه دَ هغے سره لګی . ( یعنے هغه سبب چه بار بار نه وی ) لکه دَ مالو چو وریشل شو . مثلاً یوه ښځه دعوه کوی . چه دا پونړی څما دی . ما وریشلے دی . او تا دا ته په زور اخستے دی . او دَ کوے ښځے په قبضه کښی چه دی هغه وائی . چه دا څما دی . او ما وریشلے دی . او شاهدان ودروی دواړه . نو حکم به کیږی په شاهدانو دَ هغے ښځے چه خاوند دَ قبضے نه ده . دا بیان دَ جامع الفصولین کتاب په مسئلو دَ دعوو کښی راوړے دے . نو خلاصه خبره دا ده چه شاهدان دَ خاوند دَ قبضے په کورنی پیدا ئښ باندے غوره کیږی دَ شاهدانو دَ مدعی بے قبضے نه . چه ودرولی وی په مطلق ملکیت یا په کورنی پیدائښ باندے هله که مدعی بے قبضے دعوه نه کوله . په خاوند دَ قبضے باندے دَ یو کار لکه کانړه شوه . یا په زور اخستل شو . ( یعنے مدعی بے قبضے دا دعوه نه وی کړی . چه دا څما دے . یا څما کورنے پیدا دے . خو ده ته دِ کانړه کړیے یا ده دا ته په زور اخستے دے . مثلاً ) او که مدعی بے قبضے پرے سره دَ دے نه دَ یو کار دعوه هم کړی وی . نو بیا شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره دی . او په فصولین کښی ئے دا هم راوړی دی چه مدعی بے قبضے شاهدان وُدرول

په دے خبره چه دا ځاروے یا دا مرئے ځما دے ۔ دے خاوند دَ قبضے دا نه په اجاره اَخستے دے ۔ یا په طور دَ عاریت یا په ګانړه ۔ او خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول ۔ چه دا ځما دے ۔ ځما څخه پیدا شوے دے ۔ نو حکم به کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے په دغه ځاروی یا په دغه مرئی سره ۔ ځکه چه دے دَ پیدا ئیښ دَ ملکیت دعویٰ کوی ۔ او هغه بل دَ عاریت یا دَ اجارے یا دَ ګانړے دعوه کوی او پیدائیښ وړ دمبے دے دَ هغے نه ۔ انتم فصول دَ فصولین ؎ او دا رنګ که مدعی بے قبضے دَ کورنی پیدا ئیښ دَ دعوے سره دعوه دَ آزادولو یا دَ دے خبرے چه دے ځما خوئی دے ۔ هم کوله ۔ دبیغه مدعی بے قبضے ویئیل ۔ چه دا مرئے ځما کورنے پیدا دے ۔ او ما آزاد کرے دے ۔ یا دے ځما خوئی دے ۔ نو شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره دی ۔

**مسئله** :۔ په اشباه کتاب کښی راوړی دی ۔ چه مدعی بے قبضے که شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا ځما دے ۔ ځما په ملکیت کښی پیدا شوے دے ۔ او خاوند دَ قبضے هم دا رنګ شاهدان وُدرول ۔ نو شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره دی ۔ دغه شان عام ذکر کړی دی متونو ۔ خو ذهٔ دائیم مګر په دوؤ مسئلو کښی کوم چه ذکر دی په خزانه کتاب کښی ( شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره نه دی ) یوه مسئله داده ۔ چه جګړه په مرئی کښی وی ۔ مدعی بے قبضے وائی چه دا مرئے ځما دَ خپلے وینزے نه پیدا دے ۔ او ما آزاد کړے دے ۔ او خاوند دَ قبضے صرف دا وائی ۔ چه دا مرئے ځما دے ځما دَ وینزے نه پیدا دے ( نو شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره دی ۔ ) په خلاف دَ هغے نه چه مدعی بے قبضے وائی چه دا ځما دَ وینزے نه پیدا دے او ما مدبّر کړے دے ۔ ( یعنے ځما دَ مرګ نه پس به آزاد دی ۔ ) یا ما مکاتب کړے دے ( چه دومره مال راکړی نو آزاد دے ) نو په دے صورت کښی شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره نه دی ۔

دویمه مسئله داده چه مدعی بے قبضے که دعوه کوله ۔ چه دا مرئے ځما په ملکیت کښی ځما دَ دے وینزے نه پیدا شوے دے ۔ او دے ځما خوئی دے نو دَ ده شاهدان غوره دی دَ شاهدانو دَ خاوند دَ قبضے نه ۔ ختم شوه

---

؎ دَ شامی په دویم جز دَ ګټلے کښی سے دا عبارت نقل کړے دے ۔ بیا په آخر کښی ئے فتوه په دے ردکړے ۔ چه په دے صورت کښی شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره دی ۔ ۱۲ مترجم ۔ ؂ ؂

خبره دَ اشیاه - اودا وړی دی په وجیز کتاب کښ په بیان دَ دعوے دَ کورنی پیدائیش کښ چه شاهدان دَ دے خبرے چه دا مرئے حُما دے ما آزاد کړید ے - یا م ورته وئیلی دی چه تر آزادئے پس دَ سرکه حُما نه - یا دا وینزه حُما ده - حُما نه ئے بچے شویے غوره دی دَ شاهدانو دَ دے خبرے نه چه دا مرئے حُما کور نے پیدا دے - یا دا وینزه حُما کورنئ پیدا ده - اودا دُلے شاهدان دَ دے خبرے چه دا مرئے حُما کورنے پیدا دے - ما آزاد کړیدے - غوره دی دَ شاهدانو دَ دے خبرے نه چه دا مرئے حُما کورنے پیدا دے - ما مدبر کړے دے - اودا دُلے شاهدان دَ دے خبرے چه دا وینزه حُما کورنئ پیدا ده - ما آزاده کړے ده - غوره دی - دَ شاهدانو دَ بل مدعی نه په دے خبره - چه دا وینزه حُما کورنئ پیدا ده - او بچے ئے شوے دَ حُما نه - اودا دُلے شاهدان دَ دے خبرے چه دا مرئے حُما دے - ما مدبر کړے دے - غوره دی دَ شاهدانو دَ بل مدعی نه په دے خبره - چه دا حُما دے ما مکاتب کړے - ختم شه مضمون دَ وجیز کتاب -

**مسئله** :- که دوه تنه په جګړه شو - په یو توکی کښ - او دغه توکے په دوئ کښ دَ یو تن په قبضه کښ وو - نو مدعی بے قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره - چه دا حُما دے نیم ما وُدلے دے - او خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا حُما دے نیم ما وُدلے دے نو امام محمّد صاحبؒ وئیلی دی که دوه جدا جدا حصے معلومیدلے - نو حکم به کیږی دَ هر یو دَ پاره په هغه نیمه حصه سره چه وُدلے ئے ده - او که نه معلومیدلے نو بیا به حکم کیږی چه دا ټول دَ مدعی بے قبضے دے -

**مسئله** :- که دوه تنه په جګړه شو - په بابت دَ وړے کښ - نو خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره - چه دا حُما ده - ما دَ خپلے کړے نه پریکړے ده او مدعی بے قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره - چه دا حُما ده - ما دَ خپلے کړے نه پریکړے ده - نو حکم به کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضه -

**مسئله** :- که مدعی بے قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره - چه دَ زید په قبضه کښ چه دا کړه ده - دا حُما ده - دا وړئے ترے ما پریکړے ده - او خاوند دَ قبضے یعنے زید شاهدان وُدرول په دے خبره چه دغه کړه چه دے ئے دعوه کوی - حُما ده - او دَ وړئے ترے ما پریکړے ده - نو حکم به کیږی دَ پاره دَ مدعی بے

قبضے۔

**مسئله**:۔ که دوه تنه سره مختلف شول په پنیر کښ۔ نو خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا پنیر ځما دے۔ ما دَ دے خپلے بیزے دَ پیؤ نه جوړ کړیدے او مدعی بے قبضے هم دا رنګ دعوه کوله۔ او شاهدان ئے وُدرول۔ نو حکم به کیږی چه بیزه او پنیر دواړه دَ مدعی بے قبضے دی۔

**مسئله**:۔ که مرغۍ وو۔ په قبضه دَ یو سړی کښ۔ شاهدان ئے وُدرول په دے خبره چه دا مرغۍ ځما دے۔ او پیدا شوے دے ځما په ملکیت کښ ځما دَ ویزے نه۔ او مدعی بے قبضے هم دا رنګ شاهدان وُدرول۔ نو حکم به کیږی۔ چه دغه مرغۍ دَ خاوند دَ قبضے دے۔

**مسئله**:۔ که خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا ویزه ځما ده۔ ځما په ملکیت کښ ئے دا مرغۍ بچے راوړے دے۔ او مدعی بے قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا ځما ویزه ده۔ دا مرغۍ راوړے دے ځما په ملکیت کښ۔ نو حکم به کیږی چه ویزه دَ مدعی بے قبضے ده۔ دا رنګ ذکر کړیدی قاضیخان په مسئلو دَ دعوو کښ۔ او دَ مرغۍ په بابت کښ ئے څه نه دی ویلی۔ چه دَ چا به شی۔ او مذکور دی په اتم فصل دَ فصولین کښ۔ چه شاهدان وُدرول مدعی بے قبضے په دے خبره چه دا ویزه ځما ده۔ دا مرغۍ راوړیدے ځما په ملکیت کښ او خاوند دَ قبضے هم شاهدان وُدرول۔ نو حکم به کیږی چه ویزه دَ مدعی بے قبضے ده۔ ځکه چه دواړو په ویزه کښ دَ مطلق ملکیت دعوه کړے (یعنے هر یو ویلی دی۔ چه دا ویزه ځما ده۔ او سبب دَ ملکیت ئے نه دے خولے۔) نو حکم به کیږی دَ پاره دَ مدعی بے قبضے۔ بیا دے مستحق کیږی دَ دغه ویزے دَ بچی چه مرغۍ دے ځکه چه دغه مرغۍ دَ مور تابع شه۔

**مسئله**:۔ دعوه وکړه مدعی بے قبضے زدَ ملک مطلق یعنے دَ دے خبرے) چه دا ځما دے۔ نو او ویل خاوند دَ قبضے۔ چه دا ما ته زید چه غائب دے۔ په طور دَ امانت ایخلے دے۔ او دَه شاهدان وُنه درول په امانت والی باندے۔ تر دے پورے چه قاضی حکم وکړو دَ پاره دَ مدعی بے قبضے (چه دا ستا شه) پس لا راغے زید او شاهدان ئے وُدرول په دے خبره۔ چه دا ځما په ملکیت کښ پیدا شویدے ځما کورے پیدا دے۔ او چا چه دعوه دَ ملک مطلق کړے وه۔ هغه هم شاهدان

وُدرول - په دے خبره چه دا څما په ملکیت کښې پیدا شوے دے څما کورنے پیدا دے - نو حکم به کیږی دَ پاره دَ مدعی - نه دَ پاره دَ زید - ځکه چه مدعی خاوند دَ قبضے شوے دے - (په سبب دَ حکم کولو دَ قاضی) او اوس ئے شاهدان وُدرولی دی - په کورنی پیدایښت باندے - نو دغه شاهدوے دَ مدعی دے - او قبضه ئے پرے اوس ثابته ده - ځکه چه قاضی ورومبیه حکم کړے وو - دَ پاره دَ دهٔ - او چاچه دَ امانت والی دعوه کړے وه - هغه شاهدان نهٔ وُو وُدرولی په دے خبره - چه دا دَ زید دے - چه کوندے موتږ ثابته کړو ورومبیٔ قبضه دَ زید - او دوایو - چه دَ چا څخه امانت ایخلے شوے وو - دَ هغه په ذریعه زید له قبضه ثابته وه - نو دَ دے وجه نه (موتږ او ویل - چه) حکم به کیږی دَ پاره دَ مدعی - هاں که امانت ایخودونکی شاهدان وُدرول په دے خبره - چه دا مادهٔ ته په طور دَ امانت ایخلے وو - نو بیا به حکم کیږی دَ هغه په کورنی پیدایښت باندے - نو دا خبره به ظاهره شی - چه دَ مدعی دَ پاره چه کوم حکم مبینه شوے وو په ملک مطلق سره - هغه حکم وو - په یو داسے سړی چه خصم (مقابل) نه وو - بلکه خصم زید دے - او هغه حکم نه دے جاری شوے -

**مسئله** :- او راوړی دی هم په دغه (جامع الفصولین) کتاب چه شاهدان وُدرول مدعی بے قبضے په دے خبره - چه دا څاروے څما دے - په ما چه چا دا خرڅ کړیے دا دَ هغه وو - دَ هغه دَ خپل څاروی نه پیدا شوے وو - او خاوندَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا څما دے - په ما چه چا دا خرڅ کړے دے - دا دَ هغه وو - دَ هغه دَ خپل څاروی نه پیدا شوے وو - نو حکم به کیږی دَ پارهٔ دَ خاوند دَ قبضے - ځکه چه هر یو دَ دے دواړو نه جګړه کونکے دے دَ خپل خرڅونکی دَ طرف نه - نو داسے شوه لکه چه دواړه خرڅونکی حاضر وی - او دواړو دَ ملکیت او دَ کورنی پیدایښت دعوه کړی وی - نو حکم به کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے - نو دا رتلهٔ حکم دلته شو -

**مسئله** :- شاهدان وُدرول مُدعی بے قبضے په دے خبره چه دا مرئے څما دے - او څما په ملکیت کښې پیدا شوے دے - او خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره - چه دا څما دے - په ما چه زید را خرڅ وو - نو دا دَ هغه په ملکیت کښې پیدا شوے وو - نو حکم به کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے - ځکه چه دے جګړه کونکے دے - دَ طرفه دَ زید نه - او دَ دهٔ قبضه حاصله ده - دَ زید نه

---

[1] صاحب دَ جامع الفصولین دَ دے نه ورومستو دا خبره ذکر کړے ده - چه دَ دے مسئلے نه معلومه شوه - چه دعوه دَ کورنی پیدایښت پس دَ دعوے دَ ملک مطلق نه هم صحیح ده - ۱۲ - مترجم

نوګویا زید په خپله حاضر شوے دے۔ او شاهدان ئے وُدرولی دی۔ په کورنی پیدایښ

باندے۔ او حال دادے چه دغه مرئے ئے په قبضه کښ دے۔ نو حکم به کیږی دَ

پاره دَ زید۔ او دا رنګ حکم شه دلته۔ (یعنے حکم به کیږی دَ پاره دَ خاوند دَ قبضے

چه ملکیت ئے حاصل کړے دے۔ دَ زید نه) "ختم شه مضمون دَ جامع الفصولین

کتاب"۔

**مسئله** :۔ که دوه تنه دَ یو دا سے زمکے په بابت کښ په جګړه شولو۔ چه په

هغے کښ فصل ولاړ وو۔ نو هر یو شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا زمکه ځما

ده۔ او دا فصل هم ځما دے۔ او ما کرلے دے۔ نو حکم به کیږی دَ پاره دَ مدعی

بے قبضے

**مسئله** :۔ مرئے وو په قبضه دَ یو سړی کښ۔ او دعوه پرے او کړه یل۔ او

شاهدان ئے وُدرول په دے خبره چه دا مرئے ځما دے۔ ځما په ملکیت کښ

پیدا شوے دے۔ او دے مدعی شاهدانو دَ مور ئے ذکر و نه کړه دَ مدعی او

خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا ځما مرئے دے۔ پیدا

شوید ے ځما دَ دے ویزے نه۔ نو حکم به کیږی چه مرئے دَ خاوند دَ قبضے دے۔

**مسئله** :۔ مرئے وو۔ په قبضه کښ دَ یو سړی۔ دعوه پرے وکړه یل۔ او

شاهدان ئے وُدرول په دے خبره چه دا ځما مرئے دے۔ ځما په ملکیت کښ

پیدا شوے دے۔ ځما دَ دے ویزے او دَ دے مرئی نه۔ او یو بل مدعی بے قبضے

هم دارنګ شاهدان وُدرول۔ نو حکم به کیږی۔ چه دا مرئے[1] دَ دوارو مدعیانو

نیم نیم دے۔ (یعنے دَ دوارو شریک دے)

**مسئله** :۔ که په جګړه شو۔ دوه تنه په بابت دَ قرآن شریف کښ۔ هر یو

شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا ځما دے۔ ما لیکلے دے په خپل ملکیت

کښ (یعنے دَ لیکلو سامان او کاغذ وغیره ئے ټول ځما وو) نو حکم به کیږی

دَ پاره دَ مدعی بے قبضے

**مسئله** :۔ چرګه وه دَ یو سړی په قبضه کښ۔ دعوه پرے وکړه بل۔ او شاهدان

ئے وُدرول په دے خبره۔ چه دا چرګه ځما ده۔ پیدا شوے ده ځما په ملکیت کښ

(یعنے ځما دَ چرګے چوګوړی ده) او خاوند دَ قبضے هم دارنګ شاهدان وُدرول

---

[1] چو دغه بچے به بچی دی دَ دواړو ویزو او دَ دوایه مریو نو۔ ګویا دوه سکه میندے او دوه سکه پلرونه ئے شو دَ خیره سره۔ دا رنګ ذکر دی په تاضیخان کښ ۱۲ مترجم

نو حکم به کیږی دَ پاره دَ خاوندانو دَ قبضے (چه چرګه دَ خاوند دَ قبضے ده)

**مسئله**:- دوه تنه مختلف شول په بابت دَ یو کور کښې۔ هریو دعوه کوله چه دا ځما دے۔ او ځما په قبضه کښې دے۔ او دواړو شاهدان وُدرول په خپله خپله دعوه باندے۔ نو قاضی به دغه کور دَ دواړو په قبضه کښې کرزوی۔

**مسئله**:- کور وو په قبضه دَ یو سړی کښې دعوه پرے وکړه څلورو تنو۔ یو شاهدان وُدرول په دے خبره۔ چه دا ما په بیعه اخستے دے دَ فلانی نه په زر روپئ په داسے حال کښې چه هغه ئے مالک وو۔ او روپئ م ورله ورکړی دی۔ او حال داوی چه دغه فلانے غیروی دَ خاوند دَ قبضے نه۔ او دویم مدعی شاهدان وُدرول په دے خبره چه داکور ماته یو بل سړی چه فلانے وو۔ ګانړه کړے دے۔ او ما تړنه قبض کړے دے۔ او دریم مدعی شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا ماله یو بل سړی خیراتی داکړے دے۔ او څلورم مدعی شاهدان وُدرول په دے خبره۔ چه دا ما ته دَ خپل پلار نه په میراث کښې پاتے شوے دے۔ نو قاضی به حکم کوی۔ چه دا کور دے څلور حصے شی۔ یوه یوه حصه به یو یو مدعی واخلی۔ او که څلورو واړو دعوه کوله دَ یو سړی نه (یعنے یو وئیل چه ما دَ زید نه په بیعه اخستے دے۔ بل وئیل چه ماته زید ګانړه کړے دے۔ بل وئیل چه ماله زید خیراتی داکړے دے بل وئیل چه ماته دَ زید نه په میراث پاتے شوے دے۔) نو حکم به کیږی چه کور ټول دَ هغه مدعی شه۔ چه دعوه ئے دَ قیمتَّ اخستلو کړے ده۔ او نوره به شی شاهدان دَ بیعے۔

**مسئله**:- یو سړے وو چه په قبضه کښې ئے یو کور وو۔ بل سړی پرے دعوه وکړه او شاهدان ئے وُدرول په دے خبره چه دا کور ځما دے۔ او یو بل مدعی شاهدان وُدرول په دے خبره۔ چه داکور ځما او دَ فلانی ابن فلانی دے۔ مونږ دواړه په بیعه اخستے دے دَ خاوند دَ قبضے نه۔ یا دَ یو بل سړی نه ئے اووئیل۔ په دومره روپو (مثلاً په زر روپئ) او مونږ روپئ ورکړی دی۔ او دا کور ترے مونږ قبض کړے دے۔ او حال دا وو چه دَ دے مدعی شراکتی (یعنے فلانے ابن فلانے) غائب

له اوکه مدعی پرے خبره شاهدان وُدرول چه دَ کور هاګئے نه دا چرګه داوتے ده هغه ځما ملکیت وو۔ نو دا حکم به نه کیږی چه چرګه دَ مدعی شوه۔ بلکه چرګه دَ خاوند دَ قبضے ده۔ او دے به مدعی له یوه اګئ ورکوی۔ مونږ به وایو چه ګویا دهٔ دَ هغه نه یوه هاګئ په زور اخستے ده۔ او خپلے چرګے نه ئے ایخے ده۔ قاضیخان وهندیه ۱۲ مترجم

وو۔ او حاضر نه وو۔ په محکمه دَ قاضی کښې۔ نو ښلی دی مصنّف په طریقه دَ قول دَ امام اعظم صاحب رح چه دغه کور به ځلور حصے کړے شی۔ ( درے حصے به دَ هغه مدعی شی چه دعوه دَ ټول دَ ټول کور ئے کړے ده ځان له۔ او یوه حصه دَ هغه مدعی چه دعوه ئے کړے ده۔ چه دا ځما او ځما دَ شریک دے۔) ځکه چه کوم مدعی چه دا دعوه کړے ده چه دا کور ما او ځما شراکتی په شریکه قیمتاً اخستے دے۔ هغه دَ خپل شراکتی دَ جانب جګړه کونکے نه شی ودریدے ( ځکه چه دهٔ دَ هغه نه ملکیت نه دے حاصل کړے۔ او وکیل ئے هم نه دے۔) نو دے مدعی شه دَ نیم کور۔ او هغه بل مدعی مدعی شه دَ ټول کور۔ ( نو درے حصے به دَ هغه شی۔ او یوه دده)

**مسئله** :۔ مدعی بے قبضے که دعوه دَ شراکت کوله۔ او شاهدان ئے وُدرول په دے خبره چه دا کور ځما دَ پلار وو۔ هغه مړشوے دے۔ او کور ئے ماته او ځما رور چه "غائب دے" میراث پریخے دے۔ او یو بل مدعی بے قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا کور ځما دے۔ نو قاضی به حکم کوی چه نیم کور دَ هغه مدعی شه۔ کوم چه ټول کور دعوه کړے ده دَ ځان دَ پاره۔ او حکم به کوی۔ چه نیم کور دَ مړی دے۔ نو دَ دغه کور ځلورمه حصه به ورکړی دَ مړی دَ هغه ځوئ ته چه حاضر دے۔ او ځلورمه حصه به پریږدی دَ مدعا علیه په قبضه کښې تر دے پورے چه دَ مړی هغه غائب ځوئ راحاضر شی۔ نو که حاضر شه۔ نو دَ کور دغه ځلورمه حصه به واخلی۔ او شاهدانو وُدرولو ته ئے ضرورت نشته۔

**مسئله** :۔ کور وو په قبضه دَ یو سړی کښې۔ رور پرے دعوه وکړه۔ او شاهدان ئے وُدرول په دے خبره چه دا کور ځمونږ دَ پلار وو۔ هغه مړشوے دے۔ دا کور ئے ماته او ځما دے رور ته "چه دا کور ئے په قبضه کښې دے" په میراث کښې پریخے دے۔ او ځمونږ دَ پلار بے ځمونږ دَ دواړو رونړو نه بل څوک میراث خور نشته دے او یو پردی سړی په دے خبره شاهدان وُدرول چه دا کور ځما دے۔ او دَ چا په قبضه کښې چه کور دے۔ هغه انکار کوی دَ دواړو دَ دعوو نه۔ او دا وائی چه دا کور ځما خپل دے۔ دَ پلار میراث م نه ده۔ نو قاضی به حکم کوی چه ( دغه کور دِ ځلور حصے شی ) درے حصے به دغه پردے سړے واخلی۔ او ځلورمه حصه به ځوئ دَ مړی واخلی۔ کوم چه مدعی دے۔ او خاوند دَ قبضے چه دے نو دَ هغه دَلاسه او وتلو کور۔ پاتے شه تش تور۔

**مسئله**:- کور وو په قبضه دَ یو سړی کښې ـ دعوه پرے وکړه دوؤ تنو ـ نو یومدعی خو په دے خبره شاهدان وُدرول چه داکور دَ فلانی سړی وو ـ دوه کاله کیږی ـ چه هغه مړ دے اودائے ماته میراث پریخے دے ـ اوهغه بل مدعی شاهدان وُدرول په دے خبره چه فلانے مړشوے دے یوکال مے کیږی ـ اوداکور ئے ماته میراث پاتے شوے دے ـ اوسال داوو ـ چه خاوند دَ قبضے منکروو ـ دَ دواړو دَ دعوته ـ هغه خودا ویل چه داکور خما دے ـ نو امام محمد صاحب رح وائی چه دغه کوربه دَ دواړو مدعیانو شی نیم نیم ـ اوپه مړلې کښی تاریخ له اعتبار نشته اوکه یومدعی شاهدان وُدرول په دے خبره ـ چه داکور دَ دریؤ کالونه دَ زید وو بیا هغه مړشه ـ اومیراث ئے پریخود ماته ـ اوهغه بل مدعی په دے خبره شاهدان وُدرول چه داکور دَ دوؤ کالو نه دَ بکر وو ـ بیا هغه مړشه ـ او میراث ئے پریخوده ماته ـ نو په دے صورت به دغه کور ټول دَ هغه مدعی شی ـ چه درے کاله ئے ذکرکړی دی ـ ځکه چه شاهدانو دَ ملکیت وخت خولے دے ـ ( نه دَ مرګ)

**مسئله**:- کورپه قبضه کښی وو دَ یو سړی ـ دعوه پرے وکړه بل ـ چه داخما دے ـ نوخاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره چه فلانے سړے چه غائب دے هغه په دے کوردعوه کړے وه ـ او هغه ئے مستحق کړزید لے وو ـ نو قاضی داکورخما نه واخست ـ اوهغه له ئے ورکه ـ بیا هغه داکور ماله په اجاره راکړے دے ـ نو قبول نه دی شاهدان دَ خاوند دَ قبضے په دے باندے ـ

**مسئله**:- که چا دَ خپل پلار دَ پاره دَ یو څیز دعوه وکړه ـ او شاهدان ئے وُدرول په دے خبره چه داڅیز خما دَ پلار وو ـ هغه مړشوے دے ـ اودائے ماته په میراث کښی پریخے دے ـ او هغه دَ فلانی کال په فلانے میاشت په فلانئ وُرځ مړشوے دے ـ او یوے ښځے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دَ دے مدعی پلار دَ دغه کال دَ دغه میاشتے په فلانئ وُرځ زهٔ په نکاح اخستے وُم ـ دَ دے نه یوه ورځ وُدستو هغه مړ شوے دے ـ وروستو دَ هغه وُرځے نه چه دے خوئ ئے خولے ده ـ مطلب دادے چه ښځے شاهدان وُدرول په دے خبره چه کومه وُرځ چه دے خوئ دَ پلار دَ مرګ ثابته کړے ده ـ دَ دهٔ پلار زهٔ دَ دغه ورځے نه یوه وُرځ وُرستو په نکاح اخستے وم نو قاضی به حکم کوی دَ دواړو دَ پاره (یعنی) حکم به کوی دَ ښځے دَ پاره په نکاح او په مهراوپه میراثے سره ـ اودَ خوئ دَ پاره په میراثے سره ـ او دارنګ حکم دے ـ

که پس دَ دے نه یوے بلے ښځے شاهدان وُددرول په دے خبره چه دَدے مدعی پلار
خما سره دَ دے ښځے دَ نکاح نه یوه وُرز وروستو نکاح کړے دے۔ نو دَ دے دوئے ښځے
په نکاح سره به هم حکم کیږی۔ (جوړ موبز به وایو چه دادواړه ئے ښځے وے) او حکم به
کیږی دَ دواړو (ښځو) دَپاره په میراث سره سره دَ خوئ نه۔ او دا مسئله نده په شان
دَ هغه مسئلے چه خوئ ئے دعوه وکړی۔ چه فلانئ سړی خما پلار وژلے دے
او شاهدان وُددروی۔ او دا شاهدان تاریخ وخئ۔ چه دَ فلانی کال په فلانئے
میاشتے په فلانئے وُرزئے وژلے دے۔ بیا یوه ښځه شاهدان وُددروی په دے
خبره۔ چه هغه خما سره نکاح کړے وو په فلانئے وُرز پسے یوه وُرز وروستو دَ قتل
دَ وُرزِ نه۔ نو په دے صورت کښ به حکم نه کیږی په شاهدانو دَ ښځے سره
ځکه چه تاریخ دَ قتل داخل دے لاندے دَ حکمه دَ قاضی نه۔ او تاریخ دَ مرګ
نه دے داخل۔ او پوره دلیل ذکر دے په قاضیخانؒ کتاب کښ په آخر دَ فصل
دَ دعوے دَ ملکیت بسبب کښ۔"

**مسئله**:- یو مدعی بے قبضے دعوه وکړه چه دا مریے خما دے۔ او خاوند
دَ قبضے او ویل۔ چه دا خما دے۔ او ما آزاد کړے دے۔ نو حکم به کیږی په
شاهدانو دَ خاوند دَ قبضے سره۔ او په دے حکم خموږ امامان صاحبانؒ
متفق دی۔" فصولین په دعوے دَ وقف کښ۔"

## دَ نسب مسئلے

**مسئله**:- که دَ یو ورو کی په نسب باندے مدعی بے قبضے هم شاهدان وُدرول
او خاوند دَ قبضے هم شاهدان وُدرول۔ نو شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره دی
مګر په دوؤ مسئلو کښ غوره نه دی۔

یوه داده۔ چه مدعی بے قبضے شاهدان وُددروی په دے خبره چه دا ورو کے خما
خوئ دے دَ دے ښځے نه۔ او حال داوی چه ښځه خاوند دواړه آزاد وی۔ او خاوند
دَ قبضے شاهدان وددروی په دے خبره چه دا خما خوئ دے۔ او مورته ئے نسبت

سله او که تور بیان کتل غواړے۔ نو او ګوره بحر رایق باب دَ دعوے دَ دوؤ کسانو ۱۲ مترجم

نه کوی - نو دغه وروکے به ځوئ وی - دَ مدعی بے قبضے -

دوئیمه مسئله داده چه خاوند دَ قبضے که یو ذمی سړے وو - او مدعی بے قبضے مسلمان وو - او خاوند دَ قبضے کافران شاهدان وُدرول - (په دے خبره چه دا وروکے ځما ځوئ دے) او مدعی بے قبضے شاهدان وُدرول (په دے خبره چه دا ځما ځوئ دے) نو شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره دی - برابره خبره ده - که دوئے مسلمانان وی - او که کافران - او که شاهدان دَ کافر مسلمانان وو - نو بیا هغه غوره دی - دَ مسلمان دَ شاهدانو نه په هر حال کښې (که شاهدان دَ مسلمان مسلمانان وی - او که کافران) " اشباه "

**مسئله** :- که چا دعوه وکړه په بل باندے چه دے سړی قصدًا ځما پلار په توره قتل کړے دے - شل کاله ئے کیږی - او زهٔ دَ هغه میراث خوریم - بے ځما نه ئے بل میراث خور نشته - او ما غلر یوه ښځه یوے بچے ورسره وو - هغے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دَ دے مدعی پلار ځما سره نکاح کړے وو - پنځلس کاله ئے کیږی - او دا وروکے ئے ځوئے دے ځما نه او میراث خورئے دے دَ دے مدعی سره - نو امام اعظم صاحب رح فرمائیلی دی - چه زهٔ دا خبره ښه گنړم - چه قبول کړم شاهدان دَ ښځے - او ثابت کړم نسب دَ دغه وروکی - (چه پلار ئے دغه مقتول دے) او شاهدان دَ مدعی ځوئ کړم چه ئے په قتل وُدرولی دی - هغه باطل (بے فایدے) وگنړم[1] - او که ښځے شاهدان ودرول په نکاح باندے - او بچے ورسره نه وو - نو شاهدان دَ مدعی ځوئ غوره دی - او خاص هغه ته به میراث ملاویږی - نه ښځے ته - او قاتل به قصاص کړے شی -

**مسئله** :- دریوُ تنو دعوه وکړه دَ کوږنی پیدایښ دَ یو ښاروی - نو هریو دَ دوئ نه په دے خبره شاهدان وُدرول - چه دا ښاروے ځما دے - ځما دَ دے ښاروی نه پیدا دے - او دا معلوم وی چه دغه ښاروے دَ دهٔ دے - نو حکم به کیږی دَ دریوُ وارو دَ پاره په کوږنی پیدایښ سره -

**مسئله** :- یوُ سړے مړ شو - دوه ځامن ئے پاتے شو - نو یوُ ځوئ ئے دعوه وکړه - چه ځما دَ پلار دے سړی ته زر روپئی پورے دی - په ده ئے څه شئے خرڅ کړے وو - او بل دعوه وکړه - چه هغه کے ورله قرض ورکړے دے - او دواړو شاهدان

---

[1] دَ بحر رائق په حاشیه کښې ابن عابدین صاحب رحمه الله دا خبره نقل کړے ده - چه ظاهره خبره داده - چه په (باطل وگنړم) کښې نه زیاتے دے - او په تاتارخانیه کتاب کښې لیکلی دی - چه باطل وگنړم - اُوگوره منحة الخالق ۱۲ مترجم

وُدرول په خپله خپله دعوه باندے. نو ظاهره داده چه حکم به کیږی دَ هر یو دَ پاره په پنځه پنځه سوه روپو سره. او یو رور لره دا حق نشته چه شریک شی دَ هغه یل سره په هغو روپو کښ کومے چه هغه واخلی.

**مسئله**:- کور وو په قبضه دَ یو سړی کښ. او دَ هغے دَ پاسه چه بل کور یا څه ځائ وو. هغه دَ یو بل سړی په قبضه کښ وو. او دَ بره کور لار دَ ختلو دَ کوز کور په صحن کښ وه. او هر یو دے دواړو نه دعوه کوله چه دا صحن ځما دے. نو کور او صحن به دَ خاوند دَ کوز کور شی. او بره او دَ بره ختو لار به دَ برتی شی. او که دواړو شاهدان وړاندې کړل په خپله خپله دعوه باندے. نو حکم به کیږی دَ هر یو دَ پاره په هغه حصه سره چه دَ هغه بل په قبضه کښ ده. ځکه چه غوره کیږی به مدعی بے قبضے دَ خاوند دَ قبضے نه په بابت دَ هغه حصه کښ چه دَ خاوند دَ قبضے په لاس کښ ده. او هر یو په خپله حصه کښ خاوند دَ قبضے دے. نو کومه حصه چه ئے په قبضه کښ ده. هغه به ترے هغه بل له ورکړے شی.

**مسئله**:- دَ یو تن کور وو. او دَ څو واړو تیرسیدل په یوه ډیوډئ کښ وو. نو دے کښ یو تن ولګیدو. دَ هغے چت ئے اوچت کړل. او دعوه ئے وکړله چه دا چت ځما دے. او هغه نورو هم دعوه وکړه. هر یو ویل چه دا ځما دے. نو موږ به ګورو. که دَ دغه چت لار دَ یو تن ملکیت نه را غلے وی. یا دَ هغه څه سامان پرے پروت وی. جوړ چت به دَ هغه وی. او خبره دَ هغه معتبره ده. سره دَ قسمه نه. او که نه دَ یو تن ملکیت نه دَ دغه چت لار وه. او نه ئے پرے څه سامان وو. دَ ټولو به وی. پس که شاهدان نه وو. جوړ هر یو به هغه بل له په خپله حصه کښ قسم ورکولے شی. او که یو شاهدان وړاندې کړل نو دَ هغه به شی. او که ټولو شاهدان وړاندې کړل. نو دَ ټولو دَ پاره به حکم کیږی. هر یو به هغه حصه اخلی چه دَ هغه بل په قبضه کښ ده.

**مسئله**:- دَ دریو تنو په قبضه کښ یوه جُبّه وه. دریو واړو ئے دعوه کوله. یو خو ویل چه دَ دے جُبے دا استر ځما دے او دویم ویل چه دا ماوچ ئے ځما دے او دریم ویل چه دا ټوله ځما ده. او دریو واړو شاهدان وړاندې کړل په خپله خپله دعوه باندے. نو حکم به کیږی. چه دا ټوله دَ هغه مدعی ده چه دَ ټولے دعوه ئے کړے. او دے ضامن دے مدعی دَ استر ته دَ نیم قیمت دَ استر. او مدعی دَ ماوچو ته دَ نیمو

مالوچو۔ ریښتیا دے به نیم قیمت دَ آستر هغه بوله ورکوی۔ چه دعوه ئے دَ آستر کړے ده
او نیم مقدار مالوچ به هغه چاله۔ چه دَ مالوچو دعوه ئے کړے ده) دلیل دَ دے
مسئلے داده۔ چا چه دَ ټولے جُبے دعوه کړے ده۔ دَ هغه حکه شوه۔ چه هغه
دعوه دَ ټولے کړے ده۔ او بل مدعی دَ ټولے دعوه نه کوی۔ نو حکم به کیږی دَ پاره
دَ هغه۔ بیا دا مدعی دَ ټولے چه دے۔ دے او مدعی دَ استر واړه دعوه دَ استر کوی دَ
دوئ نه سوا بل مدعی دَ استر دعوه نه کوی۔ او استر دَ دواړو په قبضه کښې دے۔
نو حکم به کیږی چه په دے دواړو مدعیانو کښې کوم نیم استر چه دَ یو په قبضه کښې
دے۔ هغه دَ دغه بل شه۔ دَ پاره دَ دے چه عمل وشی په دے خبره۔ چه شاهدان
دَ مدعی بے قبضے غوره دی۔ دَ شاهدانو دَ خاوند دَ قبضے نه۔ او چا چه دَ استر دعوه
کړے وه۔ دَ هغه دَ پاره چه په نیم استر سره حکم وشه۔ نو دا سے شوه چه لکه کوم یو
دَ ټولے جُبے دعوه کړے ده۔ دهٔ دا نیم آستر دَ هغه نه په زور آخستے وی۔ او دَ
ټیلے جُبے استر کړے ئے وی۔ نو دے ضامن شه دَ استر دَ نیم قیمت۔ او دا رنګ
خبره ده۔ په مالوچو کښې څو فرق دا دے۔ چه په مالوچو کښې دے ضامن دَ
د مثل۔ ریښتیا دَ نیمو مالوچو په ځائے به نیم مالوچ ورکوی هغه مدعی ته چه دَ
مالوچو دعوه ئے کړے ده) او په استر کښې به قیمت دَ نیم استر ورکوی۔ (هغه
مدعی ته چه دَ استر دعوه ئے کړے ده۔)

**مسئله**:۔ دوه تنه دی۔ دَ هر یو په قبضه کښې یوه یوه بیزه ده۔ هر یو دَ دے
دواړو شاهدان وُدروی په دے خبره۔ چه دَ دے ملکری په قبضه کښې چه
کومه بیزه ده۔ دا ځما ده۔ او دا پیدا شوے ده ځما دَ هغه بیزے نه چه ځما په قبضه
کښې ده۔ نو که دَ دواړو عُمر معلومید لګران وو۔ نو امام محمّد صاحب رح په اصل
کښې ذکر کړیدی چه حکم به کیږی دَ هر یو دَ پاره په هغه بیزے سره چه هغه
دَ بل په قبضه کښې ده۔ او امام ابو یوسف صاحب رح وائی چه حکم به کیږی دَ هر
یو دَ پاره په هغه بیزه سره چه په قبضه کښې ئے ده۔ نو حکم به دا کیږی۔ چه دَ دهٔ
په لاس کښې وه۔ او یو ورسره پاتے شوه۔ دا نه چه کوم دے ئے او س مستحق
ګرزیدهٔ۔

**مسئله**:۔ کور دوو په قبضه دَ یو سړی کښې۔ دعوه پرے وکړه بل۔ نو مدعا علیه
شاهدان وُدرول په دے خبره چه دے مدعی دَ دے دعوے نه وُړومبے ویلی

وُو۔ چه داکور څما نه دے۔ یا دا چه داکورنه وو څما۔ نو بے فایدے به شی شاهدان دَ مدعی۔

**مسئله**:- مریَے وو په قبضه کښې دَ یو سړی۔ دعوه پرے وکړه دوؤ تنو۔ هر یو شاهدان وُدرول په دے خبره۔ چه دا مریَے څما دے۔ ما په طور دَ امانت ورکړے دے۔ خاوند دَ قبضے له۔ او مدعا علیه دَ دواړو دَ دعوے نه منکر وو۔ او دا ئے وئیل چه دا مریَے څما دے۔ نو قاضی لا دَ دواړو مدعیانو په شهادتونو سره څه حکم نه وو کړے۔ تر دے پورے چه خاوند دَ قبضے په دے دواړو مدعیانو کښې دَ یو تن تصدیق وُکه۔ (چه دے بے ښتیا وائی۔ دا مریَے ماله دهٔ امانتًا راکړے دے۔) نو خاوندَ قبضے به دغه مریَے هغه مدعی له ورکړی۔ چه دَ کوم یوئے تصدیق کړے دے۔ نو بیا که دَ شاهدانو تعدیل وشه (یعنے نول کره وُختل) نو حکم به وُشی دَ پاره دَ دواړو مدعیانو۔ (چه دا مریَے دَ دواړو شریک دے۔) "قاضیخان په دعاوی کښې"

**مسئله**:- یو مریَے وو۔ دَ یو سړی په قبضے کښې دے۔ مریَ شاهدان وُدرول په دے خبره چه زهٔ آزاد سړے یم۔ او خاوند دَ قبضے او وئیل۔ چه دا مریَے دَ فلانی سړی مریَے دے۔ ما ته ئے په طریقه دَ امانت پریخے دے۔ یا ماله ئے په اجاره راکړے دے۔ نو شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره دی۔ په خلاف دَ هغے نه چه مریَے شاهدان وُدروی په خپل مالک باندے۔ دَ دے خبرے چه زهٔ حُرّالاصل یم (په اصل کښې آزاد یم او مریَے نه یم) او مالک شاهدان وُدروی په دَے خبره چه ته مریَے یئے۔ نو شاهدان دَ مریَ غوره دی۔ دلیل (دَ دے دواړو مسئلو) دا دے۔ چه دَ مریَ شاهدان چه آزادوالے ثابتوی۔ نو دَ دے خصم مالک کیدے شی۔ (یعنے مالک دَ جګړے حق لری۔ نو وائی چه آزاد نه دے۔ لکن چه شاهدانو پسے شاهدی وکړه نو هغه غوره شو۔) او دلته (یعنے په هغه صورت کښې چه خاوند دَ قبضے وائی۔ چه دا دَ فلانی مریَے دے۔ ما ته ئے په طور دَ امانت یا دَ اجارے راکړے دے) دَ چا سره چه اوس دے۔ هغه خصم (جګړه کوُنکے) نه شی کیدے۔ (چه کوندِ شاهدان دَ مریَ دَ هغه په خلاف ودریګی۔ بلکه خصم ئے مالک دے۔ او هغه حاضر نه دے نو دَ دے وجه نه شاهدان دَ مریَ نه شو غوره) لکن (په دے صورت کښې) جدائی به را وستے شی۔ دَ مریَ او دَ خاوند دَ قبضے په مینځ کښې او اصل دَ دے حکم دا دے۔

سله په خلاصه کښې وئیلی دی۔ چه دَ مریَ نه به معتبر ضمانت واخستے شی۔ دَ پاره دَ دے چه کوم وخت غائب مالک حاضر شی۔ نو دا مریَے به دا[illegible] کړے شی۔ مترجم ÷

(یعنې داحکم راپېښلی شوی دی د دې مسئلې نه) چه کوم سړی وکیل یې د ښځې په نقل کولو سره (مثلاً زید ولکیلو بکر ئې وکیل که۔ چه ته ځما ښځه ماله فلانی کلی ته راوله۔ نو بکر وکیل دی د ښځې په نقل کولو۔ نو چه بکر د دغې ښځې د بولو اراده وکړه) که هغې شاهدان وړاندې کړل په دریو طلاقو باندې (چه ځه خو زید په دریو طلاقو طلاقه کړې یمه۔ اوس زه ځله غواړې) نو د ښځې شاهدان قبول نه دي۔ لکن وکیل (یعنې بکر) به ودنه څه نه شي وېلې۔ او دا حکم د هغه دلیل دی۔ کوم ته چه استحسان وېلې کیږي۔ نو دا دلته حکم شه د مرئي په دې تیره شوې مسئله کښې۔ او که صورت د مسئلې داسې وو۔ چه مرئي او وېیل چه زید آزاد کړې یم۔ او خاوند د قبضې (او وېیل۔ چه دې ماته زید په طریقه د امانت یا په طریقه د اجارې راکړې دی۔) او خاوند د قبضې شاهدان وړاندې په دعوه خپله۔ نو د ده او د مرئي په منځکښې به جدائي نه راوستې کیږي۔ ځکه چه مرئي اقرار کړې دی د مرئي توب۔ او بیا ئې دعوه وکړه د آزادئ۔ (چه زه زید آزاد کړې یم) او که مرئي دا او وېیل چه زه حرالاصل یم۔ (یعنې د اصل نه آزاد سړی یم) نو په دې صورت کښې خبره د مرئي معتبره ده۔ په سبب د حکم د اصل۔

**مسئله**:- که مرئي شاهدان وړاندې په دې خبره چه زه آزاد یم۔ او خاوند د قبضې شاهدان وړاندې په دې خبره چه ته ماته فلانی غائب سړي په طور د امانت راکړې ئې۔ او په دې ئې شاهدان وړه ورول چه ته د هغه مرئي ئې۔ نو دا شاهدان قبول نه دي۔ په خلاف د هغې نه چه مرئي شاهدان وړدروي پرده خبره چه زه فلانی غائب آزاد کړې یم۔ یعنې هغه فلانی چه خاوند د قبضې د چا امانت دعوه کوي۔ ځکه چه په دې صورت کښې دفعه کیږي جګړه د مرئي د خاوند د قبضې نه۔ ځکه چه مرئي په خپل ځان اقرار د مرئي توب کړې دی۔

**مسئله**:- یو هلک وو۔ د یو سړي په قبضه کښې وو ئې وېیل چه زه آزاد یم۔ او خاوند د قبضې او وېیل چه دې ځما مرئي دی۔ نو که مرئي وړوکې وي۔ خپل حال نه شي بیانولې۔ نو بیا خبره د خاوند د قبضې معتبره ده۔ او دغه وړوکې داسې شه لکه سامان (لکه لوښې لرګې وغیره) او که مرئي لوئي وو۔ یا وړوکې وو۔ خو حال ئې بیانولې شو۔ نو بیا خبره د مرئي معتبره ده۔ او که دوارو شاهدان وړدرول

دهٔ خو په دے خبره چه دا خما مرئے دے ۔ او هغه په دے خبره چه زهٔ آنا دئیم ۔ او حال داوو چه لوئ وو ۔ خبرے ئے ښے کولے شوے ۔ نو شاهدان دَ آزادئ غوره دی دارنګ ویلی دی جامع صغیر په مسئلو دَ قضا کښې او دا جایزه ده ۔ چه خبره دَ یو معتبره وی ۔ او شاهدان هم دَ هغه معتبر وی ۔ لکه چه چا سره څه امانت ایخودے شوے وی ۔ هغه اووائ چه ما دغه امانت واپس ورکړیدے امانت ایخودونکی ته ۔ (او امانت ایخودونکے اووائ چه تا نه دے واپس راکړے) نو خبره دَ هغه یو معتبره ده ۔ چه دَ چا څخه امانت ایخودلے شوے وو ۔ اوکه دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول ۔ نو شاهدان هم دَ هغه غوره دی ۔ او دارنګ که یو سړی دائ ته اووئیل ۔ چه تا دے واړه له دَ غوا پئ ورکړی دی (او ما تاته وئیلی وُو چه خپل پئ به ورکوے ۔ نو نښته مزدوری تالره) او هغ اووئیل چه نه بلکه ما خپل پئ ورکړی دی ۔ نو خبره دَ دائ معتبره ده ۔ اوکه دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول ۔ نو شاهدان هم دَ دے دائ غوره دی ۔ او دارنګ یوه بله مسئله هم جامع صغیر راوړے ده ۔ (په مسئلو سلم کښې) چه کوم سړی چه بل له روپئ ورکړے وے په طریقه دَ سلم ۔ که هغه اووئیل چه ما تا سره دَ یو ے میاشتے مُده مقرر کړے وه (چه دا روپئ واخله او دَ فلانئ میاشتے په فلانئ تاریخ به مال دومره غنم راکړے ۔ مثلاً) اوس هغه میاشت تیره شوے ده ۔ او چا چه دا روپئ آخستے دی په طریقه دَ سلم ۔ هغه اووئیل ۔ چه نه ده تیره شوے ۔ ما خو ستا نه اوس روپئ واخستے په طریقه دَ سلم ۔ نو خبره دَ دهٔ معتبره ده ۔ (یعنے دَ روپو اخستونکی) او په طلب کونکی باندے لازم دی ۔ چه شاهدان وُدروی ۔ اوکه دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول ۔ نو شاهدان هم دَ روپو آخستونکی غوره دی ۔

**مسئله** :- په کافی کتاب کښې ئے ویلی دی ۔ چه خاوند که خپلے ښځے له څه کپړه اولیږله ۔ ښځ هغے اووئیل چه هغه مُنجره وه ۔ او خاوند ئے وئیل ۔ چه هغه جوړه وه نو خبره دَ خاوند معتبره ده ۔ اوکه ښځے شاهدان وُدرول ۔ نو دا شاهدان قبول دی ۔ اوکه دواړو شاهدان وُدرول ۔ نو هم شاهدانٓ دَ ښځے غوره دی ۔

**مسئله** :- دَ یو سړی په قبضه کښې یوه وینزه وه ۔ هغ اووئیل چه زهٔ دَ فلانی

---

له او قاضیخان په باب دَ نفقے کښې ویلی دی چه شاهدان دَ خاوند غوره دی ۔ ۱۲ مترجم

سړی دَ بچي مور یَم ـ یا زهٔ هغه مدبره کړے یَم ـ ( یعنے ما ته ئے وئیلی دی ـ چه ته آزاده ئے پس ځما دَ مرګ نه ) یا ئے مکاتبه کړے یَمه ( یعنے ځما سره ئے دومره روپئ کړی دی ـ چه دا اداکړه نو ته آزاده ئے ) یا زهٔ ئے آزاده کړے یَمه ـ او خاوند دَ قبضے او وئیل چه ته ځما وینځه ئے نو خبره دَ خاوند دَ قبضے معتبره ده ـ او وئیلی دی امام ابو یوسف صاحب رح چه خبره معتبره ده دَ وینزے ـ او دَ هغه فلانی چه دَ کوم یو دَ پاره دے وینزے اقرار کړے دے ـ او که دغه فلانی دَ دے خبرے تصدیق وکړو ( چه دا رښتیا وائی دا ځما وینزه ده ـ ) خو دا ئے وئیل چه ځما نه ئے بچے نه دے شوے ما نه ده آزاده کړے ـ نو بیا خبره دَ خاوند دَ قبضے معتبره ده ـ او که خاوند دَ قبضے وئیل ـ چه دا وینزه ما دَ فلانی نه بیعه آخستے ده ـ او وینزے وئیل چه زهٔ فلانی آزاده کړے یَمه ـ او دواړو شاهدان وُدرول په خپله خپله دعوه باندے ـ نو شاهدان دَ آزادوالی غوره دی ـ لکن که دَ خاوند دَ قبضے چه دغه وینزه ئے په بیعه اخستے لیدلے شوے قبضه وی ـ او خلقو ته ښکاره وی ـ ( نو بیا شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره دی ) " خلاصة الفتاوی "

**مسئله** :- ( یو سړی دعوه وکړه دَ میراثے دَ یو مړی ) او شاهدان ئے وُدرول چه زهٔ دَ دے مړی دَ تره ځوئ یَم ـ او تو مونه ئے ترنیکه پورے یاد کړه ـ نو دَ چا چه درسره جګړه وه ـ هغه شاهدان وُدرول په دے خبره ـ چه دے مدعی اقرار کړیدے چه زهٔ فلانے یَم ـ او ځوئ یَم دَ فلانی او دا فلانے بل شوک وو ـ ( یعنے دَ مړی تره نه وو ) نو دفعه په شی دعوه دَ مدعی ـ او دا دنګه دفعه کیږی ـ که شاهدان ئے وُدرول په دے خبره چه دے مدعی دعوه کړے وه ـ په یو بل سړی باندے چه زهٔ ئے دَ تره ځوئ یَم ـ او دَ پلار او دَ نیکه نوم ئے خودلے وو ـ او قاضی حکم کړے وو په دغه نسب سره ( چه ته دَ دغه سړی ځوئ ئے ) او که شاهدان ئے په دے خبره وُدرول ـ چه دَ مړی پلار فلانے وو ـ غیر وو دَ هغه یو نه کوم چه دا مدعی ښائی ـ نو په دے سره دفعه نه راځی ـ ځکه چه شاهدان دَ یو شی دَ ثابتولو دَ پاره وی ـ دَ نشتوالی دَ پاره نه وی ـ او دا خبره هم ده چه دا مدعا علیه خصم ( جګړه کونکے ) نه دے دَ نیکه دَ نوم په ثابتولو کښ ـ نو شاهدان ئے نه په ثابتولو قبول شو ـ نه په نشتوالی ( مطلب دا چه دے مدعا علیه دوه خبرے کړیدی یوه دا چه دَ مړی پلار فلانے وو ـ بله دا چه هغه سړے نه وو ـ کوم چه دے مدعی

خولے - نو په ورومبی خبره کښې خواثبات شته - لکن دا مدعا علیه دَ هغه په
بابت کښې جګړه کوئکے نه شی کیدے - نو شاهدان په دے اثبات قبول نه شو - او
دویمه خبره دَ نشنوالی ده - نو دَ دے وجے نه په هغے هم شاهدان قبول نه دی
" فصولین لسم فصل "

**مسئله** :- کوروو په قبضه دَ یو سړی کښې - بل پرے دعوه وکړه چه دا څما دے
اُو دوول ئے شاهدان - او مدعا علیه شاهدان وُدرول په دے خبره - چه دا کور
دَ فلانی غائب سړی دے - او هغه دَ دے مدعی نه په بیعه اخستے دے - او زهٔ
په دے وکیل کړے یمه - نو قبول دی دا شاهدان - او دے به خلاص شی - دَ
دغه مدعی دَ جګړے نه - او حکم به نه کیږی (په دے شهادت سره) په دے
خبره چه هغه فلانی غائب سړی جوړ دا کور په بیعه اخستے دے -

**مسئله** :- چا دعوه وکړه دَ یو مړی دَ میراثے اووے ویل - چه زهٔ دَ فلانی
مړی دَ تره خوئ یم - دا سے تره چه شریک وو - دَ دے مړی دَ پلار سره په پلار کښې
او وے دروول شاهدان په نسب باندے - او شاهدانو ئے وخوونوم دَ پلار او دَ
نیکهٔ - او دَ مړی دَ پلار او دَ نیکه - لکه څنګه چه قاعده ده - او مدعا علیه
شاهدان ودرول په دے خبره - چه دَ دغه مړی پلار فلانے وو - غیر وو دَ هغه
یو نه - کوم چه خولے دے دے مدعی - نو قبول نه دی شاهدان دَ مدعا علیه
ځکه چه شهادت دَ یوشی دَ ثابتولو دَ پاره وی - او دَ نشتوالی دَ پاره نه وی -
او دلته دَ مدعا علیه شاهدان وُدریدلی دی په لشتوالی باندے - او دے خصم
نه دے دَ مدعی دَ نیکهٔ دَ نوم په ثابتولو کښې (چه نوم ئے فلانے وو - فلانے نه وو)
او دا ازلنیه حکم دے - که مدعی دعوه کوله - دَ خپل پلار دَ میراثے - نو مدعا علیه
شاهدان وُدرول په دے خبره چه دَ دے مدعی پلار یو بل سړے دو - دَ کوم چه
دعوه کوی هغه نه وو - نو شاهدان دَ مدعا علیه قبول نه دی -

**مسئله** :- که دعوه دَ میراثے ئے کوله - او ویل ئے چه زهٔ دَ فلانی مړی دَ تره
خوئ یم - دا سے تره چه دَ دے مړی دَ پلار سره په پلار کښې شریک وو - او دَ بل
نیکه پورے ئے نوموته ذکر کړه - نو مدعا علیه شاهدان ودرول په دے خبره
چه دَ دے مدعی پلار په خپل ژوندانه کښې ویل - چه زهٔ دَ فلانی (یعنے دَ مړی
دَ پلار) رور یم - دَ طرفه دَ مورنه نهٔ دَ پلار نه - نو شاهدان دَ مدعا علیه قبول

نه دی ۔ مګر که مدعا علیه شاهدان په دے خبره ؤدرول ۔ چه فلانی قاضی حکم کړے
دے ۔ او دَ دے مدعی دَ پلار نسب ئے ثابت کړے دے ۔ دَ داسے فلانی نه چه غیر
دے دَ هغه چا نه چه دَ کوم یو دَ دے مدعی دعوه کړے ده ۔ نو بیا د مدعا علیه شاهدان
قبول دی ۔" قاضیخان په دعاوی کښې"

وئیلی دی ملا خسروؒ دَ درر غرر په هغه فصل کښې ۔ په کوم کښې چه دَ قیمة
آخستلو مسئلے ذکر دی ۔ چه دعوه وکړه یو سړی چه زهٔ دَ فلانی سړی نسبی
یمه په عصوبت سره ۔ (مثلاً وے وئیل چه زهٔ ئے تره یمه دَ پلار دَ طرفه) او نسب
ئے بیان کړلو ۔ او دَ چا چه ورسره جګړه وه ۔ هغه شاهدان ؤدرول په دے
خبره ۔ چه دَ دغه مړی نسب مخالف دے دَ دے نسب نه کوم چه دے مدعی
خولے دے ۔ نو که حکم شوے وی په میراث سره ۔ حکم به نه کیږی په
شاهدانو دَ مدعا علیه سره ۔ او که نه وی شوے ۔ نو دَ دواړو جانبو شهادتونه به
او غورزیږی ۔ ځکه چه دواړه تکراؤ شو ۔ او دَ یو دَ غوره والی څه وجه نشته ۔
او که مدعی شاهدان ؤدرول په دے خبره چه زهٔ دَ هغه مړی دَ تره ځوئ یم
داسے تره چه وو دَ طرفه دَ پلار او دَ مور دواړو نه ۔ او مدعا علیه شاهدان
ؤدرول ۔ په دے خبره چه دا مدعی دَ هغه مړی دَ تره ځوئ دے ۔ داسے تره
چه شریک وو دَ دے مړی دَ پلار سره یوازے په مور کښې ۔ یا ئے شاهدان
ؤدرول په دے خبره چه هغه مړی اقرار کړے وو ۔ چه زهٔ دَ دهٔ (یعنے دَ دغه مدعی)
دَ تره ځوئ یم ۔ هغه تره چه وو صرف دَ طرفه دَ مور نه ۔ نو په دے دواړو
صورتونو کښې دفعه کیږی دعوه دَ مدعی ولے هله ! که مخکښې قاضی حکم
نه وی کړے په شاهدانو دَ مدعی سره ۔ او که حکم ئے کړے وی ۔ نو بیا نه
دفعه کیږی ۔ ځکه چه دَ مدعی دَ شهادت پخولے (مضبوط والے) داغلے دے
په سبب دَ حکم دَ قاضی سره ۔ په خلاف دَ اول صورت نه ۔ (ځکه چه هلته
قاضی لا حکم نه دے کړے ۔) ختم شه مضمون دَ ملا خسرو ۔ او پټه نه ده دا خبره
چه په دے دواړو مسئلو کښې ئے دَ حق نه خلاف کړے دے (یعنے دا دواړه مسئلے
دَ حق نه خلاف دی) لکه چه ښکاره ده خاوندانو دَ عقل ته ۔ ځکه چه مخالفت ئے
کړیدے دَ هغے حکم نه کوم چه قاضیخان ښکاره بیان کړے دے په خپله
فتاوی کښې ۔ (لکه چه مخکښې تیر شوی دی) او ذکر دی په فصول العمادی کتاب

کښې۔ چه یو سړی دعوه وکړه ۔ دَ انګورو دَ یو داسے باغ چه وو دَ بل په قبضه کښې۔
او وے ویَل چه دا باغ ماته په میراث کښې پاتے شوے دے دَ خپل نیکه نه۔ هغه
نیکه چه ځما دَ مور پلار وو۔ او ځما نوم محمد دے۔ او ځما دَ مور نوم خیره وو۔ او
دَ هغے پلار محمّد بن حارث وو۔ نو خاوند دَ قبضے (یعنے مدعا علیه) شاهدان وُدرول
په دے خبره چه دے مدعی مخکښې داوئیل چه زهٔ خوئ دَ عائیشے یم۔ هغه لور
دَ علی بن حسین وه۔ نو جواب ورکړے دے شیخ عطا بن حمزه صاحب رح چه په
دے سره دفعه کبرٰی دعوه دَ دغه مدعی۔ نو دَ دے مثال داسے شه۔ لکه چه
څوک دعوه وکړی دَ یو داسے څیز چه دَ بل په قبضه کښې وی۔ چه دا څیز ماته دَ
خپل پلاره میراث پاتے شوے دے۔ او بیا پرے دعوه وکړی چه دا ماته دَ خپلے موره
میراث پاتے شوے دے۔ او شمس الاسلام اوزجندی صاحب رح په دے قسم
مسئلو کښې دا فتوه ورکوله۔ چه په دے سره نه دفعه کبرٰی دعوه دَ مدعی۔ او نه قبلیږی
شاهدان دَ مدعا علیه په خپله دعوه باندے۔ او په دے حکم کښې دَ اوزجندی صاحب
تابعداری کړے ده ۔ دَ هغه زمانے بعضے عالمانو۔ او په دے به ظهیر الدین
مرغینانی صاحب رح فتوی ورکوله۔ او دا حکم څرګند په نیز دَ حق دے۔ او دلیل دی صاحب
دَ ذخیرے کتاب (په دلیل د دے حکم کښې) چه شاهدان دَ مدعا علیه
که قبول شی ۔ یا به قبلیږی دَ مدعی دَ نیکه دَ نوم په ثابتولو کښې۔ نو مدعا
علیه په دے بابت کښې خصم نه دے۔ (حق دَ جګړے نشته) او یا به قبلیږی
په لشتوالی دَ هغه میراث کښې چه مدعی ئے دعوه کریده۔ نو شاهدان
په نشتوالی معتبر نه دی۔ (دا دلیل بیان مخکښې تیر شوے دے په تفصیل سره)
ختم شه مضمون دَ فصول۔

زهٔ وایم چه امام ملا خسرو صاحب رح چه کومه خبره ذکر کړیده۔ هغه ئے اخستے ده
دَ عطا بن حمزه صاحب رح دَ جواب نه۔ لکن ملا خسرو کوتاهی کړے ده۔ ځکه چه په دَ
حکم کښې ئے دَ چا خلاف نه دے ذکر کړے۔ سره دَ دے ۔ چه دَ دے هغه خلاف غوره
دے دَ اکثرو عالمانو په نزد۔ او په جامع الفصولین کتاب کښې دَ جامع الفتاوٰی
کتاب نه نقل دی چه چا شاهدان وُدرول په دے خبره چه زهٔ دَ فلانی سړی دَ تره
خوئ یم۔ او نسب ئے وخود۔ لو دَ چا چه ورسره جګړه وه۔ هغه شاهدان وُدرول په
دے خبره چه دَ دغه سړی نیکه فلانے وو۔ غیر وو۔ دَ هغه یو نه چه ذکر کړیدے دے مدعی

نوکه قاضي وړومبې دَ مدعي په شاهدانو سره څه حکم نه وي کړے۔ جو اوس به هيڅ حکم نه کوي۔ ځکه چه دواړه شهادتونه سره وجنګيدل۔ (او چه ټکراؤ شي۔ نوادتاؤ شي) او که په وړومبي شهادت سره قاضي حکم کړے وي۔ نو اوس به حکم نه کوي دَ مدعاعليه په شاهدانو سره۔ او که مدعي شاهدان ګودرول په دے خبره چه زهٔ دَ فلاني مړي دَ تره خوئ يم۔ (دا سے تره چه هغه وو) دَ پلار او دَ مور دَ طرف نه نو مدعا عليه شاهدان ګودرول په دے خبره چه دا مدعي دَ هغه مړي دَ تره خوئ دے (دا سے تره چه هغه وو) دَ طرفه دَ مور نه دَ پلار نه۔ نوکه په ړومبي شهادت سره قاضي لاڅه حکم نه وي کړے۔ نو دعوه دَ مدعي به دفعه شي۔ او دا رنګ حکم دے که مدعا عليه په دے خبره شاهدان ګودرول چه هغه مړي اقرار کړے وو۔ چه دا سړے (مدعي) ځما دَ تره خوئ دے دَ طرفه دَ موره نه دَ طرفه دَ پلاره۔ (نوکه قاضي مخکښ دَ مدعي دَ پاره حکم نه وي کړے۔ نو دَ هغه دعوه به دفعه شي) او په فصولين کښ دَ مجموع النوازل کتاب نه دا خبره نقل ده۔ چه يو سړي که دَ ځيل نيکه دَ ميراث دعوه کوله۔ دا سے نيکه چه هغه ئے دَ مور پلار وو۔ او وئيل ئے چه ځما نوم محمد دے او ځما دَ مور نوم مره دے۔ او دَ هغے پلار زيد وو۔ زيد خوئ دَ بکر او هغه خوئ دَ سعد وو۔ نو دَ چا چه ورسره په دغه ميراث کښ جګړه وه هغه شاهدان ګودرول په دے خبره چه دے مدعي داوئيلي دي چه زهٔ خوئ يم دَ عائشے او هغه لور وه دَ علي۔ علي خوئ وو دَ حسين۔ نو بعضو وئيلي دي چه په دے سره دفعه کيږي دعوه دَ مدعي۔ او عطا بن حمزة السعدي صاحب رح دا خبره غوره کړے ده۔ او بعضو وئيلي دي۔ چه نه دفعه کيږي دعوه دَ مدعي۔ او په دے فتوه ورکړے ده۔ اوزجندي صاحب رح او ظهيرالدين مرغيناني صاحب رح او وئيلي دي صاحب دَ ذخيرے کتاب چه دا حکم جوړ ځمونږ په نزد حق دے۔ ختم شه مضمون دَ "فصولين"

زهٔ وايم چه شک نشته په دے خبره کښ چه کوم حکم مولنا خسرو صاحب رح ذکر کړے دے هغه مطابق دے دَ هغه بيان سره کوم چه په جامع الفتاوی کتاب کښ ذکر دے۔ (لکن په دغه حکم کښ يو زبردست اختلاف شته) نو نه پوهيږم چه مولنا خسرو صاحب رح دَ هغه پيروي په دے کمان کړيده چه دا حکم حق دے اګر که اختلاف پکښ موجود دے۔ او که پيروي ئے کړے ده په داسے حال کښ چه

دا اختلاف ورته معلوم نه دو - خدائ پاک دِ برښه پوهیږي -

مسئله :- چا دعوه وکړه په بل چه ځما ورته دومره روپئ پورے دي - نو هغه په جو
کښې اووئیل چه په ما باندے دَدَهٔ هرگز څه نشته - بلکے اووئیل چه په ما ئے هرگز څه نه وُو -
چه مدعي شاهدان وُدرول چپله دعوه باندے - نو مدعا علیه شاهدان وُدرول
هغه روپئ ورته ما پوره پوره ورکړي دي - یا په دے خبره چه دَ هغه نه دانه دَدَهٔ ابرا
کړے ده - ( یعنے زهٔ ئے دَ هغه نه آزاد کړے یم - هغه ئے راته پریخي دي - ) نو قبول
دا شاهدان - اوکه مدعا علیه په جواب کښې داوئیلي وي - چه ځما او ست
په منځکښې دَ هیڅ شي معامله نه وه شوے - ( نو چه مدعي شاهدان وُدرول
خپله دعوه باندے مثلاً په دے خبره چه تا ځما نه فلانے شے په بیعه نسیه اخست
هغه روپئ م درته پورے دي - نو اوس مدعا علیه شاهدان وُدروي په دے خبر
چه هغه ما ادا کړیدي - یا تا دَ هغه نه ابراء کړے ده ) نو بیا دا شاهدان قبول نه دي -
امام ابویوسف صاحب رح وائي چه قبول دي - اوکه مدعا علیه خبره برابره کړه په دَ شان
چه وے وئیل - چه ځمونږ په منځکښې څه معامله نه وه شوے - خو دے شاهدان
ترے آودیدلی دي - چه ابراء ئے کړے ده - ( چه زهٔ ئے آزاد کړے یم ) "جامع الفصو

مسئله :- یو فرنگے مړ شه نو یو مسلمان او یو فرنگي فرنگیان شاهدان وُدرو
هر یو په دے خبره چه ځما دغه مړ فرنګي ته دومره روپئ پورے دي - نو مځکښې به
ادا کیږي قرضه دَ مسلمان دَ طرفینو رح په نزد ( یعنے دَ مسلمان قرضه چه ادا شي
نو بیا که څه نور مال پاتے وو - دَ هغه نه به دَ فرنګي قرضه ورکیدے شي ) او امام
ابویوسف صاحب وائي چه دواړه به تقسیم کړي ( که پوره پوره ورسیږي - نو بیه شود
اوکه دَ دواړو نه پوره کیده - نو دَ خپلے خپلے قرضے په مناسب نسبت به ترے حصه
آخلي ) اوکه هر یو دَ دے دواړو مدعیانو نه فرنګیان شاهدان وُدرول په یو دا
مړئ چه دَ یو ژوندي فرنګي په لاس کښې وو ( یعنے هر یو په دَ شاهدان وُدرول
چه دا مړئ ځما دے ) نو دغه مړئ به دَ مسلمان شي - او دَ امام ابویوسف صاحب
نه دا روایت دے چه په دغه مړئ کښې به دواړه مدعیان برابر حصه دار شي - ( یعنے
نیمه به دَ یو شي او نیمه به دَ بل )

مسئله :- یو کافر مړ شه - دوه ځامن ئے پاتے شو - یو مسلمان و بل کافر

---

له په لسم فصل کښې - ۱۲ مترجم -

نو مسلمان شاهدان وُدرول مسلمانان یا کافران په دے خبره چه ځمونږ دغه پلار مړشوے دے په داسے حال کښ چه هغه مسلمان وو - او کافر شاهدان ودرول په دے خبره چه هغه مړشوے دے په حال دَ کفر کښ - نو حکم به کیږی چه میراث ئے دَ مسلمان دے - او دَ هغه به جنازه به مونځ وکړے شی - لکه چه یو بچے پیداشی - او په مورو پلار کښ ئے یو مسلمان وی او بل کافر - نو دَ شرع دا بیان دے چه بچے ئے مسلمان دے ؛ وجیز په باب دَ شهادت دَ ذمیانو کښ ؛

**مسئله** :- یو سړی شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا څیز ځما دے - نو چه دَ چا سره ئے جګړه وه - هغه شاهدان وُدرول په دے خبره چه دَ مدعی دے شاهدانو دَ دے څیز دعوه کړے وه - (ځانله) نو بے فائدے شو شاهدان دَ مدعی ؛ جامع الفصولین ؛

**مسئله** :- یو سړی شاهدان وُدرول په دے خبره چه دَ زین په قبضه کښ چه دا هلک دے - او نسب ئے معلوم نه دے - دے ځما ځوئے دے دَ دے ښځے نه اوخاوند دَ قبضے یعنے زین شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا هلک ځما ځوئے دے - او نسبت ئے دَ هغه ونکړلو مورته - نو حکم به کیږی دَ پاره دَ مدعی بے قبضے -

**مسئلے** :- یو هلک ورنسیدو ځوانئ ته - نو شاهدان ئے وُدرول په یو سړی او په ښځه - چه زهٔ دَ دے دواړو ځویٔ یم - او یو بل سړی او ښځے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا هلک ځمونږ ځویٔ دے - نو شاهدان دَ هلک غوره دی - او نسب به ئے دَ هغه سړی اودَ ښځے نه ثابت شی چه دهٔ ئے دعوه کړے ده ؛ وجیز په باب دَ دعوے دَ مجهول النسب کښ ؛

**مسئله** :- که دوؤتنو دَ یو بچی په نسب شاهدان وُدرول (هریو په دے خبره چه دا ځما ځویٔ دے) نو دغه بچے به دَ دواړو مدعیانو شی - (دواړو ته بهٔ ئے نسبت دَ ځویٔ والی کیږی -) اوکه یو ورومبیه شاهدان وُدرول - او قاضی پرے حکم وکه - نو بیا دَ دغه بل مدعی شاهدان نه قبلیږی ؛ اشباه په کتاب القضاء کښ ؛

**مسئله** :- یو سړی شاهدان وُدرول په دے خبره چه زین مړ شوی دے

او دائے حما مورثه میراث پریخے دے۔ بیا هغه مړه شوے دة۔ او دائے حما ته په میراث کښې پریخے دے۔ چرې قاضی ورله حکم وکه۔ نو دَ چا سره چه دَ دے مدعی جګړه وه۔ هغه شاهدان وُدرول په دے خبره۔ چه ستا هغه مورچه تا ئے دَ میراث دعوه کوے۔ مړه شوے دة۔ مخکښې دَ دغه زیں نه۔ چه ته وائے هغه مخکښې مړ دے۔ نو بعضِ عالمان وائی چه په دے سره دَ دغه مدعی دعوه دفعه کیږی۔ او بعضے وائی چه نه۔ ځکه چه دَ مرګ وخت دَ قاضی دَ حکم لاندے نه راځی۔ "جامع الفصولین"

**مسئله** :- یو خاروے وو۔ دَ زید په قبضه کښې۔ نو شاهدان وُدرول یو مدعی بے قبضے په دے خبره چه دا خاروے حما دے۔ ما په اجاره ورکړے دے زید له۔ یا په دے خبره چه ما په طور دَ عاریت ورکړے دے زید له۔ او زید شاهدان وُدرول په دے خبره۔ چه دا حما دے۔ پیدا شوے دے حما کره نو حکم به کیږی چه دا خاروے دَ زید دے۔ ځکه چه دے دعوه دَ کورنی پیدائیش کوی۔ او مدعی بے قبضے دَ اجارے یا دَ عاریت دعوه کوی۔ او کورنے پیدائیش[عـ] مخکښې دے دَ اجارے او دَ عاریت وغیره وغیره نه۔ او که مدعی بے قبضے وُدرول شاهدان په دے خبره چه دا حما دے۔ پیدا شوے دے حما کره۔ (یعنے حما دَ چل خاروی نه) چرې قاضی دَ مدعی دَ پاره حکم وکه۔ پس دَ دے نه زید شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا حما دے۔ حما کورنے پیدا دے نو حکم به کیږی دَ پاره دَ زید په خلاف[له] دَ ملک مطلق نه۔

**مسئله** :- او دَ فتاوو په بعضو کتابونو کښې راوړی دی۔ چه مدعی بے قبضے که شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا خاروے حما دے۔ حما کورنے پیدا دے۔ او خاوند دَ قبضے هم دادنګ شاهدان وُدرول۔ چرې قاضی دَ خاوند دَ قبضے دَ پاره حکم وکړو۔ او یائے لا نه وو کړے۔ تردے پورے چه

له دَ دے جملے په ظاهر کښې دَ دوه صورتونه کیں ے شی۔ یو دا چه مدعی بے قبضے شاهدان وودرولی په دَ خبره چه دا خاروے حما دے۔ او حکم پرے شوے وی۔ پس دَ هغے نه خاوند دَ قبضے شاهدان وودروی په دَ خبره چه دا حُما دے نو شاهدان دَ خاوند دَ قبضے قبول نه دی۔ دویم دا چه مدعی بے قبضے شاهدان وُدرولی دی چه دا خاروے حماد ے حما کورنے پیدا دے۔ او حکم پرے شوے وی۔ پس دَ هغے نه خاوند دَ قبضے شاهدان وودروی چه دا حُما دے نو دا شاهدان قبول نه دی۔ دریم دا چه مدعی بے قبضے شاهدان وودرولی دی په دے خبره چه دا خاروے حما دے او حکم پرے شوے وی۔ او س خاوند دَ قبضے شاهدان وودروی په دے خبره چه دا حُما دے۔ حما کورنے پیدا دے۔ لیکن دا دریم صورت مراد نه دے۔ ځکه چه په دے صورت کښې قبلیږی شاهدان دَ خاوند دَ قبضے ۱۲ مترجم

عـ دا مسئله تیره شوے دة ۱۲ مترجم

مدعی بے قبضے اوویل۔ چہ تہ دَ کورنی پیدا ایش پہ دے دعوہ کښې دروغژن ئے ځکه چه تا اقرار کړے دے۔ ویلی دی وو۔ چه ما دا څاروے خرځ کړے وو۔ بیا م پہ بیعه اخستے دے دَ فلانی نه۔ نو اوری یه قاضی دا دفعه۔ او قبول دی شاهدان دَ مدعی بے قبضے۔ ځکه چه خاوند دَ قبضے چه دغه څاروے خرځ کړے دے۔ او بیا ئے اخستے دے۔ نو دا یو نوے ملکیت دے۔ پہ دے سره بے فائده کیږی دعوه دَ کورنی پیدائش او دعوه دَ هغه شی[له] چه دَ دے پہ شان وی۔ او پہ بعضو تورو کتابونو کښې ذکر دی چه مدعی بے قبضے دعوه وکړه (دَ کورنی پیدا ایش دَ یو څاروی) نو خاوند دَ قبضے ورته اوویل۔ چه ته پہ دے دعوه کښې دروغژن ئے۔ ځکه چه تا اقرار کړے دے۔ ویلی دے دی۔ چه دا څاروے ما دَ فلانی نه پہ بیعه اخستے دے۔ نو پہ دے سره دفعه کیږی دعوه دَ مدعی۔

**مسئله** :- که چا دعوه وکړه پہ یوه داسے زمکه چه آبادی پکښې موجوده وه چه دا ځما ده۔ او وے درول شاهدان پہ خپله دعوه باندے۔ جو ر قاضی دَ هغه دَ پاره حکم وکړو۔ پس دَ دے نه مدعا علیه دعوه وکړه۔ چه پہ دے زمکه دا آبادے ما کړے دے۔ او حال داوو چه دَ مدعی شاهدانو دَ مدعی دَ پاره صرف دَ زمکے شاهدی کړے وه۔ نه دَ آبادئ۔ نو آوری یه قاضی دا دعوه دَ مدعا علیه او که دَ مدعی شاهدانو ممکښی دَ مدعی دَ پاره شاهدی پہ زمکه او پہ آبادئے دواړو کړے وی۔ نو بیا یه قاضی دَ مدعا علیه دا دعوه نه آوری۔" جامع الفتاوی پہ دعاوی کښې۔

**مسئله** :- یو سړی دعوه وکړه۔ او شاهدان ئے ودرول پہ دے خبره چه دا شے ماته دَ پلار نه میراث پاتے شوے دے۔ نو دَ چا سره ئے چه دَ دغه شی پہ بابت کښې جګړه ده۔ هغه (مثلاً زید) شاهدان ودرول پہ دے خبره چه ستا پلار اقرار کړے وو دَ دے خبرے چه دا شے دَ زید ملکیت دے۔ نو قاضی بہ دا دفعه آوری (اوږد به شی دعوه دَ مدعی) او که بیا مدعی شاهدان ودرول پہ دے خبره۔ چه تا ځما دَ پلار دَ پاره اقرار کړے دے" چه دا شے دَ هغه دے۔ نو قاضی به دا دفعه هم آوری۔ او دا دواړه دفعے (یعنے دفعه دَ مدعا علیه او دفعه دَ مدعی) ټکراو شو یدی۔ (نو چه ټکراو شوے نو ارتاؤ شوے) نو قبول به شی شاهدان دَ میراث بے

---

[له] لکه هغه سبب پہ ملکیت کښې چه بار بار نه وی۔ لکه پئ لوشل۔ وړے ریکول وغیره ۱۲ مترجم

دَ خه معارضه نه (یعنې خه معارض ئې پاتې نه شه) پس که زید بیان وکه - چه دَ دے مدعی پلار په فلانی تاریخ اقرار کړے وو - او مدعی وو نحوو تاریخ دَ اقرار دَ مدعا علیه نو قبلیږی شاهدان دَ مدعی " لسم فصل دَ فصولین "

**مسئله** :- یو سړی دعوه وکړه دَ یو مړی په میراث خورو باندے - چه زهٔ دَ دغه مړی خوئ یم - او عُمرم دوه ولیشت کاله دے - او شاهدان ئې وُدرول په دے خپله دعوه باندے - نو میراث خوز دَ دغه مړی شاهدان وُدرول په دے خبره باندې چه عمر دَ دے مدعی اتلس کاله دے - نو دا صحیح دفعه ده - دفعه کیږی په دے سره شاهدان دَ مدعی -

**مسئله** :- دعوه ئې وکړه په یو سړی باندے چه دهٔ یو هلک ته حکم کړے وو - چه دا خراووهه او وے یا سه - ځما دَ انګورو دَ باغ نه - نو دے هلک دا سے اووهلو چه ترے مړشو - او وے درول شاهدان په دے دعوه باندې - او مدعا علیه شاهدان وډرول په دے خبره چه هغه خرژوند ے دے - نو دا شاهدان قبول نه دی ځکه چه دوئ وُدریدلی په نشتوالی دَ مقصود - (یعنې په نه مړګ باندے - او شاهدان وی دَ پاره دَ اثبات نه دَ پاره دَ نشت ) " قنیه په باب دَ تواتر دَ شهاداتو کښی "

**مسئله** :- یو سړے مړشه - پاتې ئې شوه ښځه او اولاد دَ بلے ښځې نه - نو اولاد ئې دعوه وکړه دَ دے خبرے چه دا ښځه ځمونږ په پلار باندے دَ مرګ نه شپږ میاشتې مخکښې حرامه وه - او وے درول شاهدان په دے دعوه باندے او ښځې شاهدان وُدرول په دے خبره چه ځه ورله حلاله وُم دَ مرګ په وخت کښی - نو شاهدان دَ ښځې غوره دی -

**مسئله** :- په عامه لاره کښی دَ یو سړی یوه تښتئ وه - یا دَ اوښانو منځه‌وُ - یا بل داسے ځائ وو - نو بل چا پرے دعوه وکړه - چه دا مخکښې نه وه - اوس دغه کړے شوے دے - او دَ هغې خاوند اوویل چه دا قدیمی (پخوانی) دے - او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول - نو کوم یو چه دَ وسنې دعوه کړے ده - دَ هغه شاهدان غوره دی -

**مسئله** :- زید په بیعه یو غوئې دَ بکر نه واخسته - نو بیا خالد دعوه وکړه په زید باندے - چه دا غوئې ځما دے - ځما دَ خپلې غوا نه پیدا دے - نو قاضی حکم

وکړلو دَ خالد دَ پاره ـ او خالد ته ئے غوئے او سپاره ـ نو زيد اراده وکړه ـ دَ قيمت اخستلو دَ بکر ته ـ چه خپلے روپئ ترے بيرته غواړم ) نو بکر شاهدان وُدرول په حضور دَ زيد او دَ خالد کښ په دے خبره چه دا غوايه ځما کورنے پيدا دے ـ ځما خپلے غوا راوړے دے نو شاهدان دَ بکر غوره دی ـ او په دے باندے فتوىٰ ورکړيږه سالکی صاحب او ويلی دی په دليل کښ چه خاوند دَ قبضے يعنے زيد مالک والے دَ دَغه غوئی حاصل کړيدے دَ بکر نه ـ نو داسے شوه ـ لکه چه خاوند دَ قبضے شاهدان ودرولی دی راو هرکله چه دَ کورنی پيدائيش په سبب مدعی بے قبضے دَ پاره حکم وشی ـ پس دَ هغے نه که خاوند دَ قبضے په کورنی پيدائيش شاهدان وُدرول ـ تو شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره کيږی) نو له دے وجه ته (په دے مسئله کښ هم ) شاهدان دَ بکر غوره شو ـ

**مسئله** :ـ که دعوه ئے وکړه چه دا مرئے ځما دے ـ او ځما نه غائب شوے دَ يو مياشتے نه ـ او خاوند دَ قبضے اوويل چه دا ځما دے دَ يو کال نه ـ نو حکم به کيږی دَ پاره دَ مدعی بے قبضے ـ او نه به کوی قاضی شاهدانو ته دَ مدعا عليه دليل دادے چه کوم تاريخ چه مدعی کولے هغه دَ دَغه مرئی دَ غائبوالی تاريخ دے چه دَ دَغه تاريخه ځما دَ قبضے نه وتے دے ـ او دَ مالکوالی تاريخ ئے نه دے ـ (چه کوني زه دَ دَغه تاريخ نه مالک شوے يم ) نو مدعی بے قبضے دا دعوه دَ ملک مطلق دعوه ده ـ او خالی ده دَ ذکره دَ تاريخه نه ـ او خاوند دَ قبضے ذکر کړيدے تاريخ دَ خپل ملکيت ـ لکن تاريخ ذکر کول په داسے حال کښ چه هغه بل خپل تاريخ نه وی ذکر کړے ـ نه دے معتبر دَ امام اعظم صاحب رحـ په نزد ـ نو ګويا خاوند دَ قبضے دَ مطلق ملک دعوه کړيده ـ په شان دَ دعوے دَ مدعی بے قبضے نو ګويا دواړو تاريخ نه دَ ذکر خولے ـ خو دَ ملکيت مطلقه دعوه ئے کړيده ـ او په داسے صورت کښ شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره دی ـ نو دلته هم حکم وکړے شه په شاهدانو دَ مدعی بے قبضے سره ) " درر غرر"

**مسئله** :ـ يو سړی دَ خر دعوه وکړه ـ چه دا ځما ملک دے ـ او دا تو مياشتو نه ځما نه غائب شوے دے ـ او خاوند دَ قبضے اوويل ـ چه اولس مياشتے کيږی چه دا خرما په بيعه اخستے دے ـ او دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان ودرول نو شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره دی ـ "قنيه په باب دَ دوُ متعارضو شهادتونو

کښل ۔

**مسئله** :۔ یو سړی دعوه وکړه۔ چه دا شیز ما د دے زید نه چه دا شیزئے په
قبضه کښی دے په بیعه اخستے دے۔ او روپئ رم ورته شمارلی دی۔ نو زید شاهدان
وډرول په دے خبره۔ چه دا خو خما تخیه د فلانی سړی امانت دے۔ نو په دے نه دفعه
کیږی دعوه د مدعی ۔ ځکه چه هغه په زید باندے د یو فعل (یعنے د یو کار) دعوه کړے
ده۔ او هغه دا دے۔ چه په زید باندے لازم دی سپارل د دغه شیز ماته۔ دا حکم
هاله دے۔ چه مدعی د دے خبرے دعوه کړی وی۔ چه ما ترے په بیعه اخستے دے
اولا قبض کړے رم نه دے۔ او که داد عوئے وکړه چه ما ترے په بیعه اخستے دے او قبض کړے رم د
او شاهدانو ئے دا رتلے شاهدی اوکړه۔ او نوره مسئله پخپل حال وه۔ نو ائے بیا زید چه کومه خبره
د ده په جواب کښل کړے ده۔ په هغے سره د ده د دعوے دفعه کیږی او که نه کیږی۔ نو ذکر کړیدی
ابوالهیثم د دریو قاضیانو صاحبانو نه یعنے د ابوحازم۔ او ابوسعید بردعی او ابوطاهر دباس نه
دا خبره چه زید په دے سره خلاصیږی د مدعی د جګړے نه ځکه چه دعوه د قیمة
اخستلو د یو شیز سره د قبضے نه چه ده۔ دا ګویا دعوه د ملک مطلق ده (یعنے داسے
ده۔ لکه چه سبب د ملکیت ئے نه ئ خودلے۔ خو صرف د ملکیت دعوه ئے
کړے وی) اے نه نه ګورے دے نه چه په دے کښل د شاهدانو وډرول د صحیح
کیدلو د پاره نوم اخستل او خاص کول ضروری نه دی۔ تر دے پورے چه یو تن که
بل نه اووئیل۔ چه ما ستا نه په دومره قیمت یو مرئے اخستے دے۔ او تا راته سپارلے
دے۔ او شاهدان ئے وډرول۔ نو دا شاهدان قبلیږی۔ اګرکه مرئے مجهول وی۔
او ځمونږ نورو عالمانو صاحبانو وئیلی دی۔ چه د زید په دے جواب سره (چه دا ما
تخیه د فلانی امانت دے۔) نه دفعه کیږئ دعوه د مدعی (یعنے زید په دے
سره نه خلاصیږی د جګړے نه) ځکه چه د کوم کار دعوه چه مدعی کړیده۔ هغه
په بیعه اخستل دی۔ او هغے له اعتبار شته دے۔ نو دا دعوه د مطلق ملک
نه ده (چه سبب پکښی د ملکیت نه وی خودلے شوے۔ بلکه سبب ئے خودلے دے
چه په بیعه اخستل دی۔) او دغه وجه ده۔ چه حکم نه کیږی د دے مدعی د
پاره په هغه زیاتی شیزونو سره چه د دے د شیز نه جدا دی۔ او بعضے

---

سله قاضیخان په دعوی الدار کښل دے خبرے ته صحیح وئیلی دی۔ چه دفعه راځی۔ ۱۲ مترجم

خرخونکی دَ بعضو نه قیمت بیرته نه شی اخستلے۔ اوکه دعوه دَ قیمتً اخستلو په شان دَ دعوے دَ مطلق ملکیت وے۔ نو بیا به دا دواړه خبرے موجود دے وے۔ ( مطلب دا دے۔کچا دعوه وکړه چه مثلاً دا غوا څما ده۔ او سبب دَ ملکیت ئے ونخوو۔ او شاهدان ئے وُدرول نو چه غوا دده شی۔ بیا دَ دغه غوا سره که بچے وی۔ هغه به هم دَدهٔ شی اوکه دغه غوا چا په بل بانډے خرڅه کړے وی۔ او هغه بل بیا په بل بانډے خرڅه کړے وی۔ نو غوا خودَ مدعی شوه۔ باقی چا چه دَ چا نه په بیعه اخستے۔ هغه به دَ هغه نه خپل قیمت بیرته واخلی۔ دا دواړه خبرے په هغه صورت کښ دی۔ چه مدعی دُ ملک مطلق دعوه کړے وی۔ یعنے صرف دَ ملکیت دعوه ئے کړے وی۔ او سبب دَ ملکیت ئے نه وی ښوولے۔ اوکه دعوه دَ قیمتً اخستلو ئے کړی وی۔ نو بیا دا دواړه خبرے چه تیرے شوے نشته۔ نو معلومه شوه چه دعوه دَ قیمتً اخستلو چه ده دا په شان دَ دعوے دَ ملک مطلق نه ده۔ او مدعی چه دعوه دَ ملک مطلق وکړی۔ او مدعا علیه دعوه دَ امانت وکړی۔ نو په دے سره خلاصیږی دَ جګړے نه۔ لکن مدعی که په دے دعوه دَ بیع کړے وی۔ نو بیا په دعوه دَ امانت سره مدعا علیه نه شی خلاصیدلے۔ دَ مدعی دَ جګړے) او دارنګ حکم دے که مدعی شاهدان وُدرول۔ په دے خبره چه فلانے څیز چه دَ زید په قبضه کښ دے۔ دا زید ماته ګانړه کړے دے۔ یا په اجاره ئے راکړے دے۔ یائے ماته بخلے دے۔ یائے خیراتی راکړے دے۔ او ما تو ے قبض کړے دے۔ او زید شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا فلانی غائب سړی ماته امانت ایخلے دے۔ نو زید په دے سره نه خلاصیږی دَ جګړے نه۔ ( یعنے دَ مدعی دَ دعوے دفعه په دے سره نه کیږی)) او دا حکم صحیح دے۔ او ظاهر دے دَ دوؤ مذهبو نو نه ( یعنے قولونه دواړه نشته۔ خو دا قول ظاهر دے۔" لسم فصل دَ فصولین"

**مسئله**:۔ تصرف کونکی اقرار وکړلو دَ دے خبرے چه دا زمکه دَ زید ده" چه غایب دے" نو راغے یو سړے۔ نو کرونده ئے پکښ وکړه۔ او وے ویل چه دا زمکه څما ده۔ پس دے نه حاضر شه زید۔ دعوه ئے وکړه دَ دغے زمکے۔ نو کرونده کونکے خاوند دَ قبضے دے۔ نو که دواړو شاهدان ودرول۔ نو شاهدان دَ زید غوره دی۔

**مسئله**:۔ دَ زید کاوندی دَ زید په کور دعوه وکړه۔ چه دا کور څما پلار دَ جوړ کړے دے شپیته کاله ئے کیږی۔ او زید هم دارنګ دعوه وکړه۔ (چه دا څما پلار دَ غه کړے دے

شپیته کاله ئے کیږی) او دواړه شاهدان وُدرول په خپله خپله دعوه باندے - نو دا دعوه کافی نه ده - ترکومے پورے چه داسے او نه وائی چه ځما پلار مړ شوے دے - او دا کور ئے ماته میراث پریخے دے - او که دواړه داسے اوونیل - او شاهدان ئے وُدرول نو شاهدان دَ خاوند دَ قبضے یعنی دَ زید غوره وی -

**مسئله** :- یو سړی په بل باندے دَ یو پټی دعوه وکړه - چه دغه پټه چه دَده په قبضه کښ دے - ماته دَ خپلے نیا نه میراث پاتے شوے دے - او وئے درول شاهدان نو خاوند دَ قبضے وائی - چه دَ دے مدعی دَ نیا یو ځوئ دے - چه غایب دے - او معلومه نه ده - چه مړ دے که ژوند ے - او دومره مُده هم نه ده تیره شوے چه دَ هغے په وجه پرے حکم وُشی چه مړ شوے دے - او خاوند دَ قبضے شاهدان وُدروی په خپله خبره باندے - نو قاضی به دَ ده دا دعوه نه آوری - ځکه چه دے اجنبی (پردے) سړے دے - دَ غیر په ملکیت ثابتولو کښ (یعنی دَ ده خه حق دے چه وائی چه دا دَ غائب ځوئ دے)

**مسئله** :- مختلف شول میراث خواره دَ خپلوانو دَ مرګ په تاریخ کښ رچه کوم مخکښ مړ شوے دے - کوم وُرستو) او هر یو شاهدان وُدرول په خپله دعوه باندے نو شاهدان دَ هغه چا غوره دی چه دَ میراث دَ زیاتوالی دعوه کوی [۱]۔

**مسئله** :- که چا دعوه وکړه - چه زهٔ دَ فلانی سړی دَ نره ځوئ یم - او میراث خور یم - بل میراث خور ئے نشته سوا ځما نه - او بل چا دعوه وکړه چه زهٔ دَ هغه رور یم - سوا ځما نه ئے بل میراث خور نشته دے - او دریم تن دعوه وکړه چه زهٔ ئے ځوئے یم - سوا ځما نه ئے بل میراث خور نشته - او درے واړه په خپله خپله دعوه باندے دَ فیصلے په وخت کښ یو ځائے شاهدان وُدرول - نو حکم به کیږی په نسب سره دَ پاره دَ درے واړو - اګرکه میراث به ئے ځوئے له ورکیدے شی - نه بل له -

**مسئله** :- ذید دَ بکر نه یوه وینزه په بیع واخسته - نو هغے دَ زید ځخه بچے راوړو (ذید او بکر مختلف شو - په بابت دَ بچی کښ) بکر اووئیل - چه دا بچے ځما دے - دا

---

[۱] په درمنتقی کښ وئیلی دی - چه که هر یو میراث خور شاهدان وُدرول چه ځما پلار ورستو مړ شوے دے نو دا شاهدان به او غور نیګی په نزد دَ امام صاحب رح او که هر یو شاهدان وُدرول دَ هغه بل دَ پلار دَ مرګ پرورستی والی باندے نو هم به او غور نیګی - او که په دوئ کښ صرف یو تن شاهدان وُدرول چه ځما پلار وروستو مړ شوے دے نو دا شاهدان قبول دی - ځکه چه معارض ئے نشته - او دا رنګ حکم دے که یو دعوه وکړه او صرف هغه قسم اوخوړ - ۱۲ مترجم

وینزه چه ما د رخرڅ کړیده - دَ بیع نه وروستو لا شپږ میاشتے نه دی پوره شوی - چه دا بچے بچی ئے پیدا شوے دے - او زید اووئیل چه اے بکر! ستا دعوه باطله (غلطه) ده - ځکه چه دَ بیع نه ورستو دَ شپږو میاشتو نه زیاته موده شوے وه - پس له دے وینزے دا بچے راوړے دے - نو خبره دَ زید معتبره ده - او که زید ووئیل چه دا وینزه چه تا څخه وه - څه ئے په کیلاه نه وو - او بکر ووئیل چه وو - نو بیا خبره دَ بکر معتبره ده - او کوم یو چه په دے دواړو کښې په خپله خبره شاهدان وُدرول - نو حکم به کیږی دَ پاره دَ هغه - او که دواړو شاهدان وُدرول په خپله خپله دعوه باندے نو دَ امام ابو یوسف صاحب رح په نزد شاهدان دَ زید غوره دی - ځکه چه دوئ ثابتوی صحیحوالے دَ بیع - او دَ امام صاحب رح په نزد شاهدان دَ بکر غوره دی - ځکه چه دوئ ثابتوی آزادوالے (دَ دغه بچی) "قنیه"

**مسئله**:- (چا دعوه وکړه په خاوند دَ قبضے باندے دَ زمکے چه دا ځما ده - او وے درول شاهدان نو) خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په کانړے باندے یا په اجارے وغیره (چه دا ماته فلانی غائب سړی کانړه کړیده وغیره) نو مدعی په دے خبره شاهدان وُدرول - چه نا دَ قاضی په مجلس کښې خو نه - لکن بل ځای دِ وئیلی دی - چه دغه زمکه ځما ملکیت دے - نو مدعی علیه نه خلاصیږی دَ کانړے په دعوه کولو سره دَ مدعی دَ جګړے نه ځکه چه دهٔ ځنکښې یوه دا سے خبره کړے ده - چه هغه دَ کانړے دَ دعوے صحیح والے منعه کوی - (یعنے اقرار ئے کړے دے دَ ملکیت)

**مسئله**:- یو سړی دعوه دَ ملک مطلق وکړه (وے وئیل چه دا څیز ځما دے) نو خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا تا ځما نه په بیعه اَخستے وو - خو موږ بیا اقاله کړے وه - بیعه دغه بیعه موتږ ورانه کړے ده - نو په دے سره نه دفعه کیږی دعوه دَ مدعی - ځکه چه هر یو دَ دواړو نه دعوه

---

سله کمه موده دَ حمل شپږ میاشتے ده - نو بکر وائی چه دا ځما دے - ستا نه دے - ځکه چه تا څخه ئے شپږ میاشتے نه دی پوره شوی - ۱۲ - مترجم

سله او دَ بکر شاهدان ثابتوی نه صحیحوالے دَ دے بیع - ځکه چه دا قاعده ده چه دَ کومے وینزے نه چه دَ مالک بچے وشی - هغه بچے آزاد دے - او دغه وینزه به دَ مالک دَ مرګ نه ورستو آزاده شی - او س ئے مالک نشی خرڅولے - اګر که قاضی حکم وکړی به جائز والی دَ دے بیع - دا دغه وئیلی دی په مجمع الانهر کښې - ۱۲ مترجم

کړے ده دَ ملک مطلق ـ دچه داځما دے) نو شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره شو ـ ځکه چه په داسے صورت کښ شاهدان دَ مدعی بے قبضے غوره وی) او بعضو ویلی دی چه بنا تیریٔ دا خبره چه شاهدان دَ خاوند دَ قبضے غوره شی ـ او دَ دے پوره بیان په دَ خبره کتاب کښ دے ـ

**مسئله** :- مدعی بے قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره ـ چه دا څیز ما په بیعه آخستے دے دَ زید نه ـ او خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول چه دا ما په بیعه آخستے دے دَ زید نه ـ او دواړو اوخوُ تاریخ دَ بیعے ـ خو تاریخ دَ مدعی بے قبضے مرومبے وو ـ پس خاوند دَ قبضے شاهدان ودرول په دے خبره چه کوم تاریخ تا خولے دے ـ دا څیز په دغه وخت کښ دَ بکر څخته کا تړه وو ـ او ما په بیعه آخستنه نو دا بیعه جایزه نه ـ ځکه چه دا څیز په دغه وخت کښ زید را آزاد کړے وو ـ دَ کا تړے نه ـ نو حکم دا دے ـ چه دا دفعه صحیح نه ده ـ (نه رد کیږی دعوه دَ مدعی) ځکه چه دَ خاوند دَ قبضے هیڅ حق نشته په دغه کا تړه کښ ـ ځکه چه بکر دعوه دَ کا تړے نه ده کړے نو څرنګ به صحیح شی دعوه دَ کا تړے ـ

**مسئله** :- که چا دعوه وکړه ـ چه دا څیز ما دَ پلار نه په بیعه آخستے دے او وُدرول ئے شاهدان ـ او خاوند دَ قبضے په دے خبره شاهدان وُدرول چه دا ځما دَ پلار وو تر وخته پورے دَ مرګه ـ نو شاهدان دَ قیمة آخستلو غوره دی ـ

**مسئله** :- چا دعوه وکړه چه دا کور ماته میراث پاتے شوے دے ـ دَ خپل پلار نه ـ نو دغه کور چه دَ چا په قبضه کښ دے ـ هغه ـ یعنے خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره ـ چه دا کور دَ یو بل سړی وُو ـ (چه نوم ئے زید وو مثلاً) هغه په ما را خرڅ کړے دے ـ نو نه به آوری قاضی دا دفعه (نه رد کیږی په دے سره دعوه دَ مدعی ـ ځکه چه که دغه کور دَ خرڅونکی (یعنے دَ زید) په قبضه کښ وے ـ (او دے مدعی پریے دعوه کړے دے چه دا ماته دَ خپل پلاره میراث پاتے شوے دے ـ) او خاوند دَ قبضے (یعنے زید) شاهدان وُدرولی وے ـ چه دا کور ځما ملکیت دے ـ نو نه به دفعه کیده دعوه دَ مدعی ـ نو دارنګ حکم شه ـ دَ هغه چا چه ملکیت دَ دغه کور ئے حاصل کړیدے دَ هغه خرڅونکی نه ـ (یعنے په بیعه ئے تړے

آخستے دے)

**مسئله:** چا دعوه وکړه چه ما دے زید له فلانی وُرز په فلانی ځائے کښ زر روپئ قرض ورکړی دی۔ نو زید په دے خبره شاهدان وُدروی۔ چه زه په دغه وُرز په بل ځائ کښ وُم۔ نو قبول نه دی دا شاهدان۔ او په دے سره نه دفعه کیږی دعوه دَ مدعی۔ "لسم فصل دَ فصولین"۔

# دَ شاهدئ مسئلے

**مسئله:** دوه تنو شاهدی وکړه په زید باندے دَ یوے خبرے یا دَ یو کار (خو دا سے خبره یا کار) چه پهٔ[1] هغے سره لازمیږی له په زید باندے اجاره او یا مکاتب والے دَ مرئ۔ یا بیعه یا قصاص۔ یا څه مال۔ یا طلاق۔ یا ازادیږل دَ مرئ یا دَ وینزے۔ او دوارو شاهدانو دَ دغه خبرے یا دَ دغه کار ځائے هم اوخود۔ او وُرزئے هم او خوُله۔ نو بیا زید شاهدان وُدرول په دے خبره چه زهٔ نه وم په دغه ځائ کښ۔ او نه وُم په دغه وُرز (یعنے په دغه وُرز په دغه ځائ کښ نه وُم) نو حکم دا دے چه قبول نه دی شاهدان په دے باندِ او دا ځکه حکم دَ هغه شاهدانو دے۔ چه شاهدی کوی په دے خبره چه فلانی دا خیره نه ده کړے۔ یا دا کار ئے نه دے کړے۔ یا دا اقرار ئے نه دے کړے دا قِسم شاهدی نا منظوره ده۔ "قنیه په باب دَ دفعے دَ دعوو کښ"۔

**مسئله:** دوه شاهدانو شاهدی کوله په دے خبره چه دَ فلانئ ښځے خاوند وچلے شویدے۔ یا په دے خبره چه هغه مړ شوے دے۔ او نورو دوه شاهدانو شاهدی کوله په دے خبره چه هغه ژوندے دے۔ نو شاهدی دَ قتل او دَ مرګ غوره ده۔

**مسئله:** که یو داسے سړی چه ثقه وو۔ او ښه وو۔ یوے ښځے له خبر ورکړلو چه ستا خاوند چه غائب دے۔ هغه مړ شوے دے۔ او نورو دوه تنو سړو ورله

---

[1] مثلاً وئے وئیل۔ چه دے زید په فلانی وُرز په فلانی ځائے کښ خپله فلانئ زمکه دے بکر له په اجاره ورکړے یا دا خپل مرئے ئے مکاتب کړے دے۔ یعنے ورته ئے ویلی دی چه دومره روپئ ادا کړه نو ته آزاد ئے۔ یا دے بکر له ئے دا څیز په بیعه ورکړے دے۔ یا بکر ئے وچلے دے۔ یا بکر ورله دومره روپئ ورکړیدی۔ یا خپله فلانئ ښځه ئے طلاقه کړے ده۔ یا دا خپل مرئے ئے آزاد کړے دے۔ ۱۲ مترجم۔

خبر ورکړلو. چه هغه ژوندے دے - نو چه چا وړله د مرګ خبر راوړے دے. که هغه دا وئیلی وی چه ما په خپلو سترګو لیدلے دے چه مړ دے. یا ئے ورته دا وئیلی وی چه زهٔ د هغه جنازے ته حاضر شوے وم - نو جایز دی دغه ښځے له میړه کول. اګرکه د ژوندانه خبر ورکونکو (دواړو) تاریخ د ژوندانه داسے خوولے وی - چه وروستے وی د هغه تاریخ نه چه کوم دغه ثقه سړی د هغه د مرګ خوولے دے - او وئیلی دی شیخ امام ابو بکر محمد بن فضل رح چه شاهدی د دے دواړو شاهدانو غوره دهٔ - "قاضیخان په شهادتو کښې"

مسئله[1] :- د یو شاهد یو سړی تعدیل وکړه - او بل پرے جرح وکړه - (یعنے یو سړی او وئیل چه دا شاهد ثقه دے - او لایق د شاهدئ دے - او بل پکښې طعن وکړلو - او بد ئے ووئیل) نو (د شیخینو رح په نزد) جرح غوره دهٔ - او د امام محمد صاحب رح په نزد به قاضی بیا د دغه شاهد په باره کښې د چا نه تحقیق کوی - او که یو پرے جرح وکړه - او دوؤ تنو ئے تعدیل وکړلو - نو تعدیل غوره دے - "وجیز په مسئلو د عدالة او تزکئے کښې"

مسئله :- که مدعی شاهدان وړدول په عدالت باندے (چه ځما دا شاهدان ښه دی - د شاهدئ لایق دی) او مدعا علیه شاهدان وړدول په خالی جرح باندے لکه شاهدان ئے په دے خبره وړدول - چه مدعی دغه خپل (ړومبی) شاهدان په اجرت نیولی دی - نو شاهدان د عدالت غوره دی - "صدر الشریعة"

مسئله :- که یو جانب ته شاهدان د بیع وو - او بل جانب ته شاهدان د کاترے - نو شاهدان د بیع غوره دی - ملا خسرو صاحب رح د غرر کتاب په مسئلو د دعوے کښې وئیلی دی - چه شاهدان د بیع اګرکه په څه وجه سره وی - غوره دی د شاهدانو د کاترے نه -

مسئله :- که دوؤ مدعیانو نه یو تن دوه شاهدان وړدول په خپله دعوه او هغه بل څلور تنه شاهدان وړدول په خپله دعوه - نو دا دواړه شهادتونه

---

[1] د صاحبینو رح قول دا دے چه قاضی دے د شاهدانو په ظاهری حال اطمینان نه کوی - بلکه د شاهدانو د حال تحقیق دے په پټه په ښکاره ړومبیه وکړی - او د امام صاحب رح په نزد د حد ودو او د قصاص نه علاوه په بله مقدمه کښې تزکوے پورے چه پکښې خصم طعن نه وی کړے ضرورت د تحقیق کولو نشته - دا بیان د هغے متعلق دے او د جرحے او تعدیل د پاره اوګوره حاشیه د دویم کتاب په مسئلو د شاهدی کښې - ۱۲ مترجم -

برابر دی ۔ ریښتے په ډیر والی سره فرق نه راځي ۔) ځکه چه شاهدی د هر دوؤ شاهدانو یو پوره حجت دے ۔ او غوره والے د حجتونو په ډیر والی سره نه راځي ۔ بلکه په زوددار والی سره راځي ۔ لکه چه ثابت دی په علم د اصول فقه کښ ۔" هدایه "

**مسئله :-** که یو طرف ته شاهدان د نکاح وو ۔ او بل طرف ته شاهدان د طلاق یا یو طرف ته شاهدان د ملکیت د یو مړی وو ۔ او بل طرف ته شاهدان د آزادولو د دغه مړی ۔ نو شاهدان د طلاق او د آزادولو غوره دی ۔ ( مثلاً یو سړی شاهدان وړاندې په دے خبره چه دا ښځه ما په نکاح اخستے ده ۔ او دغه ښځے شاهدان وړاندې چه تازه طلاق کړے یم ۔ نو د ښځے شاهدان غوره دی ۔

یا یو سړی شاهدان وړاندې چه دا مړے زما مړے دے ۔ او دغه مړی شاهدان وړاندې چه تازه آزاد کړے یم ۔ نو شاهدان د آزادئ غوره دی ۔" وجیز په شهاداتو کښ "

**مسئله :-** که جمع شو شاهدان د مړئ توب او شاهدان د اصلی آزادئ ۔ ( مثلاً شاهدان چا وړاندې چه دا زید زما مړے دے ۔ او زید شاهدان وړاندې چه زه مړے ورځے نه یم ۔ آزاد سړے یم ۔) نو شاهدان د آزاد والی غوره دی ۔" مشتمل الاحکام "

**مسئله :-** که خاوند د قبضے شاهدان وړاندې په دے خبره چه ما خپل کور په زید باندے په زر (۱۰۰۰) روپئ د دوہمے خور په میاشت کښ خرڅ کړے دے او زید شاهدان وړاندې چه دغه کور ما د ده نه د څلورمے خور په میاشت کښې په پنځه سوه (۵۰۰) روپئ کښې کانړه کړے دے ۔ نو د شیخینو رح په نزد شاهدان د بیع غوره دی ۔ او امام محمد صاحب رح وائي ۔ چه شاهدان د کانړے غوره دی ۔" درر البحار او مجمع "

**مسئله :-** دوؤ تنو شاهدی وکړه په دے خبره چه دے زید له په فلانی ورځ په فلانی ځای کښ دے بکر دومره روپئ ورکړی دی قرض ۔ یا زید داکار کړیدے نو زید شاهدان وړاندې په دے خبره ۔ چه په دغه ورځ نه وم په هغه ځای کښ کوم چه خولے دے ۔ دے ورومبو شاهدانو ۔ او وم په فلانی ځای کښ ۔ نو دا شاهدان د زید قبول نه دی ۔ ځکه چه دوئ وړاندې لی دی په نشتوالی باندے ۔ او

---

له او که دواړو تاریخ خولے وی ۔ او تاریخ د ښځے روښے وی ۔ نو شاهدان د سړی غوره دی ۔ دارنګ که تاریخ د مړئ روښے وی د تاریخه د مالک نه ۔ نو بیا شاهدان د مالک غوره دی ۱۲۰ مترجم محمد ابراهیم عفی عنه ۔

دوئ چه وائی چه زید په فلانی ځائے کښې وو۔ آکرکه په ظاهرکښې په دے کښې ثابنوالے دَ پوشي راځي۔ لکن په معنیٰ کښې دا هم نشتوالے دے۔ ځکه چه غرض ترے دا دے۔ چه زید په هغه ځای کښې نه وو۔ کوم چه دَ مدعي شاهدانو خوښے دے۔" دولسم فصل دَ فصولین ؕ

**مسئله** :- شاهدان وُددرول دَ قاضي په حضور کښې په دے خبره چه ځما دے زید ته زر (۱۰۰۰) روپئي دی۔ بل څه م ورته نشته۔ بیائے دلے شاهدان هم وُدرول چه ځما ورته سل (۱۰۰) اشرفئ دی۔ تورم ورته څه نشته۔ نو فرمائیلی دی امام ابویوسف صاحب رح چه په زید لازمیږی دواړه رقمونه۔ او ذکر کړیدی هشام بن رستم دَ امام محمّد صاحب رح نه چه نه لازمیږی پرے هیڅ شے۔" وجیز په اقرار کښې ؕ

# مسئلے دَ ماذون

(کوم مرئی یا هلک وغیره ته چه اذن دَ بیعے کړے شوے وی دَ هغه متعلق)

**مسئله** :- کوم مرئی ته چه دَ مالک دَ طرف نه اذن دَ تجارت شوے وی۔ که هغه اقرار وکړلو۔ چه دَ زید ماته قرضه وه په دا سے حال کښې چه ما ته لا اذن نه وو شوے۔ یائے اقرار وکړلو په هغه شي سره چه دَ زید نه ئے غصب کړے وو۔ (یعنې دَ زید نه ئے په زور اخستے وو) یا ورته زید په طور دَ امانت ایښے وو۔ یائے دَ زید نه په سوال او په عاریت غوښتلے وو۔ بیائے ضایعه کړے وو۔ یائے اقرار وکړلو چه زید ماله روپئي راکړے وے په طریقه دَ نیم سوده۔ نوکه زید هغه ته اووئیل چه نه دروغ وائے۔ دا ټول په هغه وخت کښې شوی دی۔ چه تا ته اذن دَ تجارت کولو شوے وو۔ نو مرئے به دَ دے خبرو نه پریوه خبره کښې هم رشتینے نه کنړلے کیږی۔ نو ټول به پرِاوس لازم شي۔ اوکه زید ئے تصدیق وکړلو۔ چه ته رشتیا وائے۔ نو خاص غصب به پرے اوس لازم شي۔ اودَ دے نه سوا چه کوم دی۔ هغه به دَ مرئي دَ آزادیدلو پورے پاتے وی۔ اودَ امام ابویوسف صاحب رح په نزد به ترے فی الحال اخستے شي۔ برابره خبره ده چه زید ئے تصدیق کا وو۔ چه وو دا دَ اذن نه مخکینئ خبره ده۔ اوکه دروغژن ئے کړلو۔ او دا رنګ حکم دے۔ دَ هغه نابالغه هلک۔ اودَ لیوله سړی چه اذن دَ تجارت ورته شوے وی۔ (که مثلاً دَ زید دَپاره ئے په دے تیرو شوو خبرو سره اقرار وکړلو) نوکه زید تصدیق

کاوو۔ چه وو۔ دا دَ بندیز دَ زمانے خبره ده۔ نو غصب به فی الحال لازم شی۔ اوکه تکنیب ئے کاوو۔ نو تول به پرے لازم شی۔ اوکه مرئی اوهلک شاهدان وُدرول چه دا مونږه دَ اذن نه ممکنین کړیں ے۔ او زیں شاهدان وُدرول چه تاسو دَ اذن نه ورستو کړے دے۔ نو شاهدان دَ زیں غوره دی۔" وجیز"

## مسئله

(متعلق دَ هغه چاچه منع کړے شوے وی۔ دَ تصرف کولو نه)

که څوک مینه بنه هوښیار او جوړ سړے وو۔ بیا منعه کړے شه دَ بیعے نه۔ (مثلاً په عقل کښں ئے خرابي داغله۔ یا فضول خرچي۔ او بد چلنی ئے شروع کړه۔ نو قاضی منعه کړو دَ تصرف کولو نه) نو بیا دے او چاچه ترے څه شے په بیعه آخستے دے۔ په داسے حال کښں چه زهٔ منعه کړے شوے وُم۔ دَ تصرف نه۔ (نو بیعه نه ده شوے) او آخستونکی وییل چه نه۔ بلکه دا ما ستا نه په داسے حال کښں په بیعه آخستے دے۔ چه ته بنه روغ جوړ وے۔ نو خبره دَ هغه یو معتبره ده۔ چه منع کړے شوے دے۔ دَ تصرف نه۔ ځکه چه په بیعه آخستل یو نوے کار دے نو دَ دے نسبت به کوُو۔ موتږ نږدے وخت ته (او هغه وخت دَ ممانعت دے) اوکه دواړو په خپله خپله دعوه شاهدان وُدرول۔ نو شاهدان دَ هغه یو غوره دی۔ چه دغه څیزئے په بیعه آخستے دے۔" قنیه په دعاوی کښں"

---

## مسئلے دَ غلا متعلق

**مسئله:**۔ که مدعی بے قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا سامان یوه نیمه میاشت کیږی چه ځما نه غلا کړے شوے دے۔ او خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره۔ چه دا سامان دَ فلانی سړی ملکیت وو۔ دَ اوس نه یوکال مخکښں هغه ته دَ خپل پلار نه میراث پاتے شوے وو۔ بیا ترے ما په بیعه واخستنه نو دا صحیح دفعه ده۔ دَ امام صاحب رح په نزد۔ او دَ امام ابو یوسف صاحب رح (یعنے رد کیږی په دے سره دعوه دَ مدعی بے قبضے)" قنیه په باب دَ دوو متعارضو

شهادتونو کښې".

**مسئله:**- یو سړی په بل باندے دَ خرۀ دعوه وکړه. چه دا خر خما دے. یوه میاشت کیږی. چه خما نه غلا کړے شوے دے. او وئے درول شاهدان. نو خاوند دَ قبضے شاهدان وُدرول په دے خبره چه دا خر خما دے. او دَ یو کال نه خما په قبضه کښې. او دے چه کوم وخت خئ چه خمانه غلا کړے شوے دے. دا خما په قبضه کښې وو. نو په دے سره نه دفعه کیږی شاهدان دَ مدعی. "قنیبه په دعاوی کښې".

# دَ وکالت مسئلے

دَ یوسړی سره دَ بل امانت وو. نو داغے یو سړے. او دعوه ئے وکړه. چه زۀ دَ امانت اخیودونکی وکیل یم. یو کال کیږی چه زۀ ئے وکیل کړے یم. ما ته ئے وئیلی دی. چه خما دغه امانت ترے نه راواخله. او وئے درول شاهدان په خپله دعوه باندے. نو چا ځخه چه امانت دے. هغه په دے خبره شاهدان ودرول. چه امانت اخیودنکی چه دا سړے وکیل کړے وو. هغه بیا دَ دے وکالت نه ایستلے وو. نو دا شاهدان قبول دی. او دا دنلځ که په دے خبره ئے شاهدان ودرول. چه دَ دے وکیل دا شاهدان چه دی. دوی مړیونه دی. (شاهدی ئے صحیح نه ده) نو دا هم قبول دی.

**مسئله:**- دَ زید په قبضه کښې یو کور دو. بکر دَ یو وکیل په ذریعه دَ دغه کور دعوه وکړه. نو زید انکار وکړلو دَ بکر دَ دعوے دَ ملکیت نه. او دَ وکالت نه. روئے وئیل چه بکر نه نه ئے وکیل کړے. تا نه ئے نه دی وئیلی. چه خما دَ طرفه دَ دغه کور دَ ملکیت دعوه وکړه) جوړ مدعی شاهدان وُدرول په خپل وکیلتوب باندے. نو زید شاهدان وُدرول په دے خبره. چه بکر اقرار کړے دے. چه دَ دے وکیل دا شاهدان دَ دروغو دی. په اجرت ئے نیولی دی. نو باطل او بیکاره به شی. شاهدی دَ شاهدانو دَ مدعی. او که دَ زید شاهدانو دا شاهدی وکړه چه دے شاهدانو اقرار کړے دے (چه مونږ دَ دروغو شاهدان یُو په پیسوئے دا دستی یو) نو بیا شاهدی دَ شاهدانو دَ وکیل باطله نه ده. هاں! که دَ زید شاهدانو په دے خبره شاهدی وکړه. چه دَ وکیل دے

شاهدانو اقرار کړے دے - چه په موږ حد[1] جاري شويدے دَ قذف - يا داسے اِقرار ے کړے دے - چه موږ دَ مدعي سره شريك يو په هغه کور کښې - چه دَ کوم کور موږ شاهدي کوؤ په زيږ باندے - نو په دے دواړو صورتونو کښې به بيکاره شي شاهدي دَ شاهدانو دَ مدعي " قاضيخان په دعاوي کښې "

[1] ثوک چه په چا دَ زنا تهمت ولګوي - کنزل دَ زنا ورته وکړي - او هغه رپوټ دکی - او تهمت لګونکے دغه زنا ثابت نکړے شي يعني څلور شاهدان ئے په دغه زنا نه دي - نو په تهمت لګونکي باندے اتيا دُرے لګي - دَے سزا ته حدِ قذف ويلے شي ۱۲ مترجم

# خاتِمه

## (د آخري خيره دَ عالِم په شان کښې)

په دے زمانه کښې څومره په عالمانو کښې چه ثوک مفتي (فتوي ورکونکے) وي - دَ هغه نه چه دَ څه مسئلے فتوے طلب کړے شي - او دَ يوے واقعے په بابت کښې ترے (دَ حکم) تپوس وشي نو (دے دِ اوګوري) که دَ دغه مسئلے حکم څومره دَ امامانو صاحبانو رح نه په ظاهر الروايت کښې نقل وو - او هغوي په کښې څه اختلاف نه وو کړے - نو مفتي دے هغوته ميلان وکړي - دَ هغو په خبره دے فتوٰی ورکړي - او دَ هغو نه خلاف دِ څه رائے نه قايموي - اګر که دا مفتي لوئ عالم او مجتهد وي - ځکه چه ظاهره خبره داده - چه څومره امامانو صاحبانو رح چه کوم حکم کړيدے هغه حق دے - او دَ حق نه جدا نه دے - او مفتي که لوئ مجتهد شي - بيا هم نه شي رسيدے دَ هغو اجتهاد ته - او مفتي دِ نه ګوري دَ هغه چا خبرے ته - چه څومره دَ امامانو دَ قول نه ئے خلاف کړيدے - او ته دے دَ هغه حجت او دليل قبلوي - ځکه چه څومره امامانو صاحبانو رح ته دلائل ښه معلوم وو - او هغوئ پوره پوره امتياز کړيدے - جدائي ئے کړے ده - په صحيح او په غلط - (او په مضبوط او کمزوري) دليلونو کښې - او څومره امامان صاحبان رح دا دري دي - امام اعظم ابو حنيفه رح - امام ابو يوسف رح - امام محمد رح دَ خاوند پاک رحمت دِ وي په دے ټولو باندے -

او که حکم دَ دغه مسئلے اتفاقي نه وو - بلکه څومره دَ دے امامانو صاحبانو رح په کښې اختلاف وو - نو مفتي دِ اول دَ امام اعظم صاحب رح قول غوره کوي - بيا دَ امام ابو يوسف صاحب رح - بيا دَ امام محمد صاحب رح بيا دَ دے نه سوا دَ امام اعظم صاحب رح دَ نورو صاحبانو رح بيا دَ دے نه روستو دَ نورو عالمانو -

او که په یو جانب کښې امام صاحب رح وو۔ او بل جانب کښې صاحبین رح وو۔ نو که
دوئ دا اختلاف په سبب دَ اختلاف دَ زمانے وو۔ لکه چه امام صاحب رح دَ
شاهدانو ظاهر حالت ته کتلی دی۔ چه نیك او عادل به وی۔ نو وئیلی ئے دی
چه قاضی به دَ هغو شهادت آوری۔ او ضرورت دَ دے خبرے نشته۔ چه دَ
هغو په بابت کښې به پټه یا په ښکاره تحقیق اوکړی۔ او صاحبین رح وائی۔ چه
مبُنه به تحقیق کوی۔ هله به شاهدی دَ هغو قبلوی۔ نو مفتی به په داسے
صورت کښې دَ صاحبینو رح قول اَخلی۔ ځکه چه دَ خلقو حالتونه بدل شوی دی
(په ظاهری حالت اطمینان نه دے پکار۔) او دَ مزارعت او دَ معاملے او ددے
په مثل چه نور څه وی۔ په دے ټولو کښې به دَ صاحبینو رح قول غوره کوی۔ ځکه
چه وُروستنو عالمانو ټولو په دے اجماع کړیده۔ اتفاق ئے کړیدے۔ او ددے نه
سوا دَ نورو مسئلو په بابت کښې بعضو وئیلی دی چه دَ مجتهد اختیار دے۔ کومه
خبره چه دَ هغه زړه نه پریوزی۔ په هغے دِ پریوزی۔ په هغے دِ عمل وکړی۔ او
عبدالله بن مبارك صاحبؒ وئیلی دی چه خاص دَ امام اعظم صاحب رح خبره
به غوره کوی۔ نه دَ بل۔ او دَ طحطاوی کتاب په شرح کښې منکور دی۔ چه عالم
دَ فقه که مجتهد نه وو۔ نو نه به غوره کوی۔ مګر قول دَ امام اعظم صاحبؒ
او جائزه نه ده چه غوره کړی قول دَ صاحبینو رح۔ مګر دَ مزارعت او دَ معاملو په
مسئلو کښې۔ او عالمان مختلف دی۔ دَ مجتهد په بیان کښې چه مجتهد څوک ته
وئیلے شی؟ نو بعض وائی چه دَ چا نه دَ لسو مسئلو تپوس وکړے شی۔ دَ
اَتو جواب صحیح ورکړی او دَ باقی غلط نو دا مجتهد دے۔ او بعض وائی چه
دَ مجتهد دپاره دَ پاره ضروری دی۔ چه مبسوط کتاب ورته په یاد ویاد وی۔
او ناسخ او منسوخ او محکم او ماؤل پیژنی۔ او دَ خلقو دَ عادت او عرف نه
واقف وی۔

او که حکم دَ مسئلے په ظاهر الروایت کښې موجود نه وو۔ نو که څوونږ دَ
اماما نو رح دَ اصولو او دَ قواعد و سره برابره وه۔ په هغے به عمل کوی۔ او که
څوونږ دَ اماما نو صاحبانو رح نه په هغے کښې هیڅ قسم روایت نه دی مونده شوے
او وروستنو عالمانو په دے بابت کښې په څه شی اتفاق کړے وی۔ نو
په هغے به عمل کوی۔ او که عالمان پکښې مختلف شوی وی۔ نو بیا به اجتهاد او

نکرکوي. جوکومه خبره چه ئې زړهٔ ته پریوزي. په هغې به فتوٰی ورکړي.

او هرقسم ثنا هغه خدائ پاک لره ده. چه دَ هغهٔ په مهربانئ سره نیکې خیرې اوکارونه سرته رَسي. او نازلیږي برکتونه ( دَ دې عربي کتاب چه چا کتابت کړې وو. نوم ئې محمّد گیلاني دې. اوس هغه وائي چه ) زهٔ دَ دې کتاب دَ مسوّدې دَ لیکلونه دَ کل په وُرز دَ واړه آختر په ځوارلسم تاریخ په ځلور ځلويښت دَ بره یوزر سنه ۱۰۴۴ هجري کښې وُرکار شوم.

---

خطیب سنٹرل جیل پشاور حوالات جدید
ملا عبدالمطلب
قیدی ۲۰ ساله
سکنه پیر شاه
ضلع مردان

۲۶/۹/۶۶

اسیر ملا عبدالمطلب بقلم خود
قیدی ۲۰ ساله حال سنٹرل جیل پشاور
سکنه پیر شاه
۲۶/۹/۶۶